# دغنی کلیات

## د پنجرے چغار، پلوشے او پانوس

### ویونکے

خان عبدالغنی خان

خپرونکے

د قومونو او قبایلو وزارت

د نشراتو ریاست

۱۳۶۴ ش / ۱۹۸۵ ع

# سریزه

عبدالغني خان د پښتنو د ستر اجتماعي، سیاسي شخصیت خان عبدالغفار خان مشر زوی دی. غني د هندوستان سیاسیانو ذیمي دی چې د خلکو د آزادۍ په غورځنګ کې د ماشومتوب والي تحریک د پاکستان تر را پیدا کیدو پورې مخامخ برخه اخیستې او بې شکه د ضد استعماري او ضد امپریالیستي مبارزې د میدان یو پیاوړی مبارز پاتې شوی دی او په دغه لاره کې یې سختۍ او جیلونه ګاللي دي. ددې سره سره د متحده هند تر محدودو واکونو لاندې انتخاب شوي مرکزي قانون جوړونکي اسامبلې کې د هند د آزادۍ غوښتونکي ګوند کانګرس له خوا د پښتنو د صوبې یوازینی منتخب نماینده پاتې شوی و.

د هندوستان د ویش په نتیجه کې د پښتنو له برخې د غني خان په مرد جرات یې تیرې ګوزي سیاستونو باندې یې باور کم کړ، د سیاست د چیغو او نارو له کتار نه را جلا شو او د شعر تیره توره یې د نابیانو د حقیقتونو او ناولونکو د ګوتو د بیان او رسوا کولو له پاره له تیکي را واخیسته. هر څه یې چې زړه او الهام ورته ویل، هغه یې ویل او په دې توګه یې هغه لوی عقل چې "شعر" نومیږي صیقل کړ او د رعایتونو او قیودو له ننګ او شرم نه یې آزادي ورکړه.

بله دا چې غني د فلسفي فکر په لحاظ تحلیل کړو او بیا دا چې د یو نقاش، مجسمه جوړونکي او خوږ ژبي هنرمند په توګه یې وڅېړو، دې نه موږ د دې نړۍ یو ډېر لوی شاعر دی چې د انسان

په ښکلا او اولي او د هغه په کمزوريو ټولو پښتون شاعر ښه پوهېدلی دی . د دې انسان نکل ښوښتنې انځورگر او رهبر نه د هغه ځینو مذهبي ، فلسفي ، سیاسي او ځراقي اندېښنو کې ښېرلي او آزمولي دي . غني د دې لپاره چې د شعر ژبه پاکه وساتي او د دې لپاره چې انسان د دوکې او پرخاتن باندې د باور دې کړاو په لومه کې ښکېل نه کړي پر ټولو قرار دادي ، فعل ساتو باندې ښه ښه بزدي او ځنگوته د ریاکار د شیخانو او ، وطن فروشه اخوندانو کاذبانه لافې او مقدس د رواغ بربنډ دي .

اې د لوبیانو نیکه لموغ ښکاره مستي ښه ده
حسن جوړ يې ښه دي که حسن پرستي ښه ده

په پاکستان کې د پښتو ژبې د زوالي بد رنگه او د پښتنو د کم سوادۍ له کبله د عبدالغني خان غني شعر د نیاوال د ده د شعر د پیاوړي سوزیک او د هغه د رنگینو عطر د وربه مولو احساس څخه محروم کړي دي زه باور لرم چې پښتانه ، افغانان او نړیوال به په لنډ مستقبل کې غني د خپلو نه نیدونکو شعرونو په محراب کې ودرېږي او ده به یې لمانځي .

د غني انتقادي ژبه بربنډه ده . دی د یو رومانتیک ، ریالیست په توگه د ښکلا او د مینې ستاینوونکی دی . لیکن په هر څه . هر ځای او هر وخت کې انسان دا د ځمکې خوشحاله او هوښیار خاوند نه هېروي . هغه له خپلو تېرو او بیایې او خط او وسرې ده د شعر په محراب کې ناسته دی او د خپلو ښه ځوانو او بیایو په ننداریوان کې د غني د شعر ته د لذت او عذاب په زانگو کې د ژوندانه د دوام لپاره الهام ورکوي .

سلیمان لایق

# یادونه او منته

د قومونو او قبایلو د وزارت او همدارنګه د نشراتو او فرهنګي امورو د ریاست له خوا په تېرو پنځو کلونو کې
ځینې کتابونه او رسالې، د مقالو مجموعې او نور ګټور فرهنګي، ادبي، تاریخي او علمي کتابونه د حروفي چاپ
آفسیټ او ګستنر له لارې چاپ او خپاره شوي دي چې د دغو کتابونو له جملې څخه پنځه ویشت علمي
ادبي، تاریخي او کلتوري کتابونه د افغانستان د علومو اکاډمۍ علمي غړي معاون سرمحقق
زلمي هېوادمل د هېواد له فرهنګ سره د مینې له امله بې حق الزحمې، بې له دې نه کارې او بېرته له کوم
رسمي مکلفیت په وړیا ډول موږ ته چاپ ته کړي دي، د ځینو کتابونو اډیټ او د مقالو
د دوو مجموعو (د الفت یاد - د ننګرهار شاعر غني او اجمل) تدوین یې هم وړیا
ترسره کړي دي.

زموږ له کتابونو سره د باچا خان زما ژوند او جدوجهد. او د باچا خان لیکونه
هم دوه لوی کړمي مارکې چې په ښه توګه وړیا چاپ کړي دي. د نشراتو او فرهنګي امورو ریاست د دوه دغه
ډول مرستې په دې ستر ګټوري له زړه منه ترې کوي او له خدایه په ... د هېواد په فرهنګي اکټو مین
هېوادمل ته په راتلونکي کې هم د یاد شوو فرهنګي او علمي مرستو هیله لري

په درناوۍ

عبدال...
د نشراتو او فرهنګي امورو رئیس

# فهرست

| عنوان | مخ |
|---|---|

ستا په نوم زما رتبه

دَ

# پنجرے چغار

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړ
لوے یو جهان د ګلو نو که

مست شو صحرا او په خوب کښې ئے
دَ ګل تول جهان دَ سینه دُ نوکه

دَ غني دَ جیلخانے زما شعرونه

هریپور - ۱۵ اکتوبر - ۱۹۵۰ع کښې
ما کتاب شروع کوم

غني

# پیشکش

شاعر دَ خپل ماحول غلام وی، دَ دہ مثال دَ یو داسے حیوان
دے چہ دَ هغہ پہ وجود خرمن نہ وی، کہ پو ہے دا زغی ځو کہ
درورپ ہے نو پہ کریکو خپان وژنی۔ او کہ پو ہے آرام ورشی نو
دَ خوشحالئ نہ بے هوشہ کیږی.

او کوره انسان تہ چہ بادشاه دَ ځنا درود ے
دے کہ ډیر زور وکی و ہے نہ شی دَ خپل ځانہ
دے دَ خپلہ ځانہ دَ جهانہ ردکیږے نہ شی
کلہ دَ کعبے نہ تاو شی کلہ دجانانہ

بنده دَ خپل احساس او بے حسئ پہ قلاکښے بند دے، او
دغے تہ خلق قسمت وائی. خوشپیر کالہ وړاندے واقعاتو نہ دَ خپلے
لوئے قلانہ راو بنکلم او پہ ډیرو ډرو ډرو دَ خپستو
قلاکانو کښں بندیوان کړم.

دغہ دَ درد، زور او تیرے ماحول کښے ماتہ دَ لارے
روښانہ کولو صرف یوہ شمع وہ، او داځما دَ ځوانئے او مستئے کالونہ

چه په دے تور او تاریک باغ کښې شوی دی او ماتړ نه یوه مړاوے
ګلدسته جوړه کړے ده هغې فرښتے ته پیش کوم، چا چه دَ حیله آباد دَ نوابې
رستم جنګ محل دَ غنی دَ تالاشوے جونګړے دَ پاره پرېښود. او ما شنے
دادغم. دَ درد او بے سروسامانئ روښے ډیرے په خندا
خوشحالئ او بهادرئ تیرے کړے. زه چه دَ هغې درد ته ګورم
نو خپل درد رانه ورک شی. زه چه دَ هغې نزتوب ووینم. نو په خپله
بزدلئ ستومانه شم. زه دَ ډیرو نزانو نزیم. خو دَ هغې نه نزنه شوم.
نو ځکه دا کتاب زه په ډیر ادب او ډیره مینه دَ خپلو بچو
مور ته پیش کوم.

یو خوب دَ شاعر په جامه انسانی
یو ساز دور دراز ښکلے خوبِ آسمانی
یو ګل دَ جنت په خصلت رحمانی
یو جسم ناری یو زړه کے نورانی
شوله دا سے پیدا دَ غنی دلبرا
په غیرت پښتنه په نهایست ایرانی

غنی خان
۱۹۵۳ ع

# دُعا

ستر گو دَ جانان کښې زمانښکلي جهانونه دي
وا دِ خله دنيا زه وړ بے ستا دَ دنيا نه يم
کوزه دَ فقير لچکول کښې تاج دَ سکندر دے پرت
زه يم دَ سخيانو دَ شو مانو گدا نه يم

زه نے په غرور درنه دَ مينے په نوم غوارمه
زه ملنگ بے نيازه ستا دَ دير واويلا نه يم
يو دَ سپوږمۍ څاڅکے درنه تيک له دَ يار غوارم
زه يم دَ خوبونو دَ لالونو گدا نه يم
هغه مستي غوارم چه نے مرگ نشي وژلے
زه دِ دَ غمونو دَ بيکا او سبا نه يم
او تشه دنيا گڼے که دِ بخښے نوا ے اميره !
ستا شوه ستا دنيا. زه وړ بے ستا دَ دنيا نه يم
غني

# ثنا

توره شپه دِ کله کله دَ غمونو انبار راوړي
کله شمع ساقي راشي او خیام او ستار راوړي

کله توره شپه لحد شي مرغئ روک کوي پېړه کښې
کله رنګ او خمار راوړي کله شرنګ او دلدار راوړي

کله ډوب او بې قراره یو دریاب دَ اسوېلو شي
کله مست دَ رنګ محل شي بې خودي او خمار راوړي

دا زما بې خودي واره یو نظر ستا دَ قرار دے
دا زما دریاب دَ حسن ستا یو څاڅکے دخمار دے

غني

# ژوند

چه خمار مستي تې وزي — شراب شي ترخې او به وي

چه سرور غرور نې نه وي — دا ژوندانه ورزند دَ دخه وي

چه دَ مينې زره شي پاتې — لکه ګل وي رژيدلے

يا شغله يوه دَ نور وه — يا يو موتې دَ خزلے

چه په ژوند کښې سخته نه وي — لکه بې مالګې طعام

چه په خوله کښې خندا نه وي — لکه ډک دَ خاورو جام

چه خوانئ کښې تکليف نه وي — لکه پټه ميان کښې توره

نه نې پرق شي نه شرنګ شي — په زنګونو شي زخوړه

چه آرام وي او سمام وي — او يارې په جايد ادوي

خوږ بانو هم شيرني وي — هر تړو پرو فرهاد وي

چه بې سره په خندا دو شي — هاله خوږ راز و نياز شي

چه دَ سپينو تورو جنګ شي — ښکاره هلته کښې اياز شي

ژوند که تش فيرني خشتل شي — دا خو سپي هم شي ختلے

که تش نسل زياتول وي — دا غوږي هم شي ښه کولے

ژوند نه خیته نه ماڼئ وي
نه ډیرئ د سرو لالونو

نه یاران نه معشوقې دي
نه باغونه د ګلونو

---

ژوند خو تله دي یو به مخه
غورزیدل او پاڅیدل دي
تکې سوز او تکې ساز دې
خه خندل دي خه ژړل دي

ژوند په سترګو د عاشق کښې
پلوشه ده د خمار
په صحرا کښې لټول دي
د آشنا د کوڅې لار

غني
حیدرآباد جیل
۱۳۴۹-۹-۱۱

هری پور — ۱۴ مارچ ۱۹۵۰ع

# ګواه

یو تکی د رنګ کښې — دریاب رنګا رنګ
یو څاڅکی د ساز کښې — هم سوز او هم شرنګ
د ژوند یوه لمحه کښې — سوونه عمرونه
یو چونګ کښې د خاورې — مستی او غمونه
په لپه ایرو کښې — ننبارونه د نور
د هر ګل په شونډو — رازونه د طور
خاورینه خرمن کښې — خندا او غرور
تیارې د شهوت — او رڼا او سرور
دې بت کښې د خاورو — دا تال د ابد
د څاڅکي په مخ کښې — جمال د ابد

ثبوت مانه لوی ستا د خان کوم دی
ګواه مانه سبه ستا د شان کوم دی

خانپور

خان پور

# خومره؟

خومره مینه مستي د کرم ادب خومره؟
خومره تا دلدار جانان کرم رټب خومره

نه زه ستا په حد دخان په حساب پوه شوم
ستا پوهيږي پخپل هنګ او طرب خومره

تورانني په ساز سرود ترکومے رسي
ګلاب پوه دے دخایشت(*) په مطاب خومره

دا سپوږمئے چه کل جهان حیران حیران کړي
دا پوهيږي دخپل نور په سبب خومره

رنګ رنا دخپل ښکر پړ خو رو نه
دومره خیشت وي چه زماوي طلب خومره

دا چه کے شونډے او رسرور روښان کړي
معشوق پوهيږي د عاشق په مطلب خومره

خامینه ده ادب د پنجرے اوزي
وایه خومره د جانان کرم رتب خومره

---

(*) خایشت ، ښایست .

# بلڅه

په نظر کښې مې — د باغونو خيال
په نصيب کښې مې — لاره د غرونو
عجيبه اچار — مې اچولې دې:
د ګلونو — او د غمونو
په غوږونو کښې — شرنهار د ساز
د ګنګرو پېنزيب — او خندا آواز
ډوب مې زړلتمئ — بلڅه نوې ساز
بلڅه نوې سوز — بلڅه نوې راز
ښکله خيال کښې مې — د باغونو رنګ
او نصيب کښې لاره — د غرونو
ما د تورو هيرو ورو(*) — جوړ کړېدې
ځان له بنګلې تخت
د خوبونو

مرکب پوه

---

(*) هيرو : ايرو

# تش جام

هغه څه ساقي وي — چې ئې تش شراب وي جام کښې
نه ورکي خمار د سترګو — رنګ د سرو لبانو
دا د دوزخ اور وي — چې تش سوی وي رڼا نه وي
دا هغه ګانړ دی — چې خټې لولي ماښام کښې
دا د ازغو جاړه د ګلاب — خوږ ګلاب نه لري
دا لوګو د هغه سیخ — تیکه او کباب نه لري
زهر زهرژنه مړ دي — شراب چې خمار نه لري
کفر کفر لفر ده — مستي چې قرار نه لري
څه هغه بنده وي — چې جنون او دلدار نه لري
هغه د څه رسیند وي — چې غوټۍ او آبشار نه لري
هغه څه مومن وي — چې مستي د کافر نه لري
څه وي نه هغه سترګې — چې د مینې نظر نه لري
هغه دعا څه وي — چې شرنګار او ښنا نه لري
زهر زهر زهر دي — شراب چې خمار نه لري

# غم

پنسن مې بخمیره روک که قلم تش د سیاهۍ نه
کوټه کښې یخ او تریخ لوګي باهر(*) یخنه به میلې
دماغ مې پریشانه زړګی پریوتې د سستئ نه
خیالات مې روک نوستلی غم وهلي په بړلۍ
دنیا مې د امید د رڼا نشه تکه توره
د غم د قیصو رکه ده خندا آوازې هیر
هره لمحه د ساه ترخه بې خونده او چه سپوره
محمد خان لیونے که شوخئ بسته ایازې هیر
داغم نه د طاقت د حکومت، نه د شوکت دے
داغم د تیریدو دے ـ بې مطلبه د ژوندون
لیلیٰ محمل صحرا مه تیاره دی خو افسوس
د خان لیوني کولو همت ونکړو مجنون

په پیرول
۱۹۵۰ع

(*) باهر: بهره د باندے.

# هوش

شراب هله شي شراب چه څوکے[1] وڅکي
څاڅکي سينے شي چه پڅ شي آبشار شي

ګل چه خوړ کړي په سپادين د رنګ دوړان کاچل
په تير وکښے جوړ عجب د ګخيښت بازار شي

چه آواز د سرو اوزي بدلے رنګ شي
چه خوړ دي د خوږ اوزي نو خمار شي

چه فولاد د مينے مستے او به واخلي
نو حيران او پريشان مار د ستار شي

سريتوب چه لوړاچت شي ليونتوب شي
چه صحرا په رنګ مين شي نو ګلزار شي

چه انسان مالک د حسن او سرور شي
او ډاکور ورته ګلونه لاله زار شي

د سپوږمۍ حسن روښان شي په شبنم کښے
د غانټول[2] او کښے ولونه د ښامار شي

د ژوندون مطلب کمال دے د اظهار
يوله او ښکے يوله اخ يوله شنه کار شي

بلخه نشته ځان او ژوند پوره کول دي
قيمتي هغه خوبونه چه بهار شي

بس بله دے د مجنون دے که مدهوش دے
خر څونکے اخستونکے د ده هوش دے

که جوماتکښے بس الله الله دے
ميخانه کښے يو آواز د نوش نوش دے

دغه خوند کړي چه يو يار شي يو ربيار شي
دغه خيال کله جانان کله بهار شي

تواد هوش کفر که مينه که سرود دے
د ده سر دي نه شمع ده نه نور دے

(۱) څوکے : څوک يے . (۲) غانټول ، غاټول

عجیبه واکدار که جوړ رب د جهان | چه د عقل تور کندو ته قانون وائی
دے د حسن بخاری ته لیونے وائی | او د خاورو سوداګرو ته قارون وائی
د ژوندون احساس ته خبط او سودا وائی | عاشقۍ ته د بدبختو جنون وائی

د ده هوش د ده د مینے تور مینا مارشی
داعیسیٰ غریب بخپل بستر به دار شی

هوش عمل یو د سوزنو منارو دے | لوئے وطن د دریابونو د درو دے
ده کښے یخے تارخانے د طور د کهو | دے کښے خوریو تور دریابونه په تیرو دے
دے کښے سپین لوئے محلونه د دنیا دی | دے کښے خور خاموش ارمانونه د مقبرو دے
کله کله د مستۍ سره خمار و نه | کله کله تش کچکول اوک د اسرو دے
دا د شکر چه د غم په تور محل کښې | را ښکاره کله یا مینه یا دلدار شی
دا د شکر چه د مرګ په بادشاهۍ کښې | کله کله خاشکی وخاندی آبشار شی
دا نعمت دے چه په لوړو کا نه شوے | خط و خال تالا به سره و شونډه دیار شی

هوش چه ورک شی د خپل هوشه نو مستی شی
چه خودی د خوده اوزی نو خمار شی

«کرسر»

# حسن

اوه تپوس دَ حسن مکوه — سمندر شی څوک تللے
څوک سپوږمئے شی رانیولے — څوک زهرا شی ښکلولے

حسن پلار دَ مینے او مور دَ عشق
پکښے پټ دی تول سپین او تور دَ عشق
دَ ده خیال نظر همه زور دَ عشق
په سرو شونډو بلۍ ښکلے اور دَ عشق
دا بابا دَ سُر او سرور دے
دا تعبیر دَ جلال او نور دے
دا مکه دَ سترګو خندا کښے
دا په هر کوڅه کښے طور دے

دَ آدم دَ نوم بس یو دا سبب — دَ بهار سبب دَ رڼا سبب
دَ حوا دَ ژوند او ارمان قیصه — دَ سرود دَ رقص او دَ ژړا سبب
دا جواب دَ لکونو سوالونو دے — نشته هیڅ دَ ژوندون بل جواب
دا صوفی ته محراب او منبر خالی — لیونی ته کباب او شراب

دے دَ خیال او رنګ دنیا ګنبے دا ــــ پلوشه دَ مینے دَ یار ده
دا دَ رحم پیغام او وعدهٔ دَ وصال ــــ را لیږلے غلام له دلدار ده

دا دَ مرګ سبب
دا دَ ژوند ضرور
دا دګناه تعریف
او معنی د نور
دا دَ عشق وجود
دا د مینے راز
دا دَ سوز خوند
دا مستی د ساز

هر نظر ئے شراب دَ مستی ده ــــ دا د روح لیونے میخانه ده
دَ بنده او آقا دَ زړه راز دے ــــ د ژوندون او جنت افسانه ده

خان پور
۱۹۵۰ع

# اور کښې

دوول د لرے خوږ دے د هند کیانو د امتل دے
هره فلسفه د لرے سبنه او پوره ښکاری
ذره د بنده نه دے عجیبه بے چله چل دے
د وبه په ارمان کښې چواری هم حوره ښکاری

عقل له دهوکه ورکوی حسن که دلدار دے
خان ته تنبتیدل دی عبادت دے که خمار دے

داسته رنا د اسینه حور دے او ماښام
څه رنګین سراب دے د لیدلو پوهیدلو
داچه ورته ګورے بل څه نه وینې نه ګورے
دا عجیبه دام چا دے جوړ کړے د لیدلو
دا یوه قصه ده د دک جام د تونیدلو
دغه فلسفه ده د دریاب د بهیدلو

رحم نه انصاف دے یو تدبیر دے د دوام
هر څوک ئے پکار دی که خیتو دے که خیام

مشہنگ وی دَ نیز دے نہ اودو لکے دَلوے لوے
دوارو عزیزیٔ یوشانے اویو رنگے خبرے
دَ کَ دَ ظلمہ زورہ دَ طاقتہ دَ باز پرے
جوړے دَ مهین او رنگین بوی دَ گل وزرے

کومہ لارچہ اخلے خو مقام ئے بس یو دے
دلتہ زرجوماتہ دی امام ئے بس یو دے

ځکہ لیونے دے مرورشی ځکہ کلہ
بل خواتہ ورتا وکړی دادَ موش تہتقہ شلہ
پریوزی پہ پراوکړی بتخانہ کښے دیوہ بلہ
خپے سپینے پولیٔ طمعنے تاقتی دَ منزلہ

تاتہ اور سرور دے یو ماولے وژنے اور کښے
اے دسپین اوتورمالکہ څہ مزہ دہ تور کښے

ولے زما لال وی پروت پہ خلے کښے دَ ښامار
ولے دے گلاب لہ نہ اوربل او نہ بهار
ولے دِ بندی کہ ښاخکے تن کښے دَ وندوکی
غوارے ترچپے دَ سیند سازونہ دَ ابشار

مالہ مرگ او ژوندے تالہ تش دَ ځښنے ول دے
اور کښے دے بل کړے ولے حسن الوول دے

اور ته دے نیولے یم فولاد جوړے زمانه
سبه۔ چه زه فولاد شمه نو څه زما جانانه
جسوله فولادو له جوهر و له کمال له
بس خاورے کیده دی روکیږدی کی دنیا ته

وے دِ ورانولوله جوړ کړے سور محل دے
اور کینے دے بل کړے ولے حسن الوول دے

غنی
ډیره اسمعیل خان
۱۹۵۰ع

# حساب

یوخوالیو نے دے دَ تیکرو جام پہ لاس
غوارې دَ عطار نہ روح دَ گل۔ خمار دَ گل
بلخوا۔ او بنیار شاه۔ دَ بوے پہ کتہ پہ لباس
پوخ ئے کہ خوراک لہ ھم۔ پیغې۔ لہ ھم بلبل
تلہ پہ لاس نا ست دے خرخوی مینہ خمار
بس دَ دہ ایمان دغہ جنت دے نشتہ بل
بے خمارہ مینہ لکہ بے نشے شراب
زمونږ ئے خکل حرام حرام ورتہ کتل
بے مینے ژوندون دے. لکہ بے سترہ ستار
تنگ ترے نہ او بنکل دَ جنت حوروتہ کنزل
روکہ کړه مجنون لیلیٰ محل کښے دَ ایران
دہ تہ سُر محل شو دَ غمونو بیابان
تول جہان تہ اور وُ دہ تہ مینہ دَ جانان
وہ دَ دہ خندا پښہ ژړا کښے دَ جہان

دہ تہ درد او چغو کښې وناست مستي ژړلون
دہ لہ وے دوہ لاړے یو مرګے ، او یو مجنون

ښہ ۔ یو خوا خودغہ بلخوا بلہ تماشہ دہ
ناست خان لہ نمرود ۔ دے او دَ بل دَردنشہ دہ

داخہ عجیبہ شانتې انصاف دے دَ فطرت
ګل لہ ښکلې بوی دے او د ببر خوار لہ لښدہ

داخہ عجیبہ خیشت پرستي دہ دَ رحمٰن
مرہ پرتہ بلبلہ دہ او ښتې پے بابښہ دہ

خہ وکړي شاباز یا بہ روکیږي یا بہ زود کړي
خہ ؤ وي جرس چہ وي دَ ژوندہلہ چہ شورکړي

دغہ دَ جہان ، دغہ ئے چل ، دغہ ئے راز دے
دغہ دَ ساقي ، دغہ محمود ، دغہ ایاز دے

دغہ ۔ وائ ۔ دَ غم او دغہ ۔ وخ ۔ دَ ممہ ساز دے
دغہ دَ ۔ خیام ۔ او د ۔ بلال ۔ دَ خُلے آواز دے

خان مستول مینہ او خمار زیا تول
دے دَ ژوند تنور کښې سور انګار زیا تول

یو دیار دَ خُلے ورېت او بل ئے دَ دولت
یو دَ ۔ خان ۔ پہ سترګو روک او بل ئے پہ شوکت

یو ئے مست په شرنګ او په خندا او په سرور

بل ئے په غضب دَغورزنګونو دَ شهوت

یو ئے په تیرو دَغم په لړو دَ ماښام

بل ئے په سیلئے او په باران او په قوت

یو ئے په پښتو پښتو سوالونو دارمان

بل ئے په باهواو په جلال او په شوکت

یوله تیز نیلے، سترګے سرے سره توره په لاس

بل له تنهائی، رنګین ملکونه د حیرت

یوله دَ الماسو محل، سپین او روڼ او پاک

دوی سره حساب خو لږ ګران شان دے

ستا په هر جنت کښے لږ عذاب شان دے

غنی

ډیرهٔ اسمٰعیل خان

# غزل

هله یار وته نژدے شوم چه دَیاره شومه لرے
هلےؔ پوئے شوم پهخبره چه ئے ناورمه خبرے
چه ملنګ شومه جانانه خزانه م وُمنتله
په زړګی کښې م پرتے وے ښکلے ښکلے ملغلرے
چه م کل تبستان قربان که نو دکل تبستان مالک شوم
چل م هله دَ بر زده که چه م وسوے وړزے
چه په جام کښې دَ ساقي م دَ خوانئے وینه کړه کله
هله پوره شو محفل کښې دخمار خمار بڅرے
چه په شوق او مستے م دواړه سترګے ورلوګے کړے
هله هله راته او کړے دَ ساقي سترګو خبرے
چه پرے مستے خواني داوکړے چه پرے ښکلے سرکړي خادرے

دغوی دي لیو نیه!
دَجانان شونډے شکرے

غني
حیدرآباد جیل

(*) هلےؔ = هلږي۔

# قسمت

چه څوک سوال دَ پلاؤ وکړي ورکړے دال

اکثر خوړکړي په ښکارۍ دَ ښکارۍ جال

چاته جام کښې دَ سره خاوره شکے واچے[1]

چاله ورکړے دَ ایرو په ډېر[*] کښې لال

یو وبال چه څوک په صبر صبر تیر کړي

ورله راولے دَ هغې لوئے وبال

څو مره بار چه څوک وړي دومره ورله چے

دَ زمري خطرے نه تیري شغال

چه کوم کال خلق زارۍ دَ باران وکړي

په باران پسے[2] رانډه وکړے هغه کال

لیونۍ نه خفه مشه دے قربان شم

اکثر و داغے دَ خره په ځائے کلال

غني

حیدر آباد جیل

---

(۱) واچے، واچوے. (۲) پسے، پسے بے.

(*) ډهیر: انبار، ډلۍ

# دَ فریدون دَ مور خط

خُدای دَ واده په دولسم کال په ۱۵ تاریخ دجون دمیاشتې ۱۹۱۰ع څا صرف یو او یوازې زوی فریدون • رستم جنګ • پیدا شو. دهغه مور دَ پښاور په هسپتال کښې وه. او زه لرې په مزاره کښې ناجوړه پروت وم. مُږ هم په م دَ کوټې دَ دروازې په څنګښې یو تور بلا رنګه توپک او سنګین په لاس پُولیس ولاړ وو. ټول جهان تور او تاریک وو، دَ وجود دَ ناجوړتیا سره م روح هم دَ مایوسۍ آخری مقام ته رسیدلے وو چه ناګهانه خبر راغے چه زوی دِ وشو. ماوې سبه دَ غنی روک خوئے خو میرات خونه ئے.

دَ دغې ورځې دَ درد او دخوشحالی بیان زه نشم کولے. خو درد او خوشحالی دواړه انسان ډیر ستومانه کوی، او چه آخر م ستر کے دَ هوش دنیا ته پټے کړے، نو څه وینم چه دفریدون مور راغله

او ماته ئې پوخط په لاس کښې کېښود

دا هغه خط دے :

ما د دوو لپو خاورے تاله ژوند اد جهان جوړ که
خپلې مينې دا سے يو ره م بل م تاله جانان جوړ که
دا چه زه د وفا د که د جنون جهان له لاړم
دام لال هغه لته ومونت (*) د همه لالونو ښکلے
دا زما د غرور څخښنبه د هغو کيلو جواب دے
چه به تا په ما بنا مې کښې ماته کولے غلے غلے
دا ثبوت زما د مينې د ايمان او د وفا دے
دا زما روح چه روښان شو د ده ستړے کړے کېږے
دا تصوير زما د ژوند دے خه خندل ده خه ژړاده
د شهباز د وزر شغ دے پوست سرو د بلبلے
دا ثبوت د شاه د مينے ، دا زاری ده د غلام
دا انعام د تولو ښکلے د همه ونسکين جام
دا تعبير ستا د خوبونو او زما مخ د ارمان دے
ما جوړ کړے د خپل ځانه ښکلے عکس ستان د ځان دے
په صحرا م وو خور کړے سور ګل ده د ګلستان دے
هره ساه کښې م ليکلے نوم د مينې د جانان دے

---

(*) ومونت : ومومند .

داچه زه ستا د خوبونو د جنون تالاش کښې لاړم

ستا خانې له م جوړ کړے ستانه سبه غونډ یوځان کړے

داچه ما ستا وزرونو کښې ارمان د عقاب ولید

دا عقاب م ستانه جوړ که، م عقاب م نے ارمان دے

دا سرے سرے د ساقی شونډے څه مستی او خیام

دا په سوز کښې رنګ د ساز دے د ممبر د پاسه جام

دا د نیشت، په شاملات کښې ما اجل ته کینبود ځلے

دا خوما د صبا طے کړے پرون سره بدلے

داچه زه یو رنګین خوب شم د تالاش او د آرمان

ستا په تور تاریک محل کښې سپینے شمعے شولے بلے

ما د درو لپو ځاور تاله ژوند او جهان جوړ که

ځپلے مینے دا سے یو رم بل م تاله جانان جوړ که

ما که داؤ په یو آرمان ستا ځپل ژوندون تمام تمام

ما ځپل هوش کلال له ورکه چه تر تاله جوړ کړی جام

چه ته قول مجنون مجنون شے، زه همه لیلی لیلی شوم

چه ته رنګ شے او خیام شے، زه شراب زه ګل اندام

چه ته طور شے او موسی شے، زه د نور برق او رنا شوم

چه ته شور شے او ارمان شے زه د وصل ګل سمام

ته چه شوې د اور بجرې زه هم سره لمبه د اور شوم
چه مستا زړه په تالا شي سرهٔ شو ، زه شوم لاله. زړه مام

داچه مستا سوندې شوې تږې د مستې د سرو شرابو
دا خو څکه زه جانانه هم شراب شومه هم جام
تا چه سوال د رنا وُکه، دَ بهار صبح صادق شوم
ته مېین چه په تیاره شوې، زه دَ ډمي شوم ماښام
چه تا نوم دَ غُرا (۱)، وا غشت(۲) ما کړه مرکّته ډیوه ملبه
چه تا نیت دَ طواف اوکه، نو ما وتړو احرام
ما دَ دوو لپو خاورې تاله نور او ګلستان جوړ که
خپلې مینې داسې یو رم، بل مې تالهٔ جانان جوړ که

بهکنوتر
۱۹۵۰ع

(۱) غُرا ذیکی. دَ عربو د جنګ بت خدائے وو، دَ اسلام نه اول. (۲) وا غیست

# « اول ستر کے ستا د لید وخورا »

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم یا لیلیٰ پېژنم یا ایاز
زه خو غم او اور او دلدار پېژنم یا رقیب پېژنم یا غماز
دے نسکور شمکور(*) ته د نور قصے د جنت قصے د جلال قصے
منز کوري(+) ته د زهر قصے د ماښام قصے د ملال قصے

زه خو گل او چمن او شراب پېژنم او بهار پېژنم او خزان
نه خو شرنگ او رنگ او کباب پېژنم نه گناه پېژنم نه شیطان
دے د ملا هوش بے هوشه د خو طمع ته به ظلم دِ رته زهر دے
دکیگر نه ستا د مال تو طمع او کیگر غریب له اور دے
دے شکور نه ستا د لید و طمع، دے نسکور نه تا ته د تلو طمع
اول ستر کے ستا د لید و خورا، بیا کره د مینے و طمع

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم هغه خرم ته به چے حکلے شم
زه خو شرنگ او غور رنگ او ستار پېژنم او جانانه هغه لیدے شم
زه خو ناز او ملیز مسخره پېژنم ښکلے خط پېژنم ښکلے خال
زه خو شونډے پستے او خُله سره پېژنم، او رنگینه خندا د وصال

---

(*) شب کور۔ مشوکور۔ (+) منز کوري، د موږک چرچي۔

زه خوسترګې خوږې په ارمان پېژنم، او نرۍ ترمګې[1] ملنګ نام

زه خوست او منت د جانان پېژنم، د ساقي په سرو ګتو کښې جام

د ملهوش بې هوشۍ ته د نور قصې د جنت قصې د جلال قصې

دا ګونګټې ته د باتور قصې، د پرواز د خیشت[2] او کمال قصې

* * *

چه پتنګ د نمر رڼا نه شي لیدلې

ګناګار[4] شو چه په شمع شو شیدا

زړه کښې چونګ لپه هیله د خادې ځای شي

چرته ځاګې کرم پکښې دا د نور دریا

ښکلا ښکله په یو کوټ کښې دا جهان او آسمان واچوم؟

د شبنم څاڅکي کښې ښکله د سیندونو دوران واچوم؟

او بیا لا - دا - ددې د پاسه به حساب او کتاب هم وي!

د رندو سترګو بادشاه له به سزا او عذاب هم وي!

دغه ستونزې ستا دي جوړې ماله ولې شو عذاب

چه خوارۀ پرې باندې لګي د شکرونه شراب

دغه سترګې چا کړې جوړې خیشت ته وګې او حیرانه

په ګلونو کښې چا خور که دا خاښت د لامکانه

چا که جوړ ځان له مکان خپل روک[3] زما د کل امکانه

زه په څاڅکي کښې ډوبېږم - سمندر بې پایانه

---

(۱) ترمګې، تروږمې تیاره. (۲) خیشت، خاښت، نبایست. (۳) روک، ورک. (۴) ګناګار، ګنهګار.

زه یو نور د تیرې سورې، ته د زمکې آسمان نور(۱)

بې کناره دریاب د رنګ ته زه یو څاڅکې د سرور

ته ژوندون د کل ژوندون یې زه د مرګ لمحه ناکام

سمندر ته د مستۍ یې زه یو مات او سوړ جام

ستا په رحم ډېر نیازېږم ځکه یم ورته ګویا نه

د غلام ګیله هم واوره د سپوږمۍ او ستورو ځانه

* * *

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم، هغه خو دم ربه ځکه ګلې شم

زه خو شرنګ او غړنګ او ستا پېژنم او جانان هغه ځکه لیلې شم

زه خو ناز او مکیز مسخره پېژنم ښکلې خط پېژنم ښکلې خال

زه خو شونډې پستې او ګلې سره پېژنم او ړنګینه خندا د وصال

زه خو سترګې خوږې په ارمان پېژنم او نوي ترمکې د ما بام

زه خو ست او منت د جانان پېژنم د ساقي په سرو ګوتو ګنز جام

د شکوه نه ستا د لیدو طمع، دې نسکوره تا ته د تلو طمع

اول سترګې ستا د لیدو خوړا، بیا کوه د مینې د طمع

(۱) اللّٰهُ نُورُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۔

# توقه

ما به شمع کوله
تا که جوړ رانه پتنګ

تا مه ښکار له د کبوړو
تا وړه پېښ کړم په غمنګ

ما د قصې و ملنګ یم
تا رښتیا کړمه ملنګ

ما پیښې کړې، د تور زنو
تا مِ کوړله راوړو جنګ

زه خو غږ کولې نه شم
په کیلو ته خفه کیږې

خو حقه داده لویه خدایه
ته په توقو نه پوهیږې

غني

حیدرآباد جیل

# ډن کښې

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړه
لوئې یو جهان د ګلونو که
مست شو صحرا او په خوب کښې ئې
ډک تول جهان د سیند وتو که

دا روحانی کارخانه زما      زور او ستم نه خمار جوړې
دالیونے شان څیګر زما      او مینه پیسې ترینه هار جوړې
دا مصور په خپل رنګ مسرور      تول جهان مست او سرشار وینی
ډن کښې چپې او خند اد سیند      شا څکی کښې مخ د آبشار وینی

ګوره بلبل پنجره کښې جوړه
لوئې یو جهان د ګلونو که
مست شو صحرا او په خوب کښې ئې
ډک کل جهان د سیند ونو که

* * *

وته سپرلے او ځوانی شوه کښې      لیونۍ روح او رنګین ما بنام
خوا کښې ګلاب ئې په مستئے تیر شو      شونډه وکښې رنګ او ګوتو کښې جام

| | |
|---|---|
| وړه چینه شوه چرته روان | ډرونډ او مرګئ شروع که ساز |
| ډرونډو ډرونډے شو عشق راز غوړان شو | خیشت پټ کړه شال کښے دَ مینے راز |
| بیا خزان راغے ګلونه لاړل | مستا ړ شو غلے او شراب کم |
| ځوانی رخصت شوه خندل نایابه | دعا اوږده شوه او رباب کم |
| زړه خپل تخت ورکه سر او سوداله | دخت شو بادشا او ډرونډن مرینے شو |
| مستئ جنګ بیله توره ئے کینبوه | سرور غلام شو جنون مرئے شو |
| واړه رنګونه تیرے کښے ډوب شو | سبا رخصت شو او مانام راغے |
| او میخانه شوه دَجرا دکه | ساقی رخصت شو او امام راغے |
| خوناکهانه وړه لولکه | په خوب بوده شو او خوب ئے ولید |
| نوئے سپږو او سره ګلونه | دَعشق ایمان او نرتوب ئے ولید |
| دَ خپلے مینے جواب ئے ولید | نوے لولکے نوے ګلونه |
| روبنائے ولید یو نوی رنګ کښے | خپل ارمانونه، خپل امیدونه |
| مصور په خپل رنګ مسرور | تول جهان مست او سرشار ولید |
| دن کښے (۱) چپے او خندل دَسیند | څاڅکی کښے مخ دَ آبشار ولید |
| ګوره بلبل په پنجره کښے جوړ | لوے یو جهان دګلونو که |

مست شو صحرا او په خوب کښے ئے
دکتول جهان د سیند ونوکه

تهمند بانی حبل

(۱) دن = دَ ند .

# جنّت (۱)

ستا دَ رحمت څه حد هم شته دے؟ اے بے حسابه اے بے پایانه
ستا ښائست او مینه څوک شي تللے، دَ ستر کو پټه روک دَ ارمانه

د ملا سترگے دَ تهرڼد کے راته قیصے کوي دَ دوزخ د اور زور
دَ جانان شونډے دَ گوگو دے وي[2] راشه او گوره جنت کښے اور

مرگ بلے سترگے او خوږے نغمے راته خوزي[3] لحد. نیست او عدم
شیطان، ملا، دوزخ په یو آواز وي. ستا گناه ډیره ده او رحمت کم

مشک واره عصا په لاس، قبا په ولی دستار په سر
لا تو وزرے د بلبل اینبے، ښائي شهباز ته دَ الم سر

ښاپیرک مشرے د کاروان، دَ دنیا ښائست او سنگار لټي
سامري زاري دَ زربت کښے ژوندون مستي او خمار لټي

---

(۱) په جنت ما نو زه هم دوه دے او زه دوه او زه دوه ټکلو لیکلي دي، مخکښے بد لښي داستان په دماغ کښے د جنت تصور ډیر عجیبه او لطیف دے. خو عام انسانانو دَ یو تصور د پاره هم دوه دہ دنه دے هضم کړے لکه دَ جنت دَ پاره. (غني)
(۲) وي: وائي. (۳) خوزاي: خوځوي.

کو نکت دَ سوتو پہ دیری پورتہ ، زیرے لوګے تہ دَ نوہیان کی

چینجی دَ خاورے پہ ممبر برہ ، قیصے دَ حورو او دَ آسمان کی

خکہ پہ چغوزہ دَ جماتہ لاړم پہ لوری دمیخانے

دے خپلو سترګو دوب کړم ډالہ کړم ہم شرابی کړم ہم لیونے

خو چہ پہ بلدو او بد رنګو خپل لکہ دسکور لوګے ادا او رشمہ

چہ سُر او تال م تیارہ فناکری دَ بے وسئے فریاد ژړا او شور شمہ

نو ځان تہ دایم تاتہ وا و روم دا دَ مجبورہ زړګی بہانہ

ستا خیشت او مینہ ځوک شی تللے اے بے حسابہ اے بے پایانہ

غنی

خانپور جیل

# سپرلے

بیا سپرلے راغے بیائے پیغام راوړه
دَ رنګونو۔ ګلونو۔ او۔ رڼا
شو ساقی مسکے ډک ئے جام راوړه
د مستئے۔ خوائنئے او خندا

یو سبا راغے ۔ یوه شپه لاړه
دَ تیرو ۔ یریدو۔ او ارمان
یو زیرے ګل م مابنام ولیده
سلامونه ئے کړل دَ جانان

دا دماغ زما چرے نه منی
چه د ګل خالق په سفر کړی جوړ
خنک خوږے به پے زما کړیکے لګی
چا چه ماله نرګس او دلبر کړه جوړ

دا شینکے چمن۔ دا ګلونه سره
دا مست مست ئے نه شا مستا مابنام

دا ثبوت دَ ساقي دَ مينې دے

دا دَ سرو شرابو بر پوره جام

دساقي چه سترگے خمارے دي

دا خمارے ماته جور کړے دے

دجانان چه شونډے دلدارے دے

دا سينګارے ماته جور کړے دے

دا سپوږمۍ اوستوري اومست ماښام

مشغولا (۱) زما دغمونو ده

دا په ما مئين دے مالک زما

څکه دکه دنيا د ګلونو ده

سپړلے څه دجانان مست شونډے

هر ساه او زره کښے ښکل نور خور دي

په ګلونو کښے خپله دنيا خورې

په نسيم کښے رنګونه دَطور خورې

چه ترخو يوه نظاره دَ رنګ

دَ غرزنګ دَ مستۍ په انسان کښے کي

ترهغے به دازه وُ نه منم

چه اورونه به هغے جهان کښے دي

(۱) مشغولا ۔ مشغول ۔

زه جور کړے نه یم سزا له یار
زه ئے جور کړے یارانے له یم
مانه مینه، خندا او مستی غواړی
که جمات که بتخانے کښے یم

بیا سپرلے راغے بیا ئے پیغام راوړ
د رنګونو، ګلونو، او رڼا
بیا ساقی راغے ډک ئے جام راوړ
د مستئے، خولئے او خندا

بیائے سرو ګوتو کښے ونیوه
لیونی ته جام دغمونو ډک
د ژوندونه ډک، د فراق نه ډک
د وصال د رنګونو خوبونو ډک

فروری
۱۹۵۰ع

# ژوندون

لکه کال کښې سپرلے او خزان — لکه روح کښې سبا او ماښام
لکه سیند کښې چپې او غلې شتے — لکه ژوند د مرگی دے غلام
لکه تله. خلاصیدو د مستے شته — تښیدو. ماتیدو. د هر جام

ژوندون څه دے یو سیند دے روان دے — اول لوے لوے موجونه کښې تو نه
بیا تش شړ شی چپې لے ورے شی — غلے لگے شی دیر شی د بونه
اول هر یو غوټۍ ونک کښې ورانے کی — ورانوی غوړ زوی کوی لوے غرونه
اول هر څوک روکی یو (*) بی ځان — بیا د بل شی روان کړی نهرونه
دریابونه لوټ لوټ کړی فنا کړی — غوټکونه لښتی کړی تالاکړی
یانے هر څوک د خپو لاند دل وی — یا مرئی شی خدمت د هر ځاکړی
ځان کړی روک خو کلا باده نرکس کښې — په زر کونو سیندونو پیدا کړی

ژوندون څه دے یو باغ دے لوېږی * * * روکیدل دی د خیشت (۱) زیاتیدو له
خپل ژوندون خپل سنگار ورکول دی — سوزیدل دی ژوندون خوریدو له
د انگور په شان روک فنا شه — چه خمار شے د چاستر کو سره له
د منصور په شان او خیږو دار ته — څه بهانه لټوه رسیدو له

(۱) خیشت: بنایست. (*) روکی: ورکوی.

ترونده خه دي يو خوب د ليدي شي دخندا او ژړا واک د بل دے
يو دوران د سحرا و ما بنام دے د مابنام او سبا واک د بل دے
يو رنګين شان محل د هوا دے د مرګ وت د هوا واک د بل دے
باغ د بل په ګلونو زه پريم غم زما د خندا واک د بل دے

***

ژوندون څه دے يو ساز دے عجيبي
کله پوست، کله زير - علم بم
کله اور سوز يد، شور غوغا شي
کله غلے، قلار، شومه دم
کله شرنګ د ګنګروشي خارشي
کله يخ اسويلي او ماتم
کله تال مستانه د خيام شي
کله سپور ما بنامونه د غم
که دي ترغ . که وي خوږ تير به شي
ژوندون څه دي يو خوب د ليدے شي

غني
دار الامان
په پېړول

# بلہ لار

رحم فقیر لہ روا ، بادشاہ لہ حرام دے

شاعر لہ کوټ دَ زمزم دَ میو جام دے

ببنل دِ مینے کمال خون دَ انصاف دے

سخاوت شان دَ خان مرګ دَ صراف دے

رقیب لہ شور او ماتم یار لہ وصال دے

یو لہ دَ وینے څاڅکے او بل لہ لال دے

مالہ دَ ګند ګندا ۔ لالہ تہ بام دے

یو لہ دَ مرګ پیغام بل تہ دوام دے

دعجیبہ ژوندون عجیب کاروان دے

دے کوز دوکان کښے ګټہ کښ زیان دے

یونا ست محل کښے غمګین حیران دے

بل تہ ایرو کښے وِیر پروت ایران دے

دا روک کاروان کوم خوا روان دے

روند ئے نظر دے اوچ ئے ایمان دے

ظالم ـ جابر ته ـ سجده ـ دُعا ده

هیرے دَ عمره رحیم رحمن کړ

دَ زور او یرے (۱) بت ته نه کو ـ نه

رکړ ترے دَ مینے ـ د نور مکان دے

دَ بل دَ وینو ئے لاس کښے جام دے

تنګ ئے جمات دے رونډ ئے مام دے

خوږ څه وکړم چه دینم په تیرو کښے رنګ دَ یار

دَ ګلو نور ژید وکښے امید ونه دَ بهار

دَ تاوان قلا کښے پته ـ د جنون ناوے مستانه

رنګ محل ته نه شم تلے دَ صحرا نه دَ جانانه

ماله غم ماتم دَ یار نه دَ غم دَ غم تعویذ دے

ماله بلکل ته کتنه بے شې دَ شوق دَ بیزدے

هغه غم چه مستول کړی دَ نامبات (۲) نه لذیذ دے

زلیخے ته تور خنکل دے دَ سوی محل که دَ عزیز دے

ماله بله لاره نشته دَ جنون او دَ جانانه

کنې خوښه م خندا ده ، دیره دیره دَ ژړانه

غنی
دغر سر
ډیره اسمعیل خان

---

(۱) یرے : ویرے. (۲) نامبات : نبات.

# قسمت

زه نرمه خټه یم لاس د کولال کښې

یا به د میو جام شم او یا کوزه د جمات

یا د دیوټې د زیارت د میخانې فانوس

یا د ډیران ټیکرے سرے او مات

ځوانی مستی ړندونو د بل د لاسه دی

ځانه وس شته او نه هم واک

شیخ په باغ کښې د یار د کوره

کوم ګل پلیت کړمه او کوم پاک

ښکنځه ملامته زه په ګناه شم — چه وس قسمت او تدبیر د بل دے

ښکنځه ستوماڼه زه په خندا شم — خوب دې د بل او تعبیر د بل دے

هم ګناه ده مین په ګل یم!

نه زه د ګل آغا نه د نظر

نه هم د واک دی خمارې سترګے

نه اوربے شونډے ماته شوس

ما نه دی اېښی د یار نظر کښې — سپرلی ګلونه او سرو خمار

ما د خپل نوم نه دی جوړ کړے — شړنګ او غوړنګ او ړنګ دبار

ما د سبا په پسته دنها کښېنې — نه دے خوږ کړے د جادوساز

چا شیرینئ وو فرهاد ته خوله — چل جوړ به محمود که خان د ایاز

زه نه پوهېږم چه چا رومبانه
د زهرا نور که په مخ د لال کښېنې

زه تصویر یم د بل د کوتو
بے جبانه (*) خته لاس د ګو لال کښېنې

یا به قسمت وی یا به دوزخ وی
او که وی دواړه نو ته رحمن نے ؟

نه شم زغملے . نه شم منلے
چه ته جلا دے او هم جانان نے

غنی . خانپور

(*) جبانه : ژبانه

# قارغان مارغان

تر اوسه پورې موږ د ژوند د هغې مسئلې وار هو دا وار ولې. د کومې ورځې نه چه آدم له فنا نه هوش ورکړے دے. دا سوال ئې د مغز د هغې دا روان دی. هر سړي وله د خپل طاقت او پوهې په مناسبت جواب ئې کوري. انسان ئې د هر سوال جواب ښته ولې د مرګ جواب ئې لري. د جهان اکثرے فلسفے او تول مذهبونه د عزرائيل د شاهنشاهيت بر خلاف بغاوت دے. تول د دغې تورې ګنډ نه تښتي. څوک په ګنز، څوک په ميل او څوک په حيله. خو د غفلت چغه بي، الکه چا چه په ځوانۍ کښې پوروخ د ملے وه.

## خاورے

چغې وي اجل مُلا ته اورے که نه اورے
تشه خاوره نه دے غني څنګه به شي خاورے

---

او يا بله ورځ چه د لحد په توره زمکه د مستے سوړ شال

ويړ کړے دو.

---

(١٥ دي، دمي.)

# مرګے

مرګے دِ راشي — چه کله ئے وس وي
ګل به مِ لاس کښے وي — او یا به اَس وي
یا به تو پک وي — یا به قلم وي
ډوب به خندا کښے — دَ دنیا غم وي
په خه مو بخت وي — دومره به بس وي
مرګے دِ راشي — چه کله ئے وس وي

ولے آخر سرے سترے شي ، او دا اومني چه ،

چه جام کښے ګوټ ګوټ — شراب ځمیږي
سپرلے خلاصیږي — ګلاب کمیږي
دنیا دَ شمع کښے — دَ سحر نور راغے
سکور دَ بلبلو ته — نوم دَ باتور راغے
ستار کښے شرنګ هغه — دَ ماښام نشته دے
سرور په سترګو کښے — دَ خیام نشته دے

دَ ښکلي نه ښکلے ، دَ مست نه مست ، دَ سُور نه سُور ګل آخر خپلے حېرانے

او غمجنې سترګې د خزان يخو او بې رحمو بادونو پورته کړې

او د خپل ژوند د شروع او خلاصيدو تپوس ترې وکړي او

د هغې ته وايو مونږ فلسفه .

زه مرګ يوه ورځ په مخه کړم . او د خپلې مور د سينې نه

نې د خاورو هغه ډيرۍ له بوتلم، کوم ځاى چه په

يو دشت او بيابان کښې د هغې ملګري پراته وو، ماچاپېره

چاپيره اوکتل . ستغ ډېب، سره خاورې او شنه کاڼي

وو . دلته نه د ګلونو چمن وو، نه د بلبلو باغ، دې د بدرنګۍ

په مسئله کښې د حسن يوه قطره هم نه وه . زه د خاورې

د يو ډيرۍ خوا کښې اودريدم يوه ماته شنه خازه وه

مثل ديرش کاڼي بنکته پراته وو . نورے لمو او چې

ترې ورې خاورې وې . مرګ هم را ورسيد او شاته

م د آسمانه اوچت ولاړ وو، خو ما سر اوچت که او

د مرګ خالق ته م اووې،

زه د هغې لال زه د هغې دسترګو تورومه

زه به د هغې په سينه تل ګوده نسکورومه

اوس نې بنکته بنکته د مزار کاڼو ته ګورمه

خاورو کښې هغه ده چه نه زه د زړه هلال ومه
هغه لال شو خاورې چه زه وړو کې لال ومه

لار مې آسمان ته ماوراې د جهان مو سپوږمۍ
زور د مرګي زیات دې که دې زیات د مینې نور سپوږمۍ
اوري په لحد کښې څوک د سوي زړګي شو سپوږمۍ

موتي خاورې څنګه پټ د حُسن یو جهان کړي
یو پوکې د باد دا چمن څنګه بیابان کړي

خول م نه جوړیږي چه ظالم ووایم رحمن ته
خو مرګ چه د جهان بادشاه کړم څه ووایم خان ته
ولې د دروازه د علم لو(۱)، نه شوه انسان ته
سیال نه د خان ولې کړم چه نه د خاورو سیال ومه
هغه لال م څه شو چه زه وړو کې لال ومه

---

خو د ژوند ښایست دا دې چه ټول عمر انسان سره د دې د خلاصید و فکر نه وي، کله کله نه دا تورې غمې هېرې شي، او په خپل ماحول کښې د وړو وړو غېزونو په تماشه شي او د وړو وړو شمعو په تالاش کښې ځان د هغې لوئې تاریکۍ نه اوتښتوي.

(۱) لو ـ لوی ـ پرانستې

دَ حیدر آباد سنده په جیل کښې زما دَ توتے توتے

مستقبل نه علاوه ډیر نور څه هم وو، د چکنې دَ دروازې په خوا کښې

د میږو جالې وې، کله نا کله به زهوېز د احاطې په کیکر کښې کمترې(۱)

کیناستې، کله به مونیمه شپه کښې دَ تارو چرچق واوریده

کله به تور قارغه لکه دَ یو جمهوریت وزیر اعظم دَ شور او

چل نه ډک په دیوال کیناست. دَ ممبې خواله به ماښام کښې

چینړ خه راغله. دَ دیوال دَ پاسه به دَ اوبس بړبړ راغې

او په دغه وړوکښې زه ډیر وږے تږے او یوازې وم، نو ما

دې تولو سره خبرې کولې. میږو ته به مې خپل دَ تیلو

پوخ ساګ(۲) غورزوؤ، او کمترو ته به مې خپله دَ باجرې ډوډۍ

چورې(۳) کوله. دا روان شعر و نه ما دَ هغوی په مجلس

کښې لیکلی دی که زه دَ هغوی په طبیعت نه یم پوهې شوې

نو معافي غواړم زه دَ انسان هلکوالی لرم. او دَ چینلخ

په خرمن نه شم ننوتې.

---

(۱) کمترې: کوترې. (۲) ساګ: سابه. (۳) چورې: مالیده.

# چینلخ

ځ دِ دَ شېځو په شان نه خاندې او نیاردے
ښنکلے دِ آواز لکه دَ ژړندے دَ غرار دے

ستړ بتې بتې، بغې بغې تشې تشې
څپه دره منے غریبه، توره دره اوربشې
ګُله کړه وړې لویه اوږده او وازه وِیته
زرد دِ زرې کے خوږشې دنګا چه کړے راپلیته
خیته دِ چیتۍ، لویه او پلنه دَ لاله په شان
لنډے دِ پاپے، ارتے سپینې دَ منتولا په شان
توپ وهے ټُل نه کے څه بد رنګه دِ رفتار دے
ښنکلے دِ آواز لکه دَ ژړندے دَ غرار دے

اوسے په اوبوکښے دَ تمبخ او دَ ملښې په شان
کښې دِ دَ سړې مسے کاته دمار مُلې په شان
ګرزے په پټوکښے دَ نولې او دَ لومبړ مسے
توپ دِ د ملخ په شان، غتّے دباکوکړ مسے

څه اوبه څه خاوره شوے څه مېږ څه کبوړے

کله دِ په سترګو ښکښې چپې وی کله دوړے

رنګ دِ بے نمکه دَ خزان نه دَ بهار دے

بنکلے دِ آواز لکه دَ ډُرنډ دے دغاړ دے

شهپ کله بنانګ ښکښې کله شهپ دَ لښتی غاړه ښکښې

چې ماشُے چه پېښ شی خیل خانه ورله دیجاړ کړے

خوب کوے په خاورو خوستی یاری او بو ښکښې کړے

او سپے په تیراه (۱) ښکښے خوږچې راوره پیوړ (۲) ښکښے کړے

پښې دِ دَ بتے او لینګی دَ چرګوټې په شان

چیت او لنډ او پلن، راغونډ وجود دَ مږهتی پښان

مخ دِ دَ دله دے رنګ روغن دِ دَ بنامار دے

بنکلے دِ آواز لکه دَ ډرنډ دے دَغاړ دے

---

(۱) تیراه دافریدو وطن.

(۲) دَ پېناور خوا ښکښې کلے دے. پکښې مشهور زیارت دے.

# مږه

اوسې په کندوکښې یاره غل نې پلار دِ غل وو
مور دِ غلچکۍ وه، ستا نیکه دَ بدو مل وو

قوم دِ حرام خور دې قبیله دِ حرام خوره ده
مر شوې په غورو پسې لګنې توره دِ سپوره ده

سترګې دِ کاسیرې دي، چلباز دي بې شرمې دي
کلک دِ دي غابنونه او پاپۍ دِ نرې نرې دي

خېټه دِ کوپۍ ده دعدو بادَ شنانه مې
سر دِ دَ نولې او برېتو کې دَ تُره باز مې

غلا کې دَ غربیه غلا دَ خانه، دَ بنهیا نه کې (٥)
سید او مُلا نه پېژنې، بوته دَ هرچا نه کې

ستا دارو کې (١) خېټه دې همه جهان مړه نه کړه
ستا کاسیره تنده دَ عمرونو غلا سړه نه کړه

ذات دِ خُناور دې خوخوراک کې (٢) دَ انسان مې
اوسې په سخسورې کښې نیرنۍ ختې دَ خان مې

---

(١) اروکې = دیوکې . دره (٥) کې : ګوی . (٢) کې : کوشت .

زړه دِ دَ يزيد دے طبيعت دِ دَ شيطان شے

چين دِ دَ منت دے خوځمت د پهلوان شے

خوور شے چه پيشوله نو پولاد پيتی دِ هيره شی

پښ په خيته مور شی په تاکياره . باره تيره شی

غل تر هغے غل وی چه ترے برۀ غل پيدا نه دی

چل تر هغے چل وی چه ترے برۀ چل پيدا نه دی

دوه دانے ترے او خورے دوه دری خاورے ايرے کړے

اوبه ے خوله دِ خاورے شه انبار ذرے ذرے کړے

خوے دِ دَ خنزير دے او فطرت دِ دَ ښامار دے

خوله کښے دِ آفت دے او په شونډو کښے آزار دے

خوغوټه چه شی سخته آخر سينه ئے چاره شی

ته شے په جوارو پيشوکسان په تمامه شی

او سے چه کوم کور کښے حرام خوره هغه کور لوټے

دا سے حرامی ئے خپل بابا او خپله مور لوټے

خوور شے چه پيشوله نو پولاد پيتی دِ هيره شی

پښ په خيته مور شی په تاکياره باره تيره شی

# بازیگر کمتر

چاله لوږه چاله تنده
چاله نور چاله نظر

خوک بندی د خپل ګناهګاری
خوک غلام د خپل ځیګر

یو جوړ کړی د سقر نه
سره کلونه ماریګر

بل د حورو د غلمانو
نه جوړ کړے دے سقر

په نیکری پسے ژاړی
یو خوا ناست په تخت قالین

بل خوا ز رنګه وصال دے
او لکها قسمه بیلتون

چرته سپی ته خپله لوږه
هم لیلیٰ شته هم مجنون

کله خرته خپل خرتوب شی
مست جادو رنګین افسون

دلته ړنګ بله ننګی دوله
د احساس د تول یو جام دے

زما سترګو پیدا کړے
سپین ساقی او تور الهام دے

شپه او ورځ زما نظر دے
روند له نمرا او ماښام نشته

زه عاشق ځکه د رب یم
چه انسان له دوام نشته

رټبه دے هرڅه، او هغه چې زما هوش پے نه پوهیږي

رټبه زما د روکیډ ونه بڅره ، لوړے ، سپین مقام

رټبه زما د هوش صحراله یو محل دے د کمال

رټبه زما دے مستري سره له د مستۍ بر پوره جام

دا د روکو په وطن کښې یو ارمان دے د دوام

دا په تورو تورو شپه کښې محبوبا ماه تمام

چه امید د هوش یاغي شو

چه مدهوشه شو نظر

خپل طاقت ورته سرحد شو

په سیل ووت بازیګر

# کوچے

"کوچے" زما یو ډیر زبردست سپین سپے
ما قسم قسم سپي ساتلي دي ـ انګریزي
جرمني، لغړ او ببر، ولې د کوچي
په شان بهادر، خیشته
او اوبښیار سپے
نه پیدا شوے
دے او نه به پیدا
شي، زما د بند په دوران
کښې مړ شو.

زما کوچیه! زما کوچیه    ته خو سپے نه وې زما آشنا وې
په تنه تړوې ترا زمریه    قیصه د مینې نوم د وفا وې
چه زه اوچت ؤم د کل جهانه    په لکها سرو م دا سرې بره
ستا سترګې زړې د مینې ډکې    تیره د ژوند د ځان او سره
چه زه آسمان نه خاوره له راغلم    تاج م راکوز که اوچت دل م وا خست

شال او د دستار او خلعت مې ورکه — کندم په سر که او جولۍ مې وخت

ما ته زه هغه شان د ملک پادشاه دم — هم هغه ستړګے هم هغه مینه

چې ټول جهان غېل دا رل کړل — تا ته قوله لکۍ د مهینه

ته خو آشنا وے زما د سترګو

نه مې د زور وے او نه د زرو

د تقدیر تول که دروند که سپک شو

ستا بس یو تول وُ او یو نظر وُ

ته زما یار وے د بدو ورځو — د بدو ورځو یار نه هیریږي

چې ټول جهان یو تور صحرا شي — د سرو ګلو نو خار نه هیریږي

هائے چې د ژوند په رڼا کلے

سترګے روښانه ستا د وفا وے

زما کوچیه ! زما کوچیه !

ته خو سپے نه وے زما آشنا وے

(مهمند یانې)

# تورانۍ

دا مې ټکي په پښتو ژبه کښې نشته
تورانۍ چې پرې زه دوایم تا ستا

دې دَ خاورو جوړو شوند کښې ښکلي خاکم
خوشحالي، مستي، ځواني او خندا ستا

دَ غوبړ خنګ په تولو کښې منکاره کړم
خنګه کیږه کړم مېښومني دژ دام کښې

خنګه و نیسم په کوتو کښې سره دستا
خنګه واچوم دَ نور دریاب په جام کښې

خنګه خوب دَ ځوانۍ کړم بندي دَ خاورې
په غم او تلم رنګونه د وصال

خنګه نور دَ یار دَ سترګو لاس کښې واخلم
ځرنګ او ترم پنډ وکي کښې هلال

نا دیده غلام دربار کښې دَ سلطان
دا مې زه ولاړ دستا عُش ته حیران

داده بس چې مجبوري م خپله او منمه
تورانۍ نه شم کولې ستاییان

خو چې ستا پیغام دَ نوي صبا واورم
لکه ګل چې دَ سپرلي واوري پیغام

تیاره هیره کړم په طمع دَ رڼا شم
په لحد کښې او څکم دَ مستۍ جام

امید وي ېښې ژوند ته بل خیښته مشال کړي
دَ مرګ دَ تخته تاو دَ ژوند و ن شال کړي

# مُلا چرګ

زیړ دِ قمیص دے ... خرِ دِ خنبتک دے
شمله دِ نیغه ده ... او کوټ دِ بړک دے
توله ورځ ګڼے ګڼے ... په ځان مینه
چا خوار چینجی پیے ... کَندہ کوینه
نمایشی شان نے ... کړے دَ نخرو الوته
دَ مشرو تو نه دِ ک ... ستا قدمونه، کاتهٔ
بچے بچے دِ ستړکے ... دی دَ "پشتو"(۱) په شان
په دریغه دریغه تله ... دے دَ تتو په شان
دَ سلیمانؑ دَ لالی! ... نوم او صافه دَ امام؟
یو خوا قبا او تسپے؟ ... بل خوا پیاله او خیام؟
یو خوا سپین روږے ملک ... مَر یئے دړه سم او قانونؑ؟
بل خوا د مینے دلال ... بندی دَ ږسم او افسون!

---

(۱) "پشتو" زما معزز او محترم دوست مهردل خان دَ صوبی - خان خیل ښد ئے وړو کے دے، خو دماغ ئے ډیر اوچت دے. او مونږ ورته دَ قهر او محبته - "پشتو" وئیل.

یو خوا تنګی تاریکي     دَ بل د خیال سودا
دَ مال او بیچ سودا     دَ خان او مال سودا
بل خوا دَ بل په سینه     خان او ناموس ورکول
پټ شاباشی له دَ زړه     دَ خار جلوس ورکول
یو خوا دَ بل سترګو کښې     د دړنیلو تالاش
بل خوا دَ ماتو خانګو     دَ الوتو تالاش
زیرک او معقول پخمنیه     پکښ په سر مُلا
تا کښې ښکاریږي ماته     د ژوند عجیبه قصه
چه ګله ته والوزې     ملکه سباء ووینم
او سلیمان ته خاړې     تو له دنیا وګوینم
دبحر و بر بادشاه     وړے شان جوړے ته
قربانوی خوشحالي     دَ غم میر منے ته
د ګل خندا وګوینم     دَ لولکۍ پرواز
دَ محمود او نے سترګے     معصومه ګله دَ ایاز
نه دَ آدم دَ جوړښت     په وجه راز پوئ شم
په خپل انجام پوئ شم     په خپل آغاز پوئ شم

# بورا

تورہ بورا تورہ — نہ مهمند ئے کہ ختکے (٭)

نہ ہو کبنے دِ گو نگت — دا ارمانو نہ دلو لکے

مور دِ گل اندامہ ڈہ — بابا دِ ڈُرابان (۱)

رنگ دِ دَ شاخیل — او طبیعت دَ شاهجهان

بنگ دِ دَ دمبر دے — فلسفہ دِ دَ خیام دہ

تورکو نگتہ تاکو مخانے — ښکلے خواد جام دہ

تا دَ رنگ او حُسن ساز — دَ چا پہ ستار واوریدلہ

تا دچا دَ غُلے داستان — د مینے او یار واوریدہ

اے تورہ دیچکیہ تاکبنے دَ شیرازوی

اے خپہ مابنامَ : تاکبنں نور اوگلاننہ وے

خو یارہ تاکبنے م ! — یو صفت بَدی شی

ستا کو خہ د بنانِ ! — م عادت بَدی شی

اے مرجائی عاشق — د یو گل یار نہ ئے

---

(۱) ڈُرابان هغہ دیو وو چہ پہ گل اندامہ بنا پیرئی مئین وو.
(٭) ختکے : ختک ئے .

دَ مینې نوم دِ سپک کړ    دَ یو دلدار نه ئې

هره لمحه لحظه کښې    نوې خمار لته ئې

او په مذهب دِ مینې ته بې وفا ئې    پروان دبل وې او نن زما ئې

په رڼا او بوی مینه    جانان دِ هیر دے

خوانی مستی ټکلوے    خزان دِ هیر دے

دَ فراق تور غمونه    ژړا افسوس او ماتم

هیر دِ دی اوچ سیلۍ نه    زړه خوانی، نوے غم

دَ زیړو ګلو شان کښې    مرګ روکیږ دِ دی هیر

دَ نن په شوق مسته    سبا اتکه دِ دی هیر

داسې بې توله ته ئې    څنګ بې پایان چه زه یم

ته دَ صفه ئې بوړا    دَ چا انسان چه زه یم

تا کښې رڼا او تیاره

سپین شته او تور شته

چه ته ښکاره شې نه وېم

زما هم رور شته

# تارو

ډکوړه یو ونځے تور تارو په سجده پریوته
وے کړله رب ته عجیبه غوندے دعا

وے تور و لے تنده ے دے اوخړو و لے زانه ؟
وے یو ـ باتور ـ یوه ګنجے ـ یوه هما !
زه به تل حسین یم او ښکاری به تل یزیدی ؟
لاس ګنډے علمدام ـ کله توپک ـ کله لیندۍ ؟

پرده بورا یوسی تور بورا د ګلو مینځ له
پروری ګنجے غریبه بوی له او دیران له
پروری لولکه، لکه باد د ګلو پاسه نے
پروری پتنګ د ناله ، سوزله، او تاوان له

پروری مینے د تورانئ بنا رومنبو کے له
پروری کرکوره د شهباز او شکری نو کے له

پر قارغه پرکند، پتنګ ور وا چوي په اور
پر عقاب له لغړ او تیموس له شي پیغور

پر یو په باغچه کښې د صحرا د دړې لیواله کړي
بل له جام د ژوند شي، جام د زهرو د منګو

پر د عقاب لوی شو رتبه وي د تنزرو!
وي هر مارغه کښې نشته تله د توتکرو

وي هغه ملک دې د شهباز د شکرې کورکه
کوم ځائے چې درانه ګرزي سیلونه د کمترو

یو تنزرې بس دو ستا کمال ښکاره کولوله
ښکلې د طاوسه خوش زبانه د کمترو

بس چې یو مارغه وے، یو ئې پروے او یو ته وے
بس چې تل باجره وے، خاورې دوړې د ګوا سنه وے

بس چې تل سپرلے وے، زیړ ګلونه وے، سبا وے
بس چې بس یو ته وے، یو ارمان وے، او یو ته وے

* * *

تول جهان خاموش، شور د خپل زړه آوازئے واوریده
زیړ لکه غلام، د بادشاهانو رازئے واوریده

تول جهان خاموش و، یو آدم وو چې ګویا نه شو
مینې داسې یو روے بې خبره د خپل ځانه شو

وے، زر لکھا سوالونہ ځوند جواب یم زہ دَ ټولو

زہ یوہ قصہ نہ یم، خوباب یمہ د ټولو

زہ ګلہ مراد، ګلہ ارمان، ګلہ غرور یمہ

زہ تمنګ او تکور یم، زہ شراب یمہ د ټولو

زہ یمہ مخلوق خو د خالق در ننګہ ډک یمہ

زہ کامل کمال، زہ سُر رباب یمہ دَ ټولو

زہ یم تور سے بنجے د باز سترګے دَ تنزرو

ما کے پټ ارمان دَ حُسن۔ زور دِ دَ وزرو

پهار پور

# کورکوره

خومره ښکلې تصوير دې ستا — خومره ښکلې دې آواز دې
ستا په نظر کښې سپوږمۍ پټه — ستا په پاپو کښې ايمان دې

مخ دې نازک د ماشوم په شان
خوئي د خيشته نازنين هسې
خيال مستانه د خيام په شان
تله د مخمورانه جبين هسې

مينه لوبې کې . سترګې دې — ناز او نخرې د دلدار کوې
ته د ګلاب او نرګس په شان — ما ته قيصې د ګلزار کوې

ښکلې ثبوت د خالق د خيشت
ماله قيصه د جنت ئې ته
ما ته داستان د کرم کوې
ماله دليل د رحمت ئې ته

ستا د ګوګو خيشته آواز — ماله اذان د بلال دې
ستا د خنا! دنا وجود — ماله پيغام د وصال دې

# مچ

شغ شي چاپېر کښې راغونډ شي — دا د څه خر پېښې رنځ دے
پکښې داسې چوړلک اووے(۱) — ته به وے د بنګړ(۲) منځ دے

اوړې ژبه د ښه خاورې
نه د خوب ښته نه قرار
په تروو سوتو مینه
والے(۳) ئې د چا آزار

د هر چا کره میلمه ئې — نا بللے بے عزته !
نه په شرپ باندې جاروزے — نه په سوک او نه په لته

تور دغ بے شمېره ستر ګے
تیار خوړئے مردار خوړئے
بد خوئ سخا د دودئ ږ
پېهوښي د پاسه سوړئے

که هنور واوی ته پرے مړئے — که غوری دی ستا پکار دی
ستا پرے بے صبره غونډه وی — که خاشنه وی که انار وی

---

(۱) اووے: ووهی. (۲) بنګړے: انګړ. (۳) والے: ولې.

بې غیرته خوځې دومره

دمره روړ وینه څښتې

اې شهیده دَ کعبا بو

اې غازي دَ پراتې

که پښتون خېلوان دِ مړه شي | ته دَ خپله خوبه ناوړې

رې داسر دَ ختې زار شه | شرپ شي زیړ ختیه دادړې

بَله بَدې دِ پاپښ دي

دلینګو پورې لړې

خَله دِ زیړو په لاون ده

چې پرون دِ وو خوړلې

سخا میوه، لبقرسې با بوریه | ستا پولاوُ فیرني حلوا ده

ستا دې ختیه کښې دوزخ دې | ستا دَ شونډو کښې بلا ده

قوله روحې چپه چپه | ستا دا خُله او زړه کا مه نه شي

دَ دنیا کن، ونخلاس شي | ستا قلمه قلا نه شوې

خیر دې زړې را روان دې | تور اور بوز به دِ چېړ شي

چینګه خُله به چرته پروت ئې | دا قلمه به دِ پا پړ شي

زه به خورمه په قلا زه

تو د شربت او خوږې کړې

دا بوږه نیا به دومړه دي

تور مچه ته بَم[1] مرې (رحیم آباد جیل)

---

(۱) بم - به هم.

# شپږ زمری

په ۱۹۴۹ ع کال کښې زه په دریم ځل د هرې پور جیل ته
راورسیدم. دا زما د بندیوانۍ دویم کال وو. په دې دوه کالو کښې
ما د پښاور او حیدرآباد سنده جیلونو کښې ډېرې بدې
ورځې تیرې کړې وې. مونږ ته اېل یاران، دوستان خپل
خپلوان د پاکستان په ټولو صوبو کښې خواره ښکاره وو. خو د هرې
جیل ماته د کور په شان ښکاریده. ځکه چه دے کښې زما بابا
ډېر کلونه تیر کړي وو. د هغه د لاس ډېرې ونې دلته کښې
شنې ولاړې وې. زه د حیدرآباد د جهنم نه دلته په کال پس
راغلم او په ډېره موده پس مې یو وړو کے د زیړو ګلونو نه ډک
بوټے ولید. هر سحر چه زه به پاڅیدم نو د هغه سلام له
به لاړم. زه په انګلستان، یورپ او امریکه کښې ډېر ګرزیدلے یم
او ډېر لوی لوی باغونه مې لیدلي دي. ولے دومره ښائست
او رڼا په یو بوټي کښې هم نه وه. څومره چه دغه غریب او
ارزان ګل له د خدا د او سپینې توهې پنجرې او چاپیره

تور ماحول ورکړے ده. د دے پنجرو کښې ماسره نور شپږ ملګري وو:

۱- پیر شاکر الله د کوجړ ګړئ.

۲- خانخیل مهردل خان د هوتی د نواب هوتی ورارہ.

۳- جهان زیب خان د رزړو. زما د تره ورزوی.

۴- فردوس د مانیرئ چه مونږ ورته د میتے نه کوګوو ایو.

۵- زرین خان د میاسے د پارلیمنټ ممبر.

۶- یوسف خان بابوخیل.

یو ما بنام م دماغ اوتښتید، دا د تر توشعرم او لیکه
او دودئ نه پس م واورو و:

دلته کښې پنجره ده په کښې شپږ دي ازمري
خوګ غټ، خوګ اوږده دي، خوګ ښاپېرۍ د خوګ نری
رورہ پاکستان عجب جوړ کړے چړیا ګړ (۱) دے
بند پکښې، دیوان، پیریان، ازوزي بنا پیري
ورته مخامخ دره پنجره ده دَ کوکو
بخ ئې اوچ یو بند ے دے په مثل د ماکو

(۱) چړیا ګهر: باغ وحش.

رنګ ئې دَ نيرنګ دے خوږ زړه دِ دَ پښتون

تن ئې دَ بلبلې خوږمت دهلا کو

وئ اوکنه، اوکنه، هن کنه هن هن کنه

يارهٔ که ربّ زهٔ کرم دَ دے تولو تولوا کو

زهٔ به دا خاربه ښتمونه کړم يو ځل نزے

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دی ازمری

اَخوا ئې زرين دے دَ وطن نوم ئې ميا سه

(۲) هر ماښام او باسی دَ خبرونو خلاصه

غائب دَ غريب نشته کښې خوښ ئې دی چرګان

هر ورځ کله دَ خوړی دره کے خوار له دلاسه

تن ئې دَ چنچنې دے خو عقل دَ لقمان

خيال کښې انتشار دی او زړګی کښې تلوسه

حرص دَ دنيا ته لعکوی دننګ کوری

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دی ازمری

(۳) بل سرکښې يوسف (۱) دے حاضر دَ غريب ورانه ده

هر رختې قصه دَ ادرقو، پوکو، روانه ده

دال ئې هوا بند کړی، الوکان ئې اينه سيزی

غور ئې زړه له بد دی مساله ئې په که، دو کرانه ده

---

(۱) يوسف خان آخر معافي او غوښته او کلی ته لاړ. اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْن.

مالکه ئے ستر گے زیرے کړی بنوروو آشوبنئي اوچے کړی
دے جیل ته حیران دے، جیلخانه ده ته حیرانه ده
چائے چه دیره اوخکی لګی اِنګی پرے نږی
دلته کښے پنجره ده پسکښے شپیږ دی ازمری

(۴)
خواکښے ئے دے پیرشاکرالله زموږ خان
مرچاته رسی، تیپیر، او ځکره، الوکان
دے خواته سپی کل، اخواغوری، اخواصابون
تله به لاس ناست وی د چلونوکئی بیان
ځان دَلوبے مرکړی خو آشنا له دالے ولیږی
کاش چه وے دَده په شان تول زموږ پیران
مالګوړ راکړی. یارله ولیږی ستری
دلته کښے پنجره ده پکښے شپیږ دی ازمری

(۵)
دیخوا ترے مهردل دے دے زموږ درو کے رور
چرته چه دے ناری هلته وی خندا اوشور ستے
یوموتی وجود کښے ئے یوغږ دَ نرتوب پروت دے
سل مرګه به واخلی وابه نخلی یو پیغور
تل به بل سوَرلی کړی په فطرت پیدا اخان دَ یښتے
مُرے ئے جوړ کړے دے غرور کښے ځان له کور

خیال ئې د موسیٰ او خاندان د سامري

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دي ازمري

خو اکښې ئې لالی (۱) دے زمونږ کښته زما ورور

(۶) قید لے که په دے چه ډ ډ ے زړی زما د ترور

دے په زړه باتور وو خکه کور له د غم داغے

ښته خلي. خلي، زما د خپلو مچې نور

دا ورو کے زړه ښنګ د وطن مینے تالا که

دا خو دے له جوړ وو چه کړي خاورے د عشق اور

دا ورو کے زړه ښنګه دهوکه نه که سامري

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دي ازمري

چه دا شعر مې واورېدو. نو تول ملګري مې چپ شو. یوسف خان خو راسره خبرې بندې کړے. زرین کاکا مهر دل خان ته خپل زړه سپک کړے. مهر دل خان هم خفه شو. ډېر باره ئې راته اووے. زه ډېر خفه خپلے چکنې ته روان شوم. ناګهانه مې هغه وړه ډه د زړېه کلونو بوټے ولید، ورپسې خو اکښې کیناستم. هغه وے وئیلے خان: بڼن خو ډېر خفه " ماوې - تول د دې دستان مې خفه کړي يې د خکه خفه یم. ما خو توقه کوله خو هغو ترے بوقه جوړه کړه ". وے - خان: دا خپله خوله دې هم تلا ده هم بلا ". د نکلی نه د کلی. بل شعر ولیکه ". نو په دغه مابنام ما د خپل ژوند اوله قصیده ولیکله او د تجربې په طور مې خپلو ملګرو ته را وړوله او هو، هغه مابنام زه په تول دنیا بنه دوست او لوئی شاعر شوم او کوم شعر چه زما تول مرور دوستان زما مینه ناک یاران کړه. هغه لیکم.

---

(۱) جهان زیب ته مونږ لالی وایو.

# اوه کلونه

یو وړه غونډې پنجره کښې — په یو کوټ کښې د دې جیل
د اوو کلو جوړ کړے — آزادي له چا امیل

(۱) اول کال نے زرین خان دے — چه په مات او کوږ وجود
د الله الله سوړے وی (*) — په تنور کښې د نمرود
(**) یوئ په سود او یوئ په زیان — په دماغ لکه لقمان
دیو خیال او خوب دیاره — په خندا خوښبوي زیان
که روند پریوزي سوالګار نه — همت نه دے حماقت دے
چه هم سوزي هم روان دي — دا مردي دا شجاعت دے

د رستم نه بهادر دے د میاسي ۰ رو کے نانا
د تر خوچا یو پیالو کښې نے کړه دوه به جیلخانه

(۲) ورپور دے فردوس خان (۱) — په مخ سپین په زړه نازک
د پښتو په نوم او ننګ کښې — د فولاد د ګټے کلک
لا وړوکے شان هلک وو چه پرې وشو امتحان
د لیلے په عبادت کښې د رقیب شو بندیوان

---

(۱) فردوس خان د ۱۳ کالو په عمر اول جیلخانے ته راغلے وو.
(*) وئ = وهي. (**) یوئ = یوه.

ډ دنیا په وارو نرمو ... په پښتو په خوږو پوهېږي

چه پښتون په تیرو سرشي ... دے لاس کښې اوغورزوېږي

خپله ګنه خاني پرېږدي. کندرا داخلي د ملنګ

خانان په ننګ خاوره ایرګړي چه پښتون ته واخلي ننګ

رب دې بوزي مانیرے ته ... چه کښې[1] بیا د آدے سیل

د اوو کلو جوړ کړے ... آزادي له چا امیل

۳) ور پسے زما چکي ډ. چه لږ بسم یمه دیوران

په میراث کښې م زبرګي ډ. خو په فکر کښې شیطان

یم پیدا د هشتنګره ... خو په فکر اتمان خیل

یوعزه ورانه، وېجاړه ... غونډ زانه ډ دے سیل

قسمت جوړ بد په نکه خوږي دما او بنګلي پلاله

نصیب پشپول ډاز غوږکړه د پښتو ګلو ګلزار له

خود بخته تېښته نښته ... زه پرې تنګ یم د هرچا نه

ما ته ډ غم او تکلیف کښې ... دي د زوند تیرول ګرانه

وړخه اوکوم وکینږم. که چا خمه د سیل

د اوو ګلو جوړ کړے. آزادي له چا امیل

۴) راپسے روکے لالي دے ... پاکستان ترے نه یرېږي

چه تاریخ انګریزي واني ... نو جناح[2] صاحب قاریږي

(۱) کښې: کړي. (۲) محمد علي جناح (۱۸۷۶–۱۹۴۸ ع)

د کالج نه نه راوښکه. د ځوانانو تورې کوڅې ته
او د مکتب د کوډرې راوسته د ژوندونو مېلو ته

دلته هغه تعلیم مومي ! چه په کال جهان کښې نشته
جیل چه ښیي هغه منبو د نه د تعلیم امکان کښې نشته

دا دې اوځم هغه استاد دے. چه لقمان او افلاطون
ارسطو، سقراط، بقراط. نه پیخ کښې دے زبون

دے بندی د انصاف نه دے دے بندی د چا د زیل
دا ورو ځکلو جوړ کړے آزاد دے له چا امیل

ورپور چکی کښې پرے. زمایار د هوتي خان
(۵)
په د جویو موتے غوبنه، په خیکر لوی پهلوان

که عیشونه که خندا وي که وي حورې که غلمان
هیڅ نه تهینګ نکړي چه جوښي د مستۍ تورے میدان

کاش چه د خانانو راورے. یو څو دا ننګي خانان
خو افسوس دا بانشته په هوتي او په مردان

څه باغوکے عقل کښې خاندی یو مثال یوه رڼا کړے
چه مهر د الکے کوتے پورے تول عقل شي چراغان

دو کے کال او دویمه نهړ دے په دے کال کښې د رامبیل
دا ورو کلو جوړ کړے آزادی له چا امیل

ورپسے شاکر الله دے    دَ هماؤنه او بسیار

(٦) په خندا خندا یې کړی    دَ هر چا دکور بیګار

دا پیرے دَ چا لیدلے چه خان او بسی مرید نه

په خندا د حسین سترګے سپایه یوسی یزیدانه

که دَ عقل په حساب شي    وی دَ زرو خزانے

دے به وي یا سکندر    یا دارا دَ زمانے

خو افسوس چه لاس نے نشته د زړګی په پیمانه

ځکه تش نوم ندښته وائی د کلونو افسانه

په شملو کے زاړه کړی    یار دَ عطرو دَ پلیل

دَ اوو کالو جوړ کړے    آزاد دے له چا امیل

آخری دے یوسف خان    دَ غنی نه مرور

(٧) هم نے مال په شمله داوشه    هم تالا نے شو خیکر

پلار نے غرور دُ سلام ننګیالے او ترہ باز

یونی په ننګ او پښتو وو دَ جنون خیشته راز

لکه باغ په ګل خیشتر وی    داسے وو په دوه سلام

ترونانے کاؤ د پښتون زړه نے    دَ ترونډو سترګو په نم

نے خیشته په مه نبکاری توخانان دباتوخیل

ذ اوو کالو جوړ کړے آزاد نی له چا امیل

دړې خلور مونوکران دي پښتانه دي څوک مندکیان

یو چاچا، یو میر قدم دے اسرافي او اکرم خان

اکرم خان د نغروړ دے، کړي کدو بنه د پلاؤ
وي ملام بانډکړے، تود او تریخ شالاو

چاچا بنه پوره بیره دے میز کرسئ لګوي چُستنه

خوروژرو غریب خراب که نوکري ئې شولې سُستنه

اسرافي او میر قدم پښتانه دي په نسب
خوارا کښي زمونږ خدمت، ښه په چغه ښه په درب

دامالیان دي اوبه اوچې په شنوبوټو د رامبیل

د اوږد ګلو جوړ کړے آزاد دے له چا امیل

ھری پور

۱۹۳۹ء

# پلوشه

که سترګې ښکلې نشته ښکلي یاد خوږې شته

که تخت د بادشاه لرې دې جلا دخوږې شته

اوږدې شپې د فراق شوې په جانان یاد ولو تیرې

که وصل نشته شکر دے فریاد خوږې شته

داغم د مینې غم د خوشحالۍ په شان خوږ دے

د غم مالک هم خان دے جا یاد خوږې شته

دا زه چه مسکې شونډې دي تیاره شپه کښې ولاړ یم

د یار مرورتیا که نه وي خو امداد خوږې شته

خدای د لالي راج هم بادشاهي د پاکستان دي!

آباد، که یو نه وي، ډیر برباد خوږې شته

چه اخلي لیونې ربه، په مینه کښې نه ډوب کړې

دا یو دا مرګ دے چه څه مراد خوږې شته

غني

مرک پور خیل

# خیال او رنګ

دا سوز او ساز، دا شان او شرنګ
یو سورے د وخت او خیال او رنګ

دا اوبښ کاروان، دا سحر مابنام
دا ګوتے او شونډے او مے او جام
دا شپه د خزان او خوب د بهار
نشه د مجنون او پیاله د خیام

دا ګل، دا ساز، دا شان او شرنګ
یو سورے د وخت، د خیال او رنګ

دا زور، دا زړه، دا تورے خیشته
دعا، او جزا، او حورے خیشته
دا سترګے، لیوالے د ژوندا، او نور
د شونډے، مستانے مغرورے خیشته

دا ټله راټله، دا خیال او رنګ
او رنګ، د رنګ، سپاری تنګ

دا ښکلې ځاته، په نیاز کاته

دا روُ(*) نازک، په انداز کاته

دا لړو کېږي تا، دَ سپوږمۍ دَ مخ

نرگس کېږي نیاز بین دَ ایاز کاته

دا مینه، رنګینه، دا شان او رنګ

یو سوړ سړے دَ وخت، د خیال او رنګ

سپېره دل دَ ګلاب او خندا دَ یار

کاږه کاته، په رضا دَ یار

انداز دَ مستۍ، او تهول دَ غم

سرے سترګے او شونډے نه ما دیار

دا مست ماښام کېږي دَ ژوند غوړ رنګ

یو سوړ سړے د وخت د خیال او رنګ

محفل دَ غمونو او جهان دَ غم

یو شمع وړه، دنیا تورہ تم

یو بحر خموش کېږي یو کوڼ دَ ساز

په راج دَ مرګي کېږي دَ ژوند آواز

دے تور سمندر کېږي رڼا او رنګ

دا مینه، رنګینه، دا شان او رنګ

غني

خانپور

---

(*) رو: ورو.

# یو خط

زما خوږ دوست حکیم سید بهار فاضل دیوبند ته

یا حکیم جی:

ته څه خبر یې د دې سمندر نه — پیاله کښې شو باده ډېر پرې دي
دا خوږ دی دا پسته دی — زړګي د سرو انار پرې دي
نا څه لیدلي دي مونږ بې مینې — سر ملا هېښه مینې مینې
ته څه خبر یې دا څه غضب دې — خوږ پورې لګي تار تار پرې دي

ما ته علوې دي کل مسئلې ستا
د سود او زیان او د زړه ډېې ستا
کړه چشمانو کښې د جانان مې
د جنت حور قطار پرې دي

دغه ډېر نې د بار مې ساقي کلونګه — د کے پیاله په شهکا شرنګ
نو څکم به چه لیونی شم — تاوران لیچې د یار پرې دي
کوره آسمانو کښې سپېځلي و بانه — ماشوې را خلیه د جانانه
دا دري روند د لیونی خانه — د مستی درې د شمار پرې دي

غني
حیدرآباد جیل

(۱) وږی ۔ وږي۔

# کاروان

ړوند او قرار، اور او اوبه دی، نه به یو ځای شی نه یو ځای کیږی

تیاره او نور یو د بل جوړ دی دا به تیر وشی دا چه تیریږی

لکه د سیند دَ ژوند م لاره، کله په غرو کښې کله میدان کښې

بند عجب عجب پیدا وی کوډې، په ښخلو کښې ځمکے آسمان کښې

جانانه ما نه ګرځه را پورته، د آبګینې دا سترگے تورے

د مانام لړے تیږے کړه میږے ولوړه دلبره اوس نورے

وکړه دا سینه صبره، چې رونبانه دا مونږ تښخانه دا مونږ دانی

وی دا ساعت ځوانی د دوه عاشقانو کوی هغه چه ځوانی کښې خالی

جام مونږه ډک کړی زړونه مستانه

کاروان روان دے جرس غږیږی

شونډه وله شونډه د مینے پرسی

صبا راتلونکے دے مجلس خوریږی

غنی

حیدرآباد جیل

# بې وفا

حُسن حُسن لټومه — که په غرو کی که په سمه

زه په مینه مینه پایم — بې د مینې مړ مړ یمه

بې وفا که د جانان یم — بې وفا نه یم د مینې

چې ته رنګ خال اتڼم — چې پې سترګې کړم رنګینې

چې ډکه د مینې تش شي — تش پیاله بیا شي بې نشه

بیا به کې میخانې له — سینه به سمه مجروحه

تش کوزې خټې نه شم — چې خوندونه وي د ګناهو

زه مئین په پیاله نه یم — زه مئین یم په شرابو

پتنګ نه خو یم مئین — چې د شمع رڼا نه وي

تو زاني نه وي سندرې — چې مستي د سبا نه وي

بې وفا که د یو یار یم — وفادار د مینې یمه

حُسن حُسن لټومه

که په غرو کی که په سمه

غني
حیات آباد جیل

---

(٭) وی: وای.

# بند

من چه خوره بند کړی حرص او هوا بند

سبا غواړی د عشق نه سودا بند

د ته بوتلا کښې مینه نه کیږی — خَنک به بنا، کاندِ سیلاب دَ هوا بند

تول عمر یو نظر د نیاز یو ول — لکه واچوې تیاته دریا بند

ډکه نے نه څکم چه نشه لیونے شمه

جام کښې کوړ پروت دے د نوم د آشنا بند

په دمولو تمویاو نو نه جوړیږی — چه یو خل زړه کړی د مینے بلا بند

د فلا دوزخ نه دپے ویرے کوم — کوم جانان په ناز کیږی په خندا بند

په جهان کښې دا وچے شونډه ناسته یم

لکه وی په بتخانه کښې مُلا بند

د دنیا آزادی واړه م قربان کړے — چه کوم زړه د ځنبو یار په تلا بند

د دے بند د ته بند و نه نشته — چه تړی وی د وجود او د سا بند

لیونے واوریا، په دا سے شوډ کا نو

په پنجره کښې که په شان د مینا بند

غنی - حیدرآباد جیل

# خمار

چې نشه شم د خپله خانه وځم
لکه وږمې چې تښتي د ځنځیرې نه

مست ډوب شم د نغمو دا ازلیه او چپ شي
لکه پوړنه سره کېږي ګل د اوږې نه

د دنیا وجود مجبور تنګ کښې پټ یم
او د خیال په پښو پېرزې بابا شم سرود

د اووم آسمان د سیالیو کړم روان
لتوم د ژوند چینه د دنیا کور

د ساقي خمار سره پروم پکار نه دی
دا زه ګورم د خپل خیال لیلی له لاس

دا د دې د نګینه وجود خواږه دي
دا مستي مینه او حسن او دلدار

دا چې ژوند د جانان سترګې نښه شي
دا چغلي دي له وړو کومه د رفتار

د شفق د مزه د کوم خدای له جامونو
دا چې سترګې سره کومه په خمار

ځه په عیش دې ژوند نګوې که ملا جانه
د تالاش د سوز یادې دي خبر نه شوې

عبادت سره تا له حورې غلمان
د ارمان خاوره کېږده خبر نه شوې

لکه شمع ورپسې نه شوې د خیال او ورو
خوږ او څښکه شوې شراب او خمار نه شوې

مست نه یې په دیوا وانغښت[1] د شعر
د بهار خزان باله ګلزار نه شوې

ژوندانه حلاوت تالاش نې خلاص شو لیونی شم
سترګو سره کړه له خپلو پا پوهېږه

لکه کله ساعت رنګ جهان نه اوښود
لکه سبا دریاب له خپلو څپو پوهېږه

غني ـ حیدر آباد جیل

---

(۱) وانغښت : وانخیست .

# مدرسه

څه سبق راته ښئ زبه (۵)! / زړے غم په مدرسه کښې
فکر کوم خواته روان شے؟ / په کوڅه د وسوسه کښې
ته خبر نه ئے د خپل زوره / زما ما تے شوے پښتنی
په پوهاؤ چه م زده نه شوے / زده کوم ئے په پټئ
دا مینه ته بے پروا ئے / هر څه کے (۱) زما د پاره
خو کاش چه دے نازکو چینو ته / تا وے ښودلے لار هموار
دا تقدیر مے سخت استاذ دے / بانے د ب تریخ ئے آواز دے
د لوئے نازک وزرته / ګران د غره د سر پرواز دے
ژوندون نه دے جوشنده ده / په کښې سل قسمه خوندونه
نه مے خوږ شو نه مے تریخ شو / هم صحرا او هم سیندونه
هیڅ په پته د پوی نه شو / چه دا د وجود (۵) ئے کوم رنګ لره
ولے ولے د کور درنه / ماورے نے د دریاب مینځ له
زه په غاړه یم خوشحاله / زه باتور لامبوزن نه یم
زه د مینے تور یا ئے یم / د جنګ تور زن نه یم
غنی مر په شمکو (۲) شو / ورکه سپینه پتاسه
چو تی اوکه تا ئی اووه / تیبه بنا که مدرسه

---

(۱) ګړی ګورے [illegible]
(۲) شمکۍ: [illegible]

# صنوبر

لاس م بند، ژبه م بنده
د زړه ناست یمه دیګر
لګه ناست وی وږی ماتے
په ماښام کښې بازیګر

چپه خوله او تیټے سترګے
د کال خوا کښې کونګے ناست دے

دخپل غم په ننداره کښے
ډوب مشغول دے صنوبر

دبرهم دریاب په غاړه
تشه لیه او چے شونډے

لیونے د تندے مر شو
د مستے نے تش شو سر

دخوانئی د غم ماښام
د پیرنے ساز (٭) د اختر
نه دی چا برابر کړی
نه به نے څوک کړی برابر

---

(٭) ساز ـ سحر.

راته ښکاري چه بوډا شوے — رقص او شرنګ نشته دِ خيال کښې
ګلا نه کوي نظر ستا — غوږ زنګ نه لوړے په چال کښې
دَ زوال استازے ناست وي — تل به څوکه د کمال کښې
وخت او ژوند، هغه ښکاريادي — چه همامه نيسي جال کښې

په ويښتو کښې دِ ښکاره شو
دَ مرګي اَستازي سپين
قسمت ليک دَ ابد وکه
ستا د سترګو په جبين

نشتے کيږي دک دَ لوبو کندو — دَ مستۍ جهان مَهين
دَ خزان جامے اغوستے — دي نرګس اونسترين (*)
د سبا رنا پيکه که — دک دَ شمعو ورنګين
اوس دِ خوږ په ژبه لګي — دَ شرابو نه کبين!

هغه سره ګلونه څه شو؟
چه تو کول به دِ محرا کښې
هغه لوټے ځاځه شوے!
په تيا ـ ے به چه هوا کښې

هغه مست سرود دِ څه شو — چه به ښکه دِ مرا سا وکښې
هغه سپين مشال چا يوړه — چه لګو به دے بيا يا کښې

(*) سترين = نسترن

دا تور تور سوړے ذچادے　　چه روان دِ دے په خوا کښے
بوسیده دِ روخوزده کړل　　تیتیدل دِ دی په شا کښے

لا س ذبند ذبه دِ بند ه

ناست یوازے او دیګر

لکه ناست وی وزر ماتے

په ماښام کښے بازیګر

چه خوله او ښت سترګے

د کال خزانے او رنګ ناست ذ سے

دخپل غم په ننداره کښے

ډوب مشغول دے ښو بیر

غنی

مرکب بورجیل

# تهٔ اوزه

اے د مینې فرښتې!

اے د نور او رنګ قیصې

ښاپېرۍ ته چا بندي کړې

د غمونو د کوڅې!

چا ورو لولکه نه بیره — کړه تورتم سیا باران کښې

چا تصویر د صحرا جوړ که — دے د سنې ګلوبستان کښې

په مینې چه شي مینه

یارانه نه ده بیوپار دے

چه په غم ارمان بدل کړي

دغه مینه دغه یار دے

که مجنون په لیلی ړوک وو — په مجنون دوکه لیلی وه

چه فرهاد مسک او مست وو — شیرینه هم په خندا وه

دا نه مینه نه وفا ده

خوشحالي مستي کتل وو

په چنجی کښې وزروپنه
دَ لولکے تو کیدل دِي

دادَسود کنې قيصې دي — بندگی قربانی نه ده
دمجنون دَ زړه مستئ له — دَ لیلئ څوک ثانی نه ده

خوا ے دَحسن فرښتې:
اے دنور اورنگ قیصے
تا مستی بے خودی ورکړه
په زړ ا او وسوسے

اے محبوبے بت پرستے — زه یو بحر دَ تیرو یم
اے دَ سپینو کلو لښتے — عکس ستا دَ لولو یم

اے دَ غرد څکے خو داورے
ستاد شاځکونڅ دنڅ کے
زما بحر دَ مستئ دے
ستا نیاز بین زړه ورکے

ته نے حوره د فردوس — څنا دِ زړه دجهان
ته ژوندون رنړا او شمع — زه تیاره، غم او طوفان
ته تسکین دَ مسلمان نے
زه یم مینه د کافر

ته په مینه تالا زړه یې

زه په حُسن تالا سو

ته بنیاد او روح د سیند یې — زه موجونه سوریږي

ته سرور، طور، او موسیٰ یې — زه ارمان د ساحوري

اے د حُسن فرښتې

ته یې حوره د رضوان

زه بادشاه یم د دوزخ

په لمبو د اور روښان

نه یم باد یم د خزان — توره لړه د ماښام

زه مین د بُت په سترګو — په ساقي یم او په جام

ستا خیشته مینې وفا نه

په معنیٰ د مینې پوې کړم

ستا غمګین روښان نظر زه

هم بناؤ کړم هم سړې کړم

اے د حُسن فرښتې — ستا غم نه دے سوځاره دے

د خزانه تاجور کړې — یو رنګین غونډ بهار دے

تا کړه برو د سپوږمۍ نه

دا خندا کوې قصه

تا په سترګو د آذر کښې

عکس جوړ که د موسیٰ

تا پتنګ له مستي راوړه　　د نورونو د زهرا

تا د سرو ګلو باغ جوړ که　　په ځیګر کښې د صحرا

تا د ژوند ترخو اوبو له

د شرابو سرور ورکه

او بې سترګو د کونکټ له

د لولکې غرور ورکه

تا خنا اورکړه خوبانو ارمان کښې　　وینو د مینې سوز د غم جهان کښې

تا د یار ښونا کښې خوب د لالیه لیلا　　تا د فراق په غم تصویر د یار د لیلا

تا د تیږې د زړه د رڼا بنار که جوړ

تا د ورو کي د رڼا سیند او آبشار که جوړ

تا د شبنم څاڅکي کښې که تصویر د غم

که دا امید دریاب او د مستۍ سمندر

تا د فراق د لمبو　　رنګ د وصال جوړ که

زما د تولو تیرو　　د زړه خال جوړ که

ای د حسن فرښتې

سپینې حورې د رضوان

بس تا د ځکړو لیونی له　　امیدونه او ارمان

غني ـ خانپور خیل

# صحرا

که په شګو کښې ژوندون دی　　زه به بوم ځه صحرا له

که سودا کښې ناز او شهرت وی　　ما مزینې ورکړه سودا له

که په ساکښې مستي نه وي　　زه به مرګ راوله ساله

که هلال پیغام د نور　　د خندا د رڼا نه وي

ما ته غوره تور شپه ده　　ډیره غوره د هلاله

که ژوند مطلب بل نشته　　بس ژوند دی سوزیدل دی

داخپل جوش په بیرته واله　　داخپل هوش په بیرته واله

زه پتنګ ستا په رڼا یم　　مین ستا په تورو نه یم

که کافر که مسلمان یم　　یمه ستا د نوروونه یم

زما واره کمزوري د جوړیستا. ستا کمال له　　تیاره ځکه شو تورې چه شو روکه د هلال له

چه تا روک کړمه حیوان شم　　چه تا وویښم انسان شم

ته دریاب د شنو چینو نې　　زه پیتې د لوږو تندو

چه تا روک کړم بیابان شم　　چه تا ښکل کړمه لبتان شم

داکئ زما د څه دي، چه زه چېغې شم جانانه شم    دا خو ستا د خپلې قيصې ناز دی، چه زه غم شم يا ښادانه شم

يا خو واک د بادشاه راکه    او يا صبر د فقير را

ډېر زړه دی د رنګين خوب له    يو ښايسته شان تصوير را

چه ستا حُسن پرې بندي کړم    دا سې لاس دا زنځير را

که دا اوبه دې ستا شراب وي    که دا چېغې ستا رباب وي

که زما ژړا د عمر    يو لمحه ستا د شباب وي

که زما همه مستي دا    يو حباب ستا د سرود وي

زه خوشحاله يم په هر څه، چه کوې ما لېونانه ته    عجيبه زما جانانه، عجيبه زما ارمانه ته

هله زه د خان مالک شم    چه خپل خان درکمه تاله

هله مست خوب نه راشي    چه کوت وکړم ستا د خيال له

اې د کل جهان مالکه    جواب راستا د جمال له

ولې جوړ صحرا کښې باغ کړې    قصاب جوړ کړې د کلاله

ولې ولې زړه ولې؟    د دې ولې جواب څه دې

ښکنه ښکنه اې جانانه!    از غم څه دې مضراب څه دې

اې د لوږې تندې زړه
دک جام څه دې، کباب څه دې

اې د مرګ او ژوند مالکه
مرګي څه دې، شباب څه دې

اے دَ ژوند آخر جانانه — ژوندون څه دے حساب څه دے
اے دَ تورو تیرو خانه — څه معنی ستا درنا ده
اے دَ مرګ او ګور خاونده
څه رنګینه ستا خندا ده

## څه وُو چه هیڅ نه وُو

څه وُو چه هیڅ نه وُو — نه سبا وُو نه ماښام وُ
نه رَبّ دَ چا رَبّ وُ — نه بنده دَ چا غلام وُ
بس یو بے پایانه عاشق — ورک په خپل خمار کښے
خوب دَ خپل وصال و
په خیښته شونډو دَ یار کښے

# جزا

خلق وئ(*) راته چه شته دے — زړهٔ م هم وائي چه شئے!

خو جهان دِ داسے ښکاري — لکه بے مالکه کور

ستا دَ خپلے خُلے دښمن له — خوشحالي، مینه، آرام دے

ستا آشنا له تنهائي ده — تهمتونه او پیغور!

که دِ زړهٔ کښے هم څوک یاد کړي . در په در خاورے پسر شي

ستا دشمن خانَ دَ خانانو . ستا آشنا زیرو زبر شي

---

ستا رښتیا، ستا ښه، او مینه — په همه ؤ کښے تاوان دے

ستا تلاش یو لیونتوب دے — ستا یاري دَ غم طوفان دے

امتحان خو مره سنګین دے — ډیر کمزورے ستا انسان دے

دَ لوګي په بنیا دونو — جوړ دَ شنو ګتو مکان دے

ستا خلیل دَ خپو دَ لاندِ . دَ نمرود دَ غلام وینم

دَ خیام لاس کښے کچکول دے . دَ دله لاس کښے جام وینم

---

خانه مه م جنګوه نور — هسے نه چه ښنګیلے شم

چه خمار او سرور ورکړم — دَ آسرے طمعے مړنے شم

---

(*) وئ: وائي.

ستا مُلا وائی په چغو، چه تش سخات (۱) او زکوت غواړی

خو بس دِ غټ غټ خیراتونه، پوخ او سپین شانجات غواړی

وئی قانون دِ د منات وی ته تش نوم دَ منات غواړے

وائی نه غواړے جنون ته تش دَ رکوع او آیات غواړے

خو ستا جهان بل نکے نبائی. ستا دَ پټو سترګو خیال

عجیبه دِ جرم ایښے په خونونو دَ وصال

لَن تَنالُوا البِرَّ حَتّٰی تُنفِقُوا مِمّا تُحِبُّونَ ؕ

ته په دیګ م رضا نه کړے نوم، ارمان، او غزت غواړے

دَ مالی نه زیر کلونه دَ قارون نه دولت غواړے

دَ مبین نه تول مسینه دَ مغرور نه غرور غواړے

او دَ رند نه بنا نکے نه دَ مستی او سرور غواړے

دَ غنی نه هشتنګ کینے او چت غرنه دَ طور غواړے

دَ کلوری نه خپل خان له دَ حور او تور (۲) تنور غواړے

ستا وکیل وائی په چغو چه خیرات او زکوة غواړے

زرے میښے دِ پنجاب او زر دسے روز دَ سوات (۳) غواړے

سپینه ګوره تشا بکړے تماکو دَ سوات غواړے

او مسرید ګرد ته بیاله ښکلے بنغے نو غواړے

---

(۱) [illegible]

سان، صابون، ګړه طالب له　　　او مُلا له روپئ سپینې
په بدل کښې مسحلونه　　　معشوقې نورې مهینې
دک جامونه دَ شرابو　　　په عوض کښې دې پیسې
دَ یزیلخونی پالنګ کښې　　　دِ کې لیچې نورې سپینې
لیونی ته بس ارمان کښې　　　شي رنځې ستړې مهینې
خومره کران سړی دې جوړ کړو　　　دعویدار له ستا دَ مینې

ستا قسمت سره دا سوزول کړي
لکه بې مطلبه اوږ
ستا جهان سره دا ورانیږي
لکه بې مالکه کوږ

غني
غرسر
ډیره اسمعیل خان

# شهوت

ما دَ وینږې خپو کښې شهزاده په ژړا ولیده
ما دَ مرګي بُت ته ژوندون تهیت په دعا ولیده!

دوه نیانې بینې سترګې دَ مستې دَ خندا ډکې
او چه ترې مستي شوه شوې دَ سپي زسترګو کې

لاس دَ سنګدل مِ غزولے په سوال ولید
پروت دَ منات خپو کښې مِ په ذکر بلال ولید

ما دَ وینږې خپو کښې شهزاده په ژړ او ولیده
دا مستانه زړه مِ دَ چا سینې په سودا ولیده

# خندا

ځان تخنومه ډیر خو ډیر افسوس دے د خندا نه راځي
دے غریب ګنې کره سایه دهما نه راځي

ده ته مینا پیریږے ده پرې هله چه لیدے نه شي
غوږ په سپي حرام، د خره دیران له ګیا نه راځي

خدائ نیکو که مجنون د څه مجنون وُ چه صحرا له لاړ
پوئے شو چه په دے چه په محمل کښې لیلے نه راځي

لاړ و لیونے تو ورک شو چه حکم ورکړلو
چه کور ته د رنګونو په څو کاله رنړا نه راځي

نن د سامري سره تهیکه د جانونو ده
خکه لیونی له غه پټکے او قبا نه راځي

خکه خو غني لږ په کیله شان نصیب ته وائي
مه وایه نامرد چه نن تیر شو سبا نه راځي

ستا عجب جهان څه بے انداز څه بے امکا نه دے
یو د خندا مړ شو لو او بل له خندا نه راځي

یو خوا دِ تیرو دَ بنا پیرک خُله مړه نکړله
بلخوا دِ چرګ مړې په دې ارمان چه سبا نه راځي
یو سیلۍ اوچت که دَ دریاب په مینځ ئې وولیشته
دیخوا بل ترېږي چه یو کوټ دَ هوا نه راځي
لا ړمه، بوډا شوم ژوندیو ته نه کښېنم
خان مخنومه ډیر، خو ډیر افسوس دې خنل نه راځي

غني
پېښاور

## رُباعي

زړه مې لګیا دے سرته مې کپ لګي
ورله دهوکه ورکړي په اکر بکو

وائي پاسته کلونه دي را روانَ
پروا ئې مه کوه که ازغي کلک وو

غني
خانپور

# سپېلنۍ

هغه ژوندون وایه — چه وی یو نور او رڼا
ډک د خوبونو خندا — خندا او شړنګ شړنګ
هغه سرور وایه — چه وی د وخت بې پروا
خواره په سر د فقیر — شالونه رنګ رنګ

هغه بهار وایا!
چه نه مستي او سخا!
په زیړ و ګلو باندې
مالیار کړي تنګ تنګ

خو دا نه شو یېڅ او نه به وشي — چه دوږخ نوم او خیښته به نه شي
جنت به نوم شي یو بې مطلبه — شي به پکې خوږ او وربګې تراخه شي
سرې به ډوب شي او خندا ورکه — خکه چه غم او ژړا به نه وي
رنګ به لوګې شي او خوانۍ خاورې — وار به سود وي، سودا به نه وي

چه خیګر مور شي نو ارمان ورک شي
چه ارمان ورک شي، نو ژوندون ورک شي

چه صحرانه وی په سترګو ړپ کښې
لیلیٰ فنا شي، او مجنون ورک شي
په شپه او ورځ کښې - وخت او نظر دے
واړه ولیده دَ بنده - هم سپین هم تور
دَ ده تیاره کښې ځرکے دَ نور دی
ښته ځکه تهٔ نګ او شرنګ چه ښته دَ سوړ
یاړه دا ړوند سنبه دے - پکښې خندا او ژړا
توره تیاره او ړنا - ګلونه رنګ رنګ

| | |
|---|---|
| خو بیا م زړه غواړمه | ړوند دَ ځواني او ړنا؟ |
| ډک دَ خوبونو خندا | خندا او شرنګ شرنګ؟ |
| ولے دا نه شي کولے | دَ خیښت او نور آقا؟ |
| چه دے سینے کښې کیږدي | لا لونه رنګ رنګ؟ |

غني
پښاور

«یو خط روشن ته»

لاس به مې ورکړي وي، او خپې به مې ورکړې وي

خو مینه، مینه، مینه، ما دې عمر کې بس یو تا له ده

دې باز به په ډېرو غرونو کندو پرواز کړې وي

خو جوړه بس ستا سترګو کېنې د دې خمار جاله ده

مل خله که ورک شي ستا د کوړې ورکېدې نه شي

واړه رنګیني د ده چه جوړه ستا د خیال له ده

د ورکه میخانه ده جام ساقي دې که خمار دې

دا واړه مستي خو تر ترو شلونه د مشاله ده

سرې شونډې او تورې تورې شپه کېنې د واړه تورې شي

خیشت د شال په دې دې چه لیلیٰ خیشته د شاله ده

ته که لاړې رنګ به او خواني به واړه خاورې شي

جام کېنې دا مستي واړه د مینې د کولاله ده

چونک خاورہ کوزہ شي یا دیوہ شي او یا جام شي
روکے[*] غونډ ے سر کله تارون کله خیام شي
شوم نصیب کړي جوړ توره پنجره د رنګ محله
مینه او غرور کله ساقي کله امام شي
حُسن او وصال یو ته څخمل شي او کلونه شي
یو ته سر د دار، بل ته را ښکلي د ګل د دام شي

ستړي شوند ے خاورے ، خاورہ لوے د کماله د
مینه مینه مینه ماد کړے بس یو تا له ده
ماخو ستا په خپو کښے خپل لالونه خاورہ کړے دي
ماخو فقیري قبوله کړے ستا د سیاله ده
ما خپلے مستئ ستا په غمونو قربان کړي دي
ما رڼا د شمع قربان کړے د هلاله ده

خپے اولاس ہم څه دي دا خو خاورہ د دیران دے
دا ستا غني نه دے دا د خلقو غني خان دے
دا ستا د ګلونو ښاخ مستئ د بهار نه ده
دا شاړے شود یارے سور سادین او ج بیابان دے
دا ترخه سایه ده د غضب ده ، د نفرت ده
دلته مړ شوندون د مړ امید او مړ ارمان دے

[*] روکے : دیوکے .

صفه خاموشي ده دا، چه ورکه د بلا له ده
مينه مينه مينه ماد کړے بس يو تا له ده
ما کعبه د غولے ستا د مينے او جمال ده
حور ده زما ناسته، پته اخوا ستا د شال ده
ستا شراب د خارو د کندوله جوړ کړي جام
ستا ستر ګے کړي جوړے د خر چو کي نه خيام
تا د خارو کمونه سينا او حرم جوړ که
مينه وه دا مينه د خنزيرنه ئے آدم جوړ که
ستا کټ ماله جوړه د غني د کل کماله ده
مينه مينه مينه، ماد کړے بس يو تا له ده

غني
پيماړ پوړ

# مُسافِر

دَ ژوند مقصد دې يو کمال دَ مينې　　د عقل خوږ جمال يو خيال دَ مينې
دا تورې لړې ماښام کلال دَ مينې　　دا ارمانونه تالاش يو جال دَ مينې
دا سره مستي دَ کفر چينه دَ ښادمو　　وږغ (۸) کښې دَ بحر نفرت دالال دَ مينې
اوه په ارمان کښې دَ کمال دَ مينې　　کل د انسان جمال جمال دَ مينې

مينه خوب دَ ديوې زړه کښې　　دَ دنيا او سوزېدو دے
خوب دَ ژوند کره ماښام کښې　　دَ سبا دنيا راتلو دے
دَ خزان په مايوسئ کښې　　خوب دَ گل دَ تو کيدو دے
دَ مرگي په تور وطن کښې
ساز دَ نمر دَ خُتېدو دے

ما دَ سترگو تپوس او که　　حُسن څه دے مينه څه ده
ما دَ ژړا تپوس او که　　عکس څه دے اينه څه ده
ما دَ کوتو نه تپوس　　د نرمے دَ تالاش او که
ما دے اخاري سترگو　　دا خندا رنگينه څه ده
ما وادے زهرا رنگينے　　دَ خپل نوره بے خبرے

---

(۸) وغ : بج

ستا مستی حسینه ښه ده

ستا خندا مهینه ښه ده

مخے بے پایانه حُسن

ماته دا په ارمان وړُے

ژوندون ښه دے د ځان سوځل دی
ژوندون ښه دے د ورکیدل دی

ژوندون ښه دے یو تالاش دے
د ارمان پوره کولو

د ارمان بے تابی واره
په ارمان قربانول دی

ژوندون خوب دے یو بے توانه

د تیرے اودرنا

بنده مخه مسافر دے

کوړ نے باغ لاړ نے صحرا

غني

بهګنوتر

# بې غیرته پښتون

تور ښامار منجیله پروت دے د خار په خزانو
د پرون غلام، بادشاه دے، د سباؤ لیونو
هر پښتون د یرشے (*) رپی، ورک شو نوم د پښتنو
د سړو سترګو غیرت اوچ شو
همت روک شو د سینو

اے پښتونه ما کتلے د انسان د شان کمال
ستا بے سرو سر کښے نور وو، ستا په تورو کښے هلال
ستا په مست حیوانیت کښے د دریاب د چپو زور وو
ستا په غرو کښے زمزم ؤ
ستا په قهر کښے جلال

ما به وے د زمری ظلم، ظلم نه دے د شاهانو شان دے
ما به وے عقاب په خیشته د چرګ باز ښکار ارمان دے
ما به وے چه کله کله، خکه ته بے حمیه اور شے

(*) پرے، درے.

چه روان ستا په ځیګر کښې
سور د ننګ غرور طوفان دے

اے پښتونه ستا هر بد، له ما ګناه نه جوړه کړه ښکلې
که ته تور، د اور صحرا شوے، ما کتے کړې بلبلې

ما ستا سر اوچت غوښتلو، دام نه کوو تپوس
چه دا سر په څه اوچت وو
څنګه څنګه، ولے ولے؟

دا ښځه کالهِ تیر کړه جهنم، زندان، اور کښې
نه ها سر اوچت سبا ته ستا سر ښکته په بیغور کښې

شل شرمونه د رنړه تاو دی، په کښې ته داسے خاموشه
لکه پروت چه دله مړے وی
راغونډ غونډ په ګور کښې

یره یره په ځیګر کښې د ګنج د سکندره،
په پنجره کښې رپې رپې د عقاب اوږدې دوه وزر
لاندې ناست دی سره بازونه، اوږدے سترګے او تښے،
او د پاسه بې ګنجنی دوه، د هما تاج نے په سر

اے جنونه د شرابو! ابا د لیونو
دا مغرور سر مِ تیت کړه، بے غیرته پښتنو

غني . خانپور

---

# دامکان او لامکان

چه آدم تنګ د قسمت شي    په خپل لاس کښې ستار واخلي
چه لږ نور هم ليونے شي    نو شمشير او آبشار واخلي
چه حوا د مرګ ديرے    د سبا په تلاش وځي

د ګلو نو رنګ راغونډ کړي
د سهر نو شرنګار واخلي

همه رنګ دے د آدم    د آدم د زور امکان
څه دے کور ، او لامکان    ګل غلام ، بادشاه خزان
که جانان ، که بت که رب دے    خمار دے ، او ايمان
دامکان او لامکان    دواړه وجود زما دخان

سره ګلونه ، سپين امام
ابتدا او اختتام

ګل بچے دے د ديران
په سپرلي کښې پټ خزان

تینبسته یره او شکست — دَ دله دغه آواز دے

نۀ غازی له شکست نشته — همیش فتح تل پرواز دے

ګل چه خاورے شی هم ګل دی — ګل چه سور روی هم ګلاب دی

یو مهتاب او زرو یځے

بیا هم سپین خندان مهتاب وی

او دَ مینے په میدان کښے — سر بیلل(۰) جانان ته تلل دی

دا مسته هغی دَ لیونو ده — قول بیلل هم غه کتمل دی

دلته دوب په روکی(۱) جام کښے — دَ کعبے او چت منار !

دلته سابیلل خمار — دلته خان مونتل(۲) خمار

دامکان او لا مکان

دواره جوړ نهادَ خان

دا جانان او بُت او رَب

زما تنده او ایمان

غنی

خانپور

۱۹۵۲ء

---

(۰) بیلل = بایلل . (۱) پروکی = وروکی . (۲) مونتل = موندل .

# قانون

زه خو نه وايم چه نشته — زه خو وايمه چه شته دے

خو دنيا ئې ده عجبه — او قانون ئې عجيبه دے

بنګلې باغ د ګډ خوبونو د ګلونو د نورونو — دروازې ئې کله دار وي کله دار ئې کله صليب

او چت تخت بره پرې ناست دے يو غلام د دغمونو — چاله د چنګيزو تخت کړے او خوبونه د غريب

کله سپي له خله کښې ورکړے د شاهين شنه وزرونه

کله ګله کړے په ديران کښې د نرګس مهين خوبونه

يو ته سره شونډ وکښې پټ شي — يو ته پټ شي په صحرا

چا ته خود چا ته بے خوده — چا ته مرګ شي چا ته ساه

کله ستر ګے د کمترے په سره ستر ګو کښې د باز

کله سور ظالم عقاب شي . په باز راولے شاه باز

زه خو نه وايم چه نشته

زه خو چغے ويم(*) چه شته دے

خو دنيا ئې ده عجبه

او قانون ئې عجيبه دے

غني

خانپور - هزاره

(*) ويم = وهم.

# آسره

بنده څه دے؟ بے هوشه څناور دے
بنده څه کښې؟ آرام خان له ګوری
دے تالاش دَ ده۔ دَ ساقی خندا
دَ کعبے مناره۔ ښکلی ستوری

کل منطق دَ ده، فلسفه د ده      یو امید یو ارمان یو آسره دَ ده
دَ دے لوئی دریاب نه چاپیره ده      کناره دَ ده۔ کناره دَ ده

که ئے سر دَ عرش پورے ولګی
خپے ئے روبے وی دَ غبار په مخ
دا خوږ دے۔ د۔ دَ ښانه ورک شویدے
دَ جانان په مخ۔ دَ دلدار په مخ

کل مذهب دَ ده۔ کل ایمان دَ دهٔ      دا۔ دے رنګ ار خندا ار جانان دَ ده
دا مکان دَ ده۔ لامکان دَ ده      دا څه ورکه۔ څه توره قصه ده

دَ سبا تالاش دَ پرون ارمان
یو امید۔ یو ارمان۔ یو آسره ده

غنی
خانپور۔ هزاره

# دَ بوډئ تال

تیاره، تنده، رودکیله دي     زه لټوم دَ بوډئ تال
دَ امید نه جوړ ومه     کله رنګ کله وصال
زه دَ ځان کل مرضونه     خپل حکیم یم دَ کمال
اے نه ما مغروره یاره     زه خالق ستا د جمال

داچه زه په تالاش لاړم
پوست پړاو مقام م وُمنت (٭)
داچه زه، تږے دَ نور شومه
سپین ساقي او جام م وُمنت

دایم نه وه چه کله کل شم     کله نور کله وصال
کله اور ستا دَ سرو شونډو     کله ستا دَ زنے خال
اے زهادَ مینے جوړے     ستا کمال نه ما کمال
دَ منطق په تور جهان کښے     روک جنون او تور هلال

تیاره، تنده، رودکیله دي
نه بوډئ شته نه ئے تال     غني

خانپور - هزاره
۱۹۵۲ع

(٭) ومنت : ومونده .

# دړ په دړ

دړ په دړ خاورے په سر۔ پهاړ پوړ او بهګنوتر
څه څه په سفر۔ کله ښکے کله غر

کله تاو، کله تیاره وی کله سوز کله سقر
که م تیر ځان له یوازے، د چوړی په ښان انتر

چه امید له دهوکه ورکړم۔ ویم سبا به وي بل شان
هر سبا چه را ښکاره شي، سترے، سوماز ګر

میاں بابا نه تپوس اوکړم۔ دَ عمل او دَ جزا
دَ الله دَ مینے رحم په مجبورو دَ حوا

که فطرت دَ رب قانون وي، رحم نشته په فطرت کښے
دَ شهباز، زمري وحشت دے جنس کړیږ دهشت کښے

پښتانو کښے د کمال راز، زور دے، ظلم دے، طاقت دے
دا زموږ رنګین خوبونه څه غرور څه حماقت دے

دا موږ ځان له جهان ګورو د دے خاوره بهر
خکه خکه دړ په دړ، کله ښکے کله غر

دړد او غم که نور او سازوي، نو چیم ایرجمن ښتنه دے
خوبے تول خه اروسلے، او انصاف نه عجیبه دے

دخزان په ښاولاړ دے، د ګلونو نه خفه دے
د منصور نه بره ناست دے، پاس په تخت باندې شمر

رندے ستر ګے دُبت بنے دي، خاښیل بهتر کے نظر
ستا دحُسن لیونی له، نه شبقله، نه اختر

ستا د نور وړے جهان کښې، نه سپوږمۍ ښته او نه نمر
ستا عاشق په دړه لړلے، دَ ازغو تاج نے په سر

پهارپور(۱) او بهګنوتر(۲). دړه په دړه خاوړے په سر
کله تاو کله تیاره ده، کله سوز، کله سقر

---

(۱)-(۲)- دا خاد بند پهد او نظربند نے دوه کلي دو، نور په دے خاینو کښې بندي پاتې شوے یم:- پنبادر خیل، مر بیوړ خیل، حیده آباد سنګ خیل خانپور- مر بیوړ خیل کلب، غرسر، تهند باے.

# ګوډاګی!

زما ویره جنت او جنات زما — زما هوښ سر، سرور مناجات زما
منارې د ګرجې (۱) کښې زما پستي — دا د مرګ نه ځوېږم زه ژوندون هستي

او د شراب جام، د زمزم چشمه
دا د خان د نیولو یو دام زما
دا جنون جانان، دا مرشد کعبه
د خپل هوش نشه کولو یو جام زما

ګوډاګي ما جوړ کړي خپل خالقان کړي — سر لبان د یار، عبادت، سرور
ما بنده واچولي طوفان ته دي — د امید ګلزار او قلا د نور

ما د مرګ فاتح د زوال آقا
د شکست له ویشان مو تښتلي دے
ما غلام له سره زرو تخت او تاج
ما لوګي له مکان مو تښتلي دے

دې زما جنون دا ښایست او یار — دا سرور زما د دے تلو غبار
دا جنت زما د ارمان تصویر — او دوزخ زما د دردو نوځار

زما سترګو کښې رب او ایمان دے
زما د زړه کښې وصال د جانان دے

غني
خانپور

(۱) ګرجه = کلیسا.

# مرګ

ساز داسې آواز دے ښکاره پټ کړی پټ ښکاره کړی
توري ختې واخلي ترې نه جوړه مناره کړی

قبر باندې شال يو دَ اطلس دَ بخمل واچوی
لا مرګ نه پې دَ انسان لمحې لمرګ او اجل واچوی

خو مرګ په پرده پوښ کړی دَ آدم زوال دَ هوښه ورک
مرګ هغه خزان دې چه ګل کړی دَ ګل فروښه ورک

مرګ ګواه دَ رب دَ مينې رحم دَ انسان سره
مرګ يو وعده دَ سپرلي شوې دَ خزان سره

ژوند يو شاخکې مينه ده، دَ مينې نداره کړی
توري ختې واخلي ترې نه جوړه مناره کړی

ساز دَ خوانئ خښتې دے دَ مرګ سره دَ جنګ قصه
داده دَ انسان دَ زغرې توړې او تفنګ قصه

داده دَ غلام دَ زغره صبر او دَ ننګ قصه
شمع پتنګ نه دے، دا دَ ستوري او پتنګ قصه

ژوند د آدم څه دے، مینه مینه ده د خان سره

خوږ دے آدم خوږے جنون سره جانان سره

مرګ لویه نیکي ده چه تا اوکړه د انسان سره

مرګ ستا کوربه یوه کنډوبه تل د خان سره

مرګ هغه نیته چه جانان کینوه د جانان سره

مرګ پته نکاح ده د مکان د لامکان سره

مرګ کښې د ژوندون د دریاب پته کناره ده

مرګ مجبوره خان له د خپل حُسن ننداره ده

مرګ بس یو څوارهٔ ماد ژوند ستا د جلال

اے عجیبه خانه د تیرے او د هلال!

غني

خانپور

# مینه

مینه حُسن جوړ کړی بیا پے شی مینه مینه
مینه لیونئ دہ، لیونئ دہ مینه، مینه

چرته م داخیال وُ چه خایشت، خوانی نیا نه
پټ دے بس په دری کښ دَشوق عشق او طلب راز

ماته وُ ایاز خیشتہ، محمود وُ دَ خیشت وږے
خکه داستان جوړ شو دَ محمود او دَ ایاز

اوس په دَ شوم پوهٔ چه شهباز دَ ستر گو ننګ دے دا
بل خان ته کمترو کړی او خان وته شهباز

لویه لویه ده، دَ خان مرو لو خوب دَ عشق
دا دے دَ آدم او دَ حوا د ستر گو راز

مینه خُمات جوړ کړی په تیږو کښے دَ چپل عمه
مینه په مستئ، خایشت کړی جوړ دَ چپل صنم

بیا په سجده تیته شی، دړنه په کلو ونه
مینه حُسن جوړ کړی بیا پے شی مینه مینه

غنی
خانپور

# جنّت

دوه دي غړپ ملا، جنتي ملا
حلوا تېب ملا، ولايتي ملا
په پېسو قربان او سستي ملا
د پلاو په شوق خوړي پېتي ملا

دا بې عشقه، بې جوشه او مړ آذان
دا چلي دماغ او ارزان ضمير

د دې سپين دستار د توهين نه ئې
په دې کور د خداى کښې د بت سفير

ما ته وايې چې څه چه جنت ته څو
ستا جنت ستا د لوږې ارمان دے
ستا جنت د خوراک او د ښځو ډک
ستا جنت نيم پېرس نيم طهران دے

ستا جنت کښې درياب د شودو روان
پيمانې د ډېر نشې نه برپورې دي

ستا جنت کښې جنون او تلاش نشته
ستا جنت کښې خړې خړې حورې دي

ستا جنت کښې نه سوز، نه ارمان شته دے
غټې خېټې، لمدې، سپوږې شونډې دي

ستا جنت کښې غوښتل ا، بېل نشته

واره حورې، رضا او بربنا دې دي

ستا جنت دَ جنون بې خبره ژوند — ستا جنت یوا وبنیا ښان تصویر دَ خان

ستا جنت دَ شهوت او دَ تندې ډک — ستا جنت ستا دَ لوړې دتا او امکان

دوړ دې غرېب مُلا، جنتي مُلا

په پیسو قربان، او ستی مُلا

راشه وا وره ته چه جنت څه دے

دَ غنی جنت، دَ غنی مُلا

ته په جنت کښې مزې د دنیا لټې — د حورو ستر کو کښې دَ موخندا لټې

ته په آسمان کښې د مېچ دَ دیوان لټې — او په تیرو کښې سیوری د امکان لټې

لیونے نه شوے ته خمار او مستی نه پیژنے

مستانه شوے دلربا پرستی نه پیژنے

تا دَ دنیا د پاره مینه د جانان ورکړه — مجنون په سبعه بیخودی د جانان ورکړه

لاس کړې او د بادشاه او فقیر شوے — یا زما خان د دنیا دَ لنډه ړنده پیر شوے

تو له خیته خیته شوے مستی او جانان نه پیژنے

تو له زیره ډیره شوے مردی او میدان نه پیژنے

زما امیده، تا لی ختم او تکړے خوره شوه زما

زما سره دا وه: ته مرګ و نخیفه خوره شوه زما

قسم په هغه رب چه ته نے د مینے دعوے کړے

چه تے د حورو د غلمانو، د جنت دعوے کړے

توره را واخله توره پورته که میدان ته ځه | لوګے لمبه شه په مستئ کوډ جانان ته ځه

کنی ته به ویریږے په پیتئ او په حلوا کښے مُلا | جنت د بانلو د تیپرو په سودا کښے مُلا

د موسیٰ کړاټه ده د لوږے نه اے موړه مُلا

ته په هره شپه د حرمے شلے اے زوړه ملا

د سامري د زور نشته د فقیرئ د موسیٰ

د زر پرست نه یار پرست بنده نا جوړه مُلا

---

قسم د حورو په مستئ او په خندا د یار

قسم په شرنګ او په نسیم او مشغولا د یار

قسم په سترګو، په ښایست او په ځوانئ د دلبر

قسم په ساز او په سرود او په ثنا د یار

نه سجدے زرو ته کړے ما نوم د یار اخلے | شمرکا نه کړے په بدل کښے الله نه اخلے

راځه چه زه درته جنون او مستی او ښایم | راځه چه زه درته محبوب پرستی او ښایم

سرداری نه کیږی ګوره توره د مستے نه بغیر

الله لیدے نه شی د حسن پرستئ نه بغیر

مسکندری قلندری دواړه سره غواړی | دواړه مستی او ځوانمردی خندا غروره غواړی

ته خو جنت کښې منه ې د دنیا څېره

بوربنا ه حوره او ته سکونه حلوا کوره

نهر د شاتو او کنا ه ول د شرابو ډک — نګين غلمان او مينا نک د کبابو ډک

ملا چه شونډي (۱) نه خوري به پخه سنګلوم — چه قابونه (۲) خادړه شی نو لړمی به پخه مفصوم

---

جنت یو خیال دے د عشق د مستۍ یو رنګ

جنت یو شرنګ د ګنګرو د خوا تې غورځنګ

جنت نازکے د ګل د ارمان مسے

جنت خیشته د ښار جانان مسے

جنت د رباب یو د مینې او شان دے

هره قطره نے سپوږمۍ ښا خکے جهان دے

غني

خانپور

---

(۱) نی : ندوی . (۲) قلیے : کرلیے .

# شمع

محفل له شو رڼا شمعې له سوزه ورکیدل شو

او چا له نه تحمل کېږي چې سترګې ړندېدل شو

شو پوله د ښکارۍ مستي د لت د چل دوام
او بل د زړه زړوي نصیب دې دام کې ښکېل شو

شو پوله سر کلونه، ما بنا منګو او جامونه
او بل ته غم د دوا او لوږه تنده ور بدیل شو

او ګوره انسانه چه بادشاه د خدا ورور دے

دے که ډېر زور وکړي تے ونه شي د خپل ځانه

دے د خپل وجود د فطرته لوئیدے نه شي

سل ځله که جمع کړي ګلونه د ایرانه

دے د خپله ځانه د جهانه ورکیدے نه شي
کله د منبره تاو شي کله د جانانه

څه وکړي غریب دے په لاهوا او قلا کانو بند
دے که ډېر زور وکړي تے ونه شي د خپل ځانه

دا ځنګه ستا حساب دي ته تلې په کومه تله

د رڼا نه د رنګ تعل او د ګل اتپوس د شعله

دا څه شو رنګ سپرلي. ګل له مرګ ور بدیل شو

محفل له شو رڼا. شمع له سوز ورکیدل شو

غني
پهار پور

# جانان زما

ته به تاخه احسان م د مینے شته
ته به تاخه احسان د وفا لرم
او بادشاه د خندا او ژړا ته نے :
خودا ژیم چه خندا او ژړا لرم

ستا د سترګو خاشت دے ارمان زما
ستا د روح ملک، د حسن جهان زما

دا ستا شونډے چه ښکلے او نرګس دی
دا د مینے کمال او امکان زما

دا چه زه ستا د ښکلو تصویر یمه
دا ستا ګوتے جوړې ماته ځان زما

دا چه ستا مرګرتیا[1] ته مستانه[2] یم
پټ د دے کښے رحیم او رحمن زما

زه به پټ ستا د مینے د جاله شم
خو به هر دے جاله تیاره طوفان

زه به پټ د خپل سوز د کماله شم
خو هم به د ګور ژړا ارمان

بے پروا د جنون د وصاله شم
خو مستی چه نے نوی شه انسان

خله خلاص ستا د زلفو د جاله شم
چه م ګور صحرا دے یا غر طوفان

که رقیب د تیاره روکیدو وے
ما به تاله رقیب ښکلے وو

که ښامار م علاج وے د زړه زما
ما ښامار به طبیب نیولے وو

(۱) مرګرتیا = ملګرتیا. (۲) مستانه = محتاج.

که بل ګل کښې پیغام د بهار وے دا　　　د ازغو ډک به هم ما کړے وُ

ما له بس ستا نظر کښې آرام دے

ما له پروت ستا تلاش کښې دوام دے

نه په تا م احسان څه د مینې شته　　　نه په تا څه احسان د وفا لرم

ستا د ژوند او هوس معجزه ده دا　　　چه ځواني او مستي او خندا لرم

دا د دیرے بے پایانه احسان د ربّ

د ګوګل په پنجره کښې هم لرم

بادشاهي د دے لویه به کمه وي

چه ارمان د خپل خان مینه ستا لرم

ستا د حُسن جهان کل جهان زما　　　ستا ارمان کښې خندا کړي هم ښائسته زما

تا نه تخم شم، پا نه شم، ګل شمه　　　نه پتے، نه بهار، نه خزان زما

کله شے محبوبا د خیام د رنګ

کله سوے شان هنګ د منصور د چنګ

کله خیشت او آرام، د صبا امید

کله توره شے تیغ شے غم او جنګ

کله مینه شے، رحم، ښېښه شے　　　کله زور او زیاتے او غرور او ننګ

ستا هر رنګ یو بے خوده جهان زما

نه پتے، نه بهار، نه خزان زما

غني

بهګنوټو

# قیدی

څوک د زړه غلو لونشته
خان له زړه غلوم په خپله
خان له ناست یمه خپل غم ته
د خپل غم وایم بدله

چرته لوے تیر محفل له
د مستئ او خندا خمه
چرته مړ د شمعړا اخلم
خپل مشال پے لګومه

دے تو ړتم غم او افسوس کښے
زه په یاد د مینے پایم
سوے زړه ته قیصے تیرے
خوخوانئے رنګینے وایم

غني
حیدرآباد جیل

# غیرتي

لاله م افلاطون دے د تقریر او د تکرار
لاله م پاس په مستوج کوي ډ نهري په شان غرار
چه وخت او بخت ئے خپل وي هم نه خپل وي تمانيدار
بیا بس د ده یلغار دے هم په ښار هم په نوښار

خو چه وخت د غلبلے شي لاله مراوي کوي غوږ نه
قرقړه ئے ملام شیري په خوار وُلکي (*) د ستونه

مړ دے بے غیرته پت په بله منه چغیږي
کتړے د کشمیري دے په کوټه پاس منبه غپیږي
وزیر چه کلیوال وي دده خپل حکم چلیږي
چه پوته شي ممبرته د نوچپني هسے کدیږي

چه غم شي او تکلیف شي لاله نخې دے بے ترخ له
وای لاهشته محمدینه اوس تیله وړ کوه وخ له

سرپټ کړي دے بے د لمن لاندې په ژړا شي
وئي الله د ننېر غوته، راروان دي اوس به راشي
بي بي واني خاوندته، که داسته بلا زما شي
دالاس ډولے زړي، په سالکو ډولے سا شي

---

(*) ولکي = دلکري.

دا زیړ دې په لینګو باندې دی ښکته څه روان
پرون دې خواره ډیر وو جوړ خوړلی شاتو تان

لاله وائی بی بی ته ده دے نوی وزیر تره
خو ستا ده مور، ده خور، ده زوی تربور دے ده نیکه
ورځم چه راله وکړی ده وزیر سره ځانته
زمانه خوزویږګی(۱) ډیر زیات ده یړے وړانه

ورځم چه ده وزیر سره اقرار او زبان وکړم
او ځان له ده دے ښه ده توښه سامان اوکړم

لاله غریب روان شی مراوے خښت مراوی غوږونه
وزیر ته ډیر په مینه تعظیم وکړی سلامونه
بیا وُ خوری لس طلاقه دوه دیرے سوه قسمونه
وئی جناب ماته معلوم شو هیله ستا سو صفتونه

زمانوم هم کړه لیک ده تابعدارو رجسټر کښے
دا سر مې شو قربان ستا ده ملګرو په لښکر کښے

وزیر ورته مسکے شی وئی ښه وُ لیکه بیان
چه اوسه پورے سپے ومه، خو اوس شومه انسان
لاله غریب په ملګ ووئی(۲) دین غیرت ایمان
زر لاس په نامه کیږدی، وئی قربان شمه قربان

بیان؟ یو بیان څه دے لس به وکړم بیانونه
جناب ستا په صفت به اوکړم نګومه آسمانونه

---

(۱) زویږګی = زګیږدی . (۲) ووی = ووځی.

ما بنام ریا یو ډوانی چه یو بل غریب د ووس شو
یو بل د شهباز زوی د جنګه و تښتید تپوس شو
یو بل ګلزار ایرے شو. ورک شو خاوره شو یو بوس شو
یو بل پښتون شو سپک د وب نے د پلار ننګه ناموس شو

یو ښکلے سر شو ټیټ یو ننګیالے پښیمان په ننګ شو
عجبه ناکرده شوه چه پښتون په پښتو تنګ شو
نامرده لاله واوره یو خبره د غني نه

پښتو غیرت او توره، په پښتو او غیرت مینه
دا میڅوک بیا له نه کړی، دا هر څوک خان له کوینه
دا ژوند دے د روح ژوندے. لکه ژوند د وجود وینه

دا هغه فلسفه ده چه خلیل ته ئے اوړ کړه نور
دا هغه مست شراب دی چه څکلی و منصور

ارمان دے غیرتی چه عجیبه دے سودا وکړه
د خپلے حیا غل شوے د خپل کور دے غلا وکړه
چه شپه شوه د معراج تا د تهیزونو دعا وکړه
چه وخت د خندا راغے تا شروع په ژړا وکړه

یا خیال د بادشاهئ یا دے شروع کړے بنکری واتے
لاله کنی زهر شی، خوزاری ئے شی تل پاتے

غني
حیدرآباد جیل

# تسلی (۱)

د همت نه به چا کښې خلاصون نشي   چه آسمان وی کله کله وریځې

چه کلام صلهٔ وی په میخ هم نه چلیږي   چاغرلی دی د شنو شګو نه مزے

د قالین برابری به کله وکا   که مزار په نکه شي نګ بڼ او بروزے

که د ویجو په دیرې کښې ته یو لوند نے   کمان مکو چه تمه او نه سوځے

د مردانو کار د پلک خواب په سوکړي   هسې نه چه کړې ژړا لکه د ښځے

چه وخت راشي منبه زړه آتش کړه غني خانه

خوړ قهر به لړمون کښې پټ پټ سوځے

آبی جهاز - نلهیرا

جولائی - ۱۹۲۱ع

(۱) دا زما اولنی شعر دی چه د څوارلس کلنئ په عمر کښې لیکل شوی دی.

# سوال

نه مې ستا د نرۍ شونډې دي پکار — نه د زلفې دې وال وال لکه ښامار
نه د بنې په شان دنګه غاړې غواړم — نه کسې سترګې نه دې کې د خمار
نه غاښونه دي لعلونه د عدن — نه ننګې دې د غنچې غوندې لکه انار
نه پستې نه سرې نه دې په شان خبرې — نه وجود لکه د سرو وي وضعدار
خو یو شی راته وبښه دلبره! — دلاله په شان زړګی غواړم داغدار

یو دوه او ښکې چې د غم او محبت وي
په پلکو به لعلونه ترې کړم زار

آبي جهاز ـ نلهرا ـ جولائي ۱۹۲۹ع

# خانان

عجیبه دې د خاني عجیبه دې په ځواني — اې پښتو! پوه د نه شوې، په وړاندې په ودانی
دادلا نوی ضرر دی، چې خپل سره ورونه بې وژني — پیرنګي ته خو هیڅ نه چې کړلې پېژواني

چې تلې نې پرې پرې دي، په جهړه کښې زمري دي
ناست د کابل چوپړ په تخته، د خانانو پښتني ثاني

والي پلار مې بهادر، او نیکه مې سکندر و — چې خانان ترې سره وکړې په هغو هېني زماني

په غریب همسایه نږوی، یا په ښځه زوروروی

د جنګ په وخت کښې پټ کوناست وی، خو د جنګ کې ارمانی

غني: نه دروی دوا شته، نه طبیب ورله ورتلے شی

د خدای قهر پرې لګیا دے، چې زر زر ئې کړی فانی

## افسوس

زما ستا سره یاری : وه د مار سره خواری

ګلابی ننګې ستا جانه : وے سکروټے انګاری

سوزیدمه ژړیدمه : رښتیا زه وم آزاری

په ژړا ما خندولے : ستا سترګے خمارې

آخر ګل م خزان یووړه

عبث ما وکړه خواری

## راګ

په تکلیف کښې د یو دوست نګړو آواز : د ئے تلو خوږ د نغمې ښکلی ساز

سوی زړه م یو خل آسمان ته ورو کړه : فرښتې ترې نه چلیږی پرواز

کوګو کوګو دا شراب زما دا ونګو : هر یو ئې لری سوز هم لری بیان

بے پروا زما د عشق په خندا خے

آے د خاورو کلمه! ته په څه کوے ناز

# کہ خیروی

ستا کوڅې دې پېرنګیه زمونږ سینې　　زمونږ وار به یو ورځ د وینې وینې

دا ستا حال د کمال به زوال شي زوال　　د به کړو د غیرت د جرات نمونې

دا زمونږ بچي چه نهر ژاړي نن　　دې ادبنګو به خاې به خي ستا سو د مینې

او به رو رو شي د ب بیا لا هو کړې وطن　　دا سیلاب به یو ورځ لا هو کړي ستا چمنې

د قسمت د غونډې لاندې نن نه سبلته
نن زمونږ جګر سبا ستا سو سینې

# حال زما

خدایه زه یم بد نصیبه که جهان کښې نه وا نشته　　غم م تاو د زما غریبه یو ذره کښې سا نشته

د ک جهان را ته صحرا شو، آباد ملک را ته بیدیا شو

خدایه دا کوم رنځ زما شو، زه مجنون او لیلا نشته

چه جوړې جوړې یاران، ما بنام سیل له شي روان

زما مل دي بس ارمان، بې د د خوګ زما نشته

نه معشوق خوګ زه د لرمه، نه معشوق زه د چا یمه

هر یو دم یم بې همدمه، زما زړه کښې خندا نشته

پرېښوم زه نوي دوستانو، هېر کړم زه زړو يارانو
زه زخمي کړم ظالمانو، دے پر هر له دوا نشته
خدايه! تا ته کوم سوال، تا ته وايم د زړه حال
روغ مې کړے زړه کې جليل، بے د دے مې دعا نشته

## که

که مې سر د زړه صلاح وي او ديلي — زه به ناست وم په پيرس امريکې نه!
که زما خپل پېدايښت کښې څه اختيار وے — زه به وم آزاد چرې، خان پښتون نه!
...، که قول الله ماته سپاره(۱)، کړل — زه به ځاے کړمه دوزخ خپل وطن نه!

د غني د زړه که يو رګ مې ژوندے
ده به کړل ويرونه شعر او سخن نه!

## د وصال مزه

د وصال مزه که مانه وے څکلے — په فراق به تر ازله وم خوشحاله
اول رونده وم تا بينا کړم بيا د رونده کړم — ځکه نه راکوي ژوند مزه اوس ماله
چې په شا تو باندې وپائي عمرونه — څکې به مزه ورکاندې بيا چا له
شه نخولا د خدای د پاره زما کله! — خوږ زړګي مې ځدائي راوړے تا له

(۱) یعنی ماته وسپارل.

گلستان دخوشحالی کښے تل تا خاندے
څه خبر دے د غریب بورا د حاله

یار م را خیست رقیبانو، لیونی شوم
عبث خلک را ولی طبیبان ماله

دا مرض نه دے زره کله وینې کښے شی
ما به د یې سودے لوے کړې څو څو کاله

دا تل دی چه دا ور علاج به او رشی
نه جوړیږم نه جوړیږم بې وصاله

چه آخر به ژړا خوار غنی رخصت شی
ورله وشلوئ کفن دیار د شاله

# ثنا

چاته غر کړے او ری چاته پوله کړے غر
هر زره تاته معلوم هر راز تاته ظاهر

د کافر ته آقا، د مومن ته مولا
ته جیز بس بو هما، ته یزدان ته الله

لارے ستا د محل، څوک او ړی د څوک ورے
مسافر ستا دی، هر امت هر سرے

هر یو وانی لارې ما نیغه، ستا ده خطا
څوک دے لو، څوک دے دیر، څوک دے بې غمه بنتیا

که انسان دے پیدا، بیا پاد شاه د دنیا
مرحبا، مرحبا، مرحبا، مرحبا

# مورے

چه غم نه یم د زړونه شي چا پیره
او د خلکو بدخوئي د حد نه تیره

ستا مو سکئ سترګے م تل وی مدد کارے
ستلیا دیاد هر بیل د کړی ما نه هیره

## بانبېرے

بیا شروع شولې په ما د غم چپې
بیا یې خوبه بې آرامه م شوې شپې

یو خوارند یو خوا ساقي یو خوا شراب
بل خوا کوټ کښې زاهد اړوي تسپې

په لوګي د عغه اور د واره تو د یږي
چه عالم ئې کړ جلیا تپې تپې

غني: څو به دارمان په لمبو سوځې
څو به وي دا د فراق سرې تپې

د ځوانۍ اختر دے لاړ نکړے خه کړے
منبه بوي چه په دیوالئې وتپې

## بهار

کړ شروع بلبل چغار
او، بوډا فقیر ستار
ويئ (*) غړم لې یو تار
شو موسم د نوبهار

ښکلې ښکالې سبزه زار
شو موسم د نوبهار

غوټۍ مېلې کړي خندا
عاشقان کړي مشغولا
بې خبره د دنیا
څڼک په څڼک سره دیار

شو موسم د نوبهار
ګل چمن نه نار زار

(*) وی: ولې.

معشوقې شولې مغروره ــــ ستر ګې د کتل د نوره

داشنا سره مخموره ــــ په مستۍ کوي رفتار

ګل چمن ترې نه زار زار

شو موسم د نوبهار

شو بدل د جهان د رنګ ــــ رنګ شو ټول جهان په رنګ

بڼې دیار نې چنګ په چنګ ــــ زړه زما د ګلزار

ښکلې ښکلې سبزه زار

شو موسم د نوبهار

سره ګلونه شین آسمان ــــ پاک ښیسته(*) مهین آسمان

لړ ښکلې نتے رنګین آسمان ــــ یا سپوږمۍ یا مخ دیار

ګل چمن ترې نه زار زار

ټول وطن ترینه زار زار

کوره ستر ګې دې ستورې ــــ یاره ! راشه په دې لورې

واړه غلې غلې کوي ــــ شو موسم د نوبهار

ښکلې ښکلې سبزه زار

ګل چمن نه زار زار

سپوږمۍ ټول دې ګلوېږي ــــ او دستور ولاس پرقیږي

اوس ښکاره شي اوس تېږي ــــ دورې غوبه ګلزار

---

(*) ښیسته : ښایسته

ښکلې ښکلې سبزه زار

شو موسم د نوبهار

غنې ناست د سینه په غاړه — دغمونو ترې تاو جاړه

څه به کړي سپوږمۍ واړه — څه فقیر څه نې ستار

ښکلې ښکلې سبزه زار

ګل چمن نه زار زار

## اې د مه پاره دلبره

مخ دې تابانه ستا — سترګې روښانه ستا

حسن بې شانه ستا — زړه دې دلګیر کړمه

ماښام د سینه په غاړه — چهره دنیا وېجاړه

ته وې ښیسته ولاړه — ګله دې نه ډېر کړمه

***

اې د مه پاره دلبره! — اې بې وفا دلبره!

شه بس زما دلبره! — ظلم کول وران دي

هسې نې نژدې غم لړې — ستا سترګې کوي خبرې

خو مو ښیسته بشرې — تا ته کتل ګران دي

***

ګوانې زړونه دېر شو — دا زړه مارغه ګیر شو

لاړو بهار تېر شو — عبث فریاد کومه

د نورو یار شوے ته — په بله لار شوے ته

منکار د دیدار شوے ته — خوبه دے یاد کومه

* * *

زړه دے صفا د غنی — قصه ربښتیا د غنی

مینه بلها (۱) د غنی — جانه! اتبار وکړه

راشه جانان شه د ده — وړوکے خان شه د ده

یو ورځ میزبان شه د ده — دیرے مدار وکړه

## غزا

مسلمان به نن غازی وُ — که هندو باندے غزا وُ

وئی (۲) کښے ته ټینګ نه یم — خو مولی تیږ ته واوه

## خان

خان راغیستی دی ملا پسے خوبارے — خپل کور هم که نخه پردی غونه زارے

بل ته وائی د حرص و باسه غابنونه — او بخپله سوان په لاس تیږے دارے

مل وطن بخپله وران کړے بل بدنام کړے — ملایان دے د کلی قاضیان خوار خرابے

چه بخپله به بیه تمام خرخوے ته — بیا به کوم مخ به ملا کوے پیشارے

چه بخپله دے مغ کال کښے نی (۳) ویغلی — بل ته صه وایه زړګیه! چه پوارے

---

(۱) ویره. (۲) وائی. (۳) نه وی.

تہ اول د صاحب پرېږده سلامونہ    بیا پہ دہ سہ سایہ پرېږده پہ ولاړے

دغني نصیحت واوره اوس خان سم کړه

خوله لنډه راخي بیا بیا توکلي لاړے

## اتفاق

ملاوائی مغربي تهذیب کړی کوے    وکیلان ئی مونږه غواړو اصلاحات

دہقان وائی مای افسوس بارا لاموکړه    سرکار ئی چہ لنږ تیکس پہ کړو مونږ زیات

بوډا پلار وائی فیشن د بنځو کار دے    کالجی زوی وائی پہ کار دے مساوات

دنیاوائی علم لار د ترقی ده    منکل وائی د ستا و پلار نہ وُ نقراط

باچاخان وائی آزاد داخپل وطن کړی    ملکان وائی اول دا کړه حوالات

غني وے کہ ما د زړه خبرے وے

پښتانہ بہ م پہ سر لوګی کړی مات

## انسان او فطرت

زمازړه د خوشحالی تازہ چمنو    چار چاپېره ترے باغچہ د یاسمنو

دلتہ زړکے هلتہ سوی بوراکان دو    یو خواکوت کښے پہ خندا شینکی طوطیان دو

وے پہ منځ کښے فوارے د امیدونو    دیارانو د دوستانو بنیستہ جنو

څوک بہ ترے ترے لاړه د تیزی نہ    څوک بہ پوره تلہ شو د خپلخانے

عزت دا چه لطرف ته خوشحالي وه — خوشحالي که خوشحالي د مالۍ (*) وه

څه خبر وم چه خزان به مې برباد کړي — دا زما همیشه خندان ازره به نابناد کړي

اې ظالمه کمبخته ابې داده ! — اې زما د خوشحالۍ د سر جلاده !

دا نبیسته بنیسته ګلونه لا غوټۍ دي — په دوی مه خاورې کوه دنیا آباده

خدایه دپاره خدای دپاره رحم وکړه

دا نبیسته بنګلې وړه باغچه زماده

## غم

که زه نه یم خوشحالي بچیرته وي — که خزانه وي مالي به چیرته نه وي

که بلانه لاړ اخوشه نګ بواړه ورکه شي — که ته کړي نه وي کالي به چیرته نه وي

دالله هم یو قدرت د حکمت ړک دے

دانسان عقل لا نه پوهیږي هلک دے

لندن

## دا روش دے د دنیا

چه ترمخ شي د چالرے — شي د ده نه هم فنا

ګیله مه کوه د چا نه — دا روش دے د دنیا

د دوی لاړے مې دي یادے — ما بنام تیر شو اوس سبا

بس ما نور غولولے نه شي — د زاغانو مشغولا

(*) مالۍ = مالیار، باغوان.

وروره : کلک ختک شوم چه راپورېږې داتمک شوم

دقسمت په تمال تالئ خورم کله خه کله راخه :

هم پښتون یم په نسب بدل اخلم د مرد ب

چه زړه (۱) هیرشوم زه بې هیر کړم

داروش دې د دنیا

لنډن

# ازبیل ته

زما هیر به نه شي ستالبان ښیسته نه دسې زړه په شان زلفان ښیسته

نه خندل ستا غلي غلي زما خوا کښې ستا شنوستر کو به تهرل جهان ښیسته

ورېښته به وګړی دوه، خې، د شپې حور چه دیدن له به د ګجور مرځان ښیسته

هغه لاس به لاس زمونږ د باغ سیلو نه هغه شین د ستوري د آسمان ښیسته

دامل دي چه خه تیر شي هغه هیر شي خو ما هیر نه کړې شو ستالبان ښیسته

خدایه ! بوځې دا خزان چه بهار راشي

بیا زمونږه د مینې شي جهان ښیسته

لنډن

# زوراور

اوه د غمه م شو سپین دستر کو تور وسوم خاور شوم ایرشوم لکه سکور

(۱) زړه ګي.

اے بلبله! که ژړا کړے ماله راشه — ګنے خه که خاندے وخندوه نور

سوے لوے لوغړن پتنګ وے خلکه! — راشئ ذکورئ زه نیم سوے په اور

لالهٔ شهیدو سترګے نے کړے منکته — بورا ولیده راپریوته نسکور

غټے سترګے د نرګس او بنکولا هوکړے

په لمبو شو د مړو مړ شوے اور

لنډن

## د ټوډے فریاد

چاکړو خرڅ خپل دین ایمان په جینکو — چا په مال چالتش په تمه د روپو

چابدل کړه په ملک چا په شرابو — څوک ناسے د مولغلی په تسپو

مونږ ځانه کړل په نوم مونږ لقبو نو — د صاحب د ینبو په ځای مو وتپو

اوس نو مونږ نه شو خوړے نه بنکلو لے

تش شپیلۍ ته لګیٔ واو (۱) لکه د سپو

## جته

بے تعلیمه ښځه غوا ده — سخر کتو له بے بها ده

نه ورانیږی نه سمیږی — بس پرشی یوه بلا ده

خولهٔ نے ژرند نه ورېږی — د چرچنو مشغولا ده

---

(۱) وهو.

زوړی بوران لوړئ ناولے — خود غوا پرے څه پروا ده

یو واده د خدای رحمت دی — یو طاعون دی یو وبا ده

په کالونه ښکلے کیږی — دا بله خو یه دلسر باده

په کیلو نه سترے کیږی — تل ویرونه دی غوغا ده

فلانے داسے فلانے داسے — دائے کار دائے سودا ده

وائی غنی مین په غوا
چه دروغ دے که رښتیا

# خرمستی

حسام شوله ما ته نیمه لاره کښے شوم پاتے — خوانی شوله مرا او د بیو پاره پرے شوم پاتے

ملما به خنده د جوبے ښکلے سهرے بلبلے — بوداشا خیل شوم یم (*) شلیکه تبل ته غزے

ستار شو تار په تار رد لوے د رباب پرے شوم پاتے — حسام شوله ما تیمه لاره کښے شوم پاتے

ولویم سینځ م اینه سکر چلبانے
اور سټری مسافر په لوی سفر څه یوازے

ستی شه دا مستی کړه کاره پرے شوم پاتے — حسام شوله ما تیمه لاره کښے شوم پاتے

یا تلمه الوتمه پر قیمه مسه اور دوم اور
سپیره پا ایرے شوم په زړه سوے په یخ تور

شه درک دا بودا تو دیغ د پاره پرے شوم پاتے — حسام شوله ما تیمه لاره کښے شوم پاتے

(*) یم، وایم

# ترانه

کړم به خپل وطن د ټول جهان د ننداره رو    ملک به کړم آزاد
نه جوړېږي بې زما د وينې دا دارو    تل به وي ناښاد

يا چه ځان قربان کړو    په وينو ئې سم وډان کړو
يا چه ئې سم جوړ کړو    يا چه ئې سم وران کړو

څو چه بيا ئې وينې دانقلاب کړو په نارو رو    هسې شو برباد
کړم به خپل وطن د ټول جهان د ننداره رو    هسې شو برباد

واچوئ منهيستمور دئ (۱)    سر په وينو سره ور دئ
کوري مونږ ته خپل پردئ    نن به ښئ ښکاره مردئ
ځان د خندنکران ئې تورو لاړو رو (۲)    دا وخت دئ د مراد

کړم به خپل وطن د ټول جهان د ننداره رو    ملک به کړم آزاد

څه به کړم بې ننګه قام    څه بکړم بې جنګه قام
وينو ګنې د ننګ بنګه قام    څه دئ د بې ننګه قام

يا به پورې لوګې شم يا به ئې جوړ کړم بې دار و رو    دا وطن برباد
کړم به خپل وطن د ټول جهان د ننداره رو    ملک به کړم آزاد

---

(۱) لباس، دريشي. (۲) مخفف د ټلاور.

# دعا

خدایه! ستا ورته دنیام نه ده خوښه — مالداره کړه بخیل لوی جهان کښې برخه

چه کوم ځائے کښې بې ګناه ګناهګار نه وی — چه کوم ځای کښې زنځیر د اغیار نه وی

چه کوم ځائے کښې وی بې حسه احساس — چه کوم ځای کښې صبر زړګی وی لو تښلاس

چه کوم ځائے کښې فریاد نه اوږدم د کوملهد — ماشومان یا په تو کړوه پسے په مسلهد

چه کوم ځائے کښې نه مزه شته نه قانون — نه عشق شته نه وصل نه نه بیلتون

چه کوم ځائے کښې وازے ستر نابینا وی — چه کوم ځائے کښې یو شان نن پرون سباوی

چه کوم ځائے کښې که بادشاه وی که ملنګ — نه ئے تخت او نه ئې تاج یو ئے پالنګ

چه کوم ځائے کښې مال اولاد دوستی بیکاره — چه کوم ځائے کښې نګاروان شته او نه لاره

ستر سترګے مې کړے پټے یا الله

زما خوښه نه ده ستا وره دنیا

## زړه او سر

نن بادشاه سره په جنګ شولو وزیر — غصه عقل شو په لار د ضمیر

وے عشق مه کوه دا پیغام دے د مرګی — زړګی وے نه! عشق آرام دے د زړګی

دا د پاک الله صفت دے — دا د نور ده رحمت دے

دا په دے محکمه جنت دے — د مفے جنت نعمت دے

دا له تولولوی دولت دی　　　　دا بانی د شجاعت دی

بې له دې به جهان سپوږی
بې نمکه لکه کور وی

## سر:

چوپ شه چوپ شه! نوکره د بتانو! 　　ئې غلام د تورو زلفو سرو لبانو
تورې زلفې دې دیار د غم تیارې کړې 　　سرۀ لبان ئې د دوزخ کوړه د شیطانانو
د ګنا مارېت په دې کلو کښې ناستې ی 　　لۀ جنته غورځولې دی انسانو (۱)
لېونی دې کړ مجنون فرهاد دې ورک کړ 　　ښار دې کړې تباه د بادشاهانو
دې بلا نۀ زلیخا په ټول جهان کړه 　　د مغولو کور د دې د لاسه ورانو
چه زما سره څوک مل وي تل یا دیږي 　　څوک سقراط د ذکر څو بقراط د څوک لقمانو
عمر څوک د هارون څوک د مامون څوک د 　　لۀ هر چا ولي باشا (۲) لوې سلیمانو؟

عالمان پیغمبران زما دوستان دی
عشق دې کار د لیونو یا ملنګانو

## زړه:

مکره لاړې دهقان نۀ م دي په کار 　　عطر وائی خپل قیمت چوپ وي عطار
راته ښکاره ته ئې روند په بینا سترګو 　　یاره میړه خو کړې مکر نۀ مکار
ته انسان ته ښیښې لاره په جهان کښې؟ 　　د جنت انسان ته مینه ښیښې لار

---

(۱) د قافیې په لحاظ د جمع او مفرد املا په یو شکل ولیکل شوه. (۲) باشا: پاچا، بادشاه.

د آدم نه دې د راز پوښتنه وکړه — تول جنت یې کړه په ده باندې نثار

یا تپوس ده د ارني موسیٰ نه وکړه — لا تهٔ شه و پوښتنه یو ورځ د حرا غار

د مجنون یاد فرهاد نه سلا واخله — یا منصور ته وایه ولې شوې په دار

منصور ځان کښې موسیٰ طور کښې نور لیدلو — پښه کوم لیلیٰ مجنون کړ بې اختیار

یو معشوق په بل بل رنګ په بل بل باس کښې — خندوي او ژړوي هزار هزار

جلال یو دې جمال یو دې کمال یو دې — هر عاشق یې وینې خو کښې د خپل یار

لکه ځنګ د نور په نور ه سپوږمۍ بلیږي — دا ښېښې معشوق نور د رب غفار

څه که خلک لیوني غني ته وائي

دیر منه پیر غني خپل یار م نور دیار

(اتمانزی)

# کونډه

کونډې ناسته په ژړا سر ټکوي — چه زما سړی په کولو شو شهیدان

کور یې کور شو تیاره دیوې یې سړې شوې — کونډه کانو کړل فنا ښیسته ځوانان

د دې د دې بچي سر ته ده ناسته — په ویرونو لړزوي ځمکه آسمان

ای زما د کونډې ملا لوبخدایه!

ای منصفه ازما د انصاف خدایه!

رحم وکړه په سپین سر تا ته ژړیږم — دا زما رو ستي کلاب د رانه مه بیا یه

دا یو ه ښانګه زما د تالا باغ ده — دا لالې زما مه بیا یه له دې ځایه

نور دې ورک کړل په ګولو د ګوړګانو — دا زما وروستي بچي پرېږده اے خدایه

دا زما د سوي زړه یو قلار دے

که نه الغلي نوجوان خان ته مه وایه

دا زما د کور دے ملایوه همساده — کمنے بیا ماتم لاړ د کورو بنایه

الله رحم په سپین سر د بوډۍ وکړه — مور کے راغے خلاص ئے کړو له ګریان

دبچي په سینه ساړه کړه عاجزے — بوي ترلاړ تش کالي شو بیا په میدان

په آسمان کښې فرښتې په ژړا سره شوے — په سجده پریواته ټول پیغمبران

## د عشق نور

د آسمان د سورې لاندے — او د ستورو مشغولا کښې

د یخ سیند په غاړه ناست وو — د وه یاران مشغولا کښې

د سپوږمۍ زړه شو خوشحاله — په خندا ئے لاس کړ پورے

د عشق نور ئے هرخوا خور کړ — په بلبل کښې په لالا کښې

خوشحالي وزر دے وکړے — چه ذره ذره د باغ سیل وکړي

او دا دواړه یاران بنګل کړي

د سره ستوري مشغولا کښې

(اتمانزی)

## اے زړه

اے زما د زړه بلبله ولے ژاړے؟! — ولے څه پسے خپه ئے څه شے غواړے؟

څه دېلې دې بوستان د عشرت پرېښودو — څه د پاره دې د غمونو لتې (۱) جاړے

دا ته ښکارې چې جوړ بیا نے شېل شوے — خلکه نه وې نغمے کوټ کښے ولاړے

دا ته څه وې؟ چې یورپ کښے دلبرے — د رقیب یارې کړه جوړې چې ته لاړے

دا یورپ دے چې ینګو کښے وفا نشته

بے وقوفه! ته د مړو نه مستی غواړے؟

(اتمانزی)

## ته او زه

ته د مینه د خوبند و کشره ئے — او زه د خپلو مشر رود یمه

خو په ښایست د ټولو مشره ئے — خکه همیش زه پروت نسکور یمه

ته ئے ګلاب په شکل او فطرت — او بل رنګ کیکر ازغے یمه زه

خوږ د ګبین نه خوږ دی ستا لذت — هسے بېخونده مزے یمه زه

لکه د ستورې ته ئے ګل د آسمان — د جهان د ناله کښے د زړه عکس نه یم

د شپېلۍ ساز پسے یم ګله روان — ګله په زړګو کښے ستا رقص نه یم

ته د سحر په شان ښیسته او یځه — زه د ماښام په شان غمګین او ستړے

---

(۱) لتوے.

نشه په ژوند دشراب ستا ډېر خه | زه په وسواس خور لے شوے مزے

ته دسپوږمۍ په شان موسکۍ هوښیاره | او زه دلمر په شان سوزېږم مه تل

ته دلولۍ په شان دګلو یاره | زه دبلبل په شان ژړېږم مه تل

ته ئے نسیم رازدار د ښکلو ګلو | زه ګونګټ یار د رژیدلو ګلو

ته ئے شبنم بے بے دنوو ګلو | او زه زوړ ګلشن وطن دسوړ ګلو

ستا په خوږ دم بو غزل دے ښکلے | ادم بو ویر زما د زړه وتلے

سهېلے تا نه ده خندا زده کړے | شپېلۍ زما سلګۍ دی اوریدلے

زه مقتدی یم او ته یم امام | ته ئے مالک زما او زه دے غلام

ستا د پښو ځاے زما دسر دے مقام | ستا ښکلے تن دے ما ته بیت الحرام

زما جونګړه یوه ده ویجاړه | ګلے: راځه چه ورله ورشو د داره

ستا په ښو وپټ به زما بدشی واره | ازغی م ښه ښکاری دګل پیچاره

(اتمانزی)

## بابا ته (۱)

ستا خط نه تول زما ته په راته دی | زه ئے لولم م شپه دوبار دوباره

کله خاندم کله ژاړم لیونے یم | اے زما په بند کښے پروت غریبه یاره

نه ته نه ئے غریب ته دیر لوے اوچت ئے | مصیبت دے ستا غزت ته غزت داره

---

(۱) دا یو منظوم خط دی چه غنی باچاخان ته دلندن نه دهغوی دیر شکایت آمیز مکتوب په جواب کښے لیکلے دی. باچاخان دغه وخت په جیل کښے ؤ.

خدای به رحم و نه په تا باندې لږ کړې — بل به نه زوې به ځي وکتلی ستا د پاره

چه په تا کښې کوم جوهر دې ما کښې نشته — ستا نیکۍ زما بدۍ دواړه بې شماره

ته سالار یې د کاروان په نیغ لار ځې — زه کوږ ځغلم لکه اوښ بې مهاره

ستا د زړه فوارې د کې دی د مینې — زما زړه وچ کوهې نه لري یو داره

وهم منډې تا پسې خو ته هم لرې — وینم ستا ایله ایله د پښو غباره

پروا نشته که په منډه و منډه و مړ شم

فقط ستا او د خپل قام د نوم د پاره

(لنډن)

## خانصاحب

پېسه تک خان زما لوې یار دې زما خوښ ډیر دې

کوی لمونځونه په روژو کښې له هر چا تیر دې

ابله ورځ م په یو ځای کښې ډیر دلګیر ولیده

ما ورې کاکا ولې خفه یې جومات دې هم میر دې

وئې ورې بچیه! بیکار ورا کړه غله را غلې

اوس وانه مسې د خفګانه روګو ده هیر دی

خوشحاله زده کښې شوم خو مخ م له خپګانه کړ دک

په یو کوټ میخ نه کیږي کور د بود الوې نیر(۱) دی

(۱) نیره ویاله، نهر.

بیا م تپوس په عمل د دې ترڅې د نقصان وکړو
بو دا په سر د سترګو په خوږ زړه دا بیان وکړو

وې بچیه: ما ته هر څوک مالدار وائي
تول پولیسان اتنغاصب یا نمبردار وائي

او اما ماران ته تپوس د زکاتو نو کوي
زما پېشانه ګان بې بل نشته څوک یېدار وائي

مولې وائي په څانانو کښې یو خان یم زه
عبث زما لغ کښې بېزار ته څوک هوښیار وائي

غله په تمه د روپو زه ما کره راغلي
ما ته خپله ستهنت صیب د سرکار وائي

خویم خپه چې په تېرشو لاس نه شو لو څه ت موزدان
اوس به تصه زما د کور په هر بازار وائي

چه منځ کان یکښې د شپې نیزه بازي کوینه
دیو جوار په دانه هم چرته تېندک نه خورینه

ما د کاکا: نن ورځ هر څوک د غم کاته کوي
پخپله مړي د لوږې بل نخیرا تو نه کوي

مخکه کا نه کړي یا په مسو مال د بغیانه غلي
بیا په مر یلا له د صابو کوې هغا تو نه کوي

بریتو غور کړي چې مهم اوس ترده خوره
یا تمانچه په ترخ کښې د واچینۍ (۱) فسادنه کوي

دا هسته بربوه پیسه کښې نشي
کوړي نهر دې جمعدار ته بیه ستونه کوي

نشه دده دانلا موخرخي (۵) د پلار مله کړي
مرېي هم د کوره تښتي مجبور نه کوي

خدای د پخپله ورته وکړي هدایت د لاړه
غنی که وائي څه ورته وائي (۲) تم د کوم ملا دې؟

---

(۱) واچوي. (۲) تم = تمو. (۵) خرڅي: خرڅوي.

# مورې

گرچه خاورو ته کړې پټ وجود ستا مورې!
ما ته یاد دې هغه شان ستا سترګې تورې

مورې! ستا لاسونه ما نه نه دي هېر
چه تکلیف کښې به زما نه و چاپېر

ستا د خولې نصیحت یاد دمه هر ماښام
د ګنجې د مرام مونږې د بهرام

ستا و مل د بل د مينې نه خوارېږم
ستا ګنځل زړه ته د بل دعا نه منه ورو

یا چه ما به ډېر خراب وکړل کارونه
او بابا به لړزول ځنګې آسمانونه

ته به وې زما ملګرې زما مل
او زما سلګو سره به تا ژړل

مورې یاد دې ما ته اوروکې تمال
چه تا زړه به نه نکولم کال په کال

ستا جوتې جوتې سندرې ارخندا
چه به سپک لګه د باد کړه وزړه زما

یا چه ما ته به له قسمه شوے په قار
زما اوښکې به دې بو تلې په زار زار

مورې یاد دې ما ته واره اخترونه
چه به تا په ښکلی مخ کينبول خالونه

په جګرو به دې زړه کړمه پاک ښیسته
ما به ځان کړلو په ختوابته

تا به ورهلم بيا به دې کړم ښکل
په خندا به دې زما ګنځل زغمل

ما ته یاد د هغه شان ستا موسکې شونډې
ما ته یاد د هغه شان میلوته منډې

چه ماښام به سترې کوره ته راغلم زه
ستا په غیږ به الله هو به شوم ویده

مورې: ما ته یاده شپه ده یوه توره
چه زما د وجود کړم له سره اوره

زما سره کښې و شغار د جهازونو
او غوږ ونه م کانه په آوازونو

زما مورې! ته تا به وې قربان ۔ زما وړنۍ ته به تا کاوه ګریان

مورې! ما ته یوه بله ورځ ده یاده ۔ چه زمونږ کور لړزید لوله فریاده

وه دیرغ شان ستا تاوده لاس نازنین ۔ ګلابي ننګۍ ستاوه بې رنګه سپین

ته موسکۍ په خوب ویده وې پاڅېدې نه ۔ ما ژړل درته او ته راوېښېدې نه

ما وې مورې: مورې! تا قربان، ونه وې ۔ وې پر ته خاموشه ګل په خزان سوې

ما ژړل او ته ویده وې خندیدلې ۔ ما ژړل او تا پسوس نکړو چه ولې؟

ګرچه خلو روکښې دي پټ وجود ستا مورې!

ما ته یاد دي هغه شان ستا سپږ تورې؟

## ګل که یار

اې زما د سترګو تورې! ۔ اې زما د زړه قراره!

اې زما د سر ګلابه! ۔ اې زما ښایسته یاره!

په زارۍ درته ولاړ یم ۔ یو نظر را باندې وکړه!

ستا زیارت له یم راغلې ۔ مسافر یمه په لاره!

مال دې حسن ته امیره ۔ او زه خوار و زار فقیر

د ښایست زکات دې راکړه ۔ اې زما مهر نګاره!

ته بلبل ته منیسته ګل ئې ۔ او پتنګ ته رڼا وې

خوله دې وسپړه ګله! ۔ ټول پراته دي بیقراره

ستا په پانو دا شبنم — دي زما په سترګو نم
ژړوي مام هر دم — ستا ازغي تېره بېشماره
در کوم زه د زړه وینې — چه ستا پانې شي رنګینې
دا ستا سرے شونډے ښکلے
ښو ګډے وینو په داره

## لیلیٰ

په پالنګ ناسته لیلیٰ په لاس کښې او په غېږ کښې ستار
سترګې ډکې د پرسان او انتظار نه د یار
د مرادو ګل په شان ئې مخ زیړے زیړے شان دے
ول ول ئې زلفې ترې چاپېره لکه تور ښامار
واره واره ښیسته لاسونه د خفګان نه مړه دي
په چوپه خوله د عشق سازونه وهي هر یو تار
لیونے نمر په زیړو سترګو دے سترګے لتهئ
ورو ستئ سلګئ کړي رو رو مړي لکه د غم بیمار
خو دے سترګے د بل چا د سترګو نور غواړي
نه زیړے لمر وینې او نه ددہ د سترګو خمار
سر ئې کړی غوږ کړو ځانئې غرق په خپلو وینو کښې کړ
سپوږمۍ سر تور کړو ورپسې ژاړي په زار زار زار

په پالنګ ناسته لیلی هغه شان سره تار غوږ وي

او خاني خبر عشق به کله بیا زړه کې دیار خوږ وي

# سوال

خدایه! وګړه د غنچې سره خندا؟ | که د خوار غریب بلبل سره ګریان

خدایه! وګورم د خپل یار بنګلي مخ ته | که د خپل سوي زړه ګې شم تماشان

خدایه! وویریږم ستا د لوښتو دوزخه | یا که تمه کړم شروع د حورو غلمان

ته مې پوه کړه ته مې پوه کړه نه پوهیږم

چې زه تا کړمه خوشحاله او که خان ؟

# لیونتوب

یا زه جوړیږم دا کل خلق لیوني دي | یا دوی جوړ دي بس یوزه یم لیونې

ما امتحان وو ستا دوزخ جنت | خه په بله دبلو نو ځان دړې (۱)

ورک داستا به ټول جهان او ټوله عالم شه | ورک داستا سا کړې عشق زه به ګوانې (۲)

دا شم لوړ نه دا خیال جهان ته | چې خپل جهان ښي ړک د پښیمانې

نه نیټه لري نه غم نه ورځ نه لوږه | تل سپوږمۍ شباب یارانې جان جانې

د سینا ګډ د چپو به شانې دانګې | خوشحالۍ ئې بې پروا جار دانې

---

(۱) د ملګري. (۲) ګوانې. مګر [illegible] (یا) ، [illegible] دی .

زما الهام ستا دلبر په شان خلیږي | خو دښمن دې نه د کال نه د خوانے
زما خلک هم ستا د خلکو په شان سوځي | خو په عشق کښې نه د خپتې په خانے
زه هم کړمه زلزلے عالم تباه کړم | چه موسکی کړم خوارې ښې با بخښانے
زه هم ورته عالم خاسے تو لجد کړم | چه بیتو انه شي د مینے د توانے
زه (۱) دوزخ جنت لوم ورو کے نه یم | دوزخیان کړم ستا د ملک په کامرانے
جنتیان کړم بورا کان په باغچو کرځي | یا الولې چه د کلو نوخښتي خوانے
زما ملک کښے دولت نشته خوشحالي ده | دې زمزم نه ما شراب سره نغانے
وې باران زما په ملک نه ما په او ښکو | په خندا انځامازا کړم نه ډېر خوانے

مست رنګین شیرین جهان دلیونې دے
ورته خاندې دک د مینے لیونے

# توبه

په نيلي دخيال او چت شوم لجهانه | څو دعقل فانوس لاس کښې مے روښانه
له ورځو چه شوم تيز فانوس مې مړ شو | په تياره هم نيلے لاړ ترنيم اسمانه
د فلک شهزادګي نا ستے وو باغچه کښے | ماله نه رالګيدل فانوس پتنګ په روښانه
د سپوږمۍ په رڼا تلم غمو عاشق شوم | خو تيار نه راغلے شو به مثال زمانه
چه دستور د زمانه هم او چت شوم | ماکړه قرض به وشغا له خپل ايمانه

ما دد ے په رڼا خپل غليظ خان وليد
په ژړا م سرکو بورته له کبريانه

(۱) زه: زه هم.

# سيل

ما ليدلي د فرنګ ښکلي جېزونه (1) — چه دالاندې تر غوږونګ وهي سينده نه

ما ليدلي محلونه دلنــدن — چېنګۍ مستې ازادې ګل بدن

ما ليدلي دايټلي ښېسته ښارونه — سرې انګورې سرې شرابې او سرې کلونه

ما ليدلي د پيرس ښار پېغلې ښکلې — په کردار ګفتار خوږې لکه بلبلې

ما ليدلي امريکه کښې دي ښارونه — چه ورېځوته ئې رسي مکانونه

ما ليدلي تاج محل غونتې د ګلو — د دهلي ښکلي ښارونه د مغلو

خو چه ووينم زه خپل د ختو کور — رانه هــېر شي محلونه ښېسته نور

دا نړۍ تنګې کوټې زما د کلي — ورته څه دي د دنيا ښارونه ښکلي

چه خرمخي ورور پښتانه سينې له مې شي — د ښه هېر به قول ښايست د بحر وبر شي

خدايه شکر چه پيدا دې کړه د قام کرم — د پښتون د نړۍ وجود دې يو اندام کړم

څه به کړم زه د لندن لوړې محلونه — د پيرس جونې ښېسته رومي کالونه

په والله چه له جنته به شم ستون
که کفل پکښې وانوړم د پښتون

---

(1) جهازونه .

# ګلې

ته چه ښکلې بې بهانې! زما دین زما دنیا

ګلې! ته ګل لالانې زما ستورے د سبا

ګلې! ګل د ګړ ګلزار ستا د مخه پرے بهار

که چینه ده که ابشار ستا خبره ستا خندا

شو حیران په چپل کردار چه ستا بت ئې کړ تیار

هغه لوے پروردګار ستا په سترګو شو شیدا

ته ئې جوړه کړے حسینه ګل بدنه ګل رنګینه

بیائې کړه ستا په جبینه

د سپوږمۍ سپینه رڼا

# بهانه

چه ئې عمر په صحراوی له خزانه ګیله نه که

دومره وسوسه غونه چه اوس مے هو سینه نه که

تا وے ماله ډالئ راکړه ما غریب به ئ څه ورینے

چونکه زغمے دي تول کړې په د لاسے ستا په څکه

زما د زړګي شکوه چینې ګل لاله تر زړه غوڅ نه شو

په ما ئې دام میږه شو بیا له خواره نه ګیله که

زه به څه ستا مالا روکړم په څه ستا سترګے رڼے کړم
زه ولاړ کچکول په لاس کښے پکښے بوے زړسے او به که

چه خوانی نے وژبیږی او دنیا غوټئی شی مړاوے
د تاتار کوه قاف حورے بخوا ځه که او څوک ځه که

لیونی ورو ورو ورکیږی خان پخپلو ګټو وژنی
ستا فراق عشق نے بهانه کړم او هر څه کا او س هر څه که

## پلوشه

چه ځوانی وه څه وزیران
وے به بزیږے لوی لوی پهان (۱)

ته راته لږه دا دخدای شان
چه نیم لغړ دی او نیم کنجیان

## غرور

که نه وه بلدیم هنه دی څوک ؟
چه نه وه هنه نمر څه دی څوک ؟

که هر ګل باغچه ګښت خاندی
په دیران پراته دی څوک ؟

دا چه ستے لوګی ته زارے
په دی اور وراته دی څوک ؟

هم ګوے عشق هم ګوے دیوونه
د بو نیر د اخره دی څوک ؟

غنی او هر سړی کوی لوبے
خو خبر تر سے نه دی څوک

---

(۱) لنډی بریت.

# پلوشه

وه تو نه راغله پیسه سیر پښتو ایمان خرڅیږي
پخوا به جوني خرڅیدلې اوس خوانان خرڅیږي
ژړا به نه کړم چه غنم جوار ارزان خرڅیږي
پرون سکال کوږې خرڅیدلې سږ بیوپاریان خرڅیږي

# اې دخاورې کله

په تکلیف کښې دې یو دوستی نکړه آواز
دې لمولو خوږ لمواره وسپکلې ساز
سوې زړه مې پوځل اوره آسمان تکړه
فرښتو ترینه چل نه دې وکړ د پرواز
بې پرواز مال عشقه په خندا ځي
اې دخاورې کله ته په څه کړې ناز

# ګله کوې

چه بې ننګه شي پښتون په سر نې دا ننګه
تښتېته د سخاتي ملا د بانګه
چه په طمع د دنیا کوي وعظونه
خدای دې د وچه کړي دد خبیث غړانګه
په والله که وصال پورې دې پرېږدي
که و یرېږي په د بېن د پیشو پړانګه
کله کله د غني هم قصه اوره
دا مې ده وروره د لوني ونې څانګه

# پلوشه

د جهان خبرې کوره — بیل به نکړې سپین له توره
اې غني! ګیله ترې مه کړه — شو به نه د دنیا شبکوره

# لوبه

دلربې لربې خلک را غلل تمام — دیدن له ستا دلربې لربې
زما یادیږي ستا وړې وړې خبرې — دلربې دلربې لربې

***

خوله دې مسکۍ سترګې غمازې — په لچک لچک په هوا ځې
باغ کې بلبلې سترګې نه وازې — ستا د دیدن شولې موتازې (*)
خدایږو که حورې ستا د نوک وي برابرې
جانان دلبرې دلربې لربې

زما په خوا کېنې هم غرورې کړې — چې د نه تبسم هم نعرې کړې
کله خندا کله بنیرې کړې — زما خوان زړه دې ذرې ذرې کړې
فرښتې ما ته د شیطان ګرلې وزرې
ارمان دلبرې دلربې لربې

کله دې څه! کله دې نا وې — کله دې نن کله سبا وې
په ژړا سره سترګې زما وي — موسکۍ رنګینې شونډې ستا وي
کله سوړ اسویلي کله شي داور نخرې
جانان دلبرې دلربې لربې

(*) موتازې: محتاجې

# کډه وړې

د سپینسو تار کښې لعلونه زه پیېمه — په پښتو کښې کړم خبرې عجیبه

د آسمان سیل کړم په ماتو وزرونو — بې جانانه یو وزرے عجیبه

تل مې ما م په زړګی کښې جانان ناست وی — خو خپل زړه له مانه لرے عجیبه

چه م یو نکے تر لرے کړ حیران شوم — خزے(۱) خرے شوی برابرے عجیبه

نه خپل د ناز ورځې نه د نیاز — د غنی حتې دلبرے عجیبه

لیونی د ختو لوتو په ډیرئ کښې

اکثر توے کړے ملغلرے عجیبه

# پلوشے

جومات ته لاړ په میخانه کوره — په زیان کښې سودے د شان جانانه کوره

نیته د ه لنا؟ او کاروانه ډیر دی — پوره بے نکرے خان له بانه کوره

# انصاف

تورے زلفې ئې خورې شوې ول ول په غونډو — عبادت م لا هو شو جوماتے او خالے م بلوده(۲)

د تقسیم په لوښو ئې کوږ هغه لوے ویشونکی — ماله عشق د شلو اکو باله ښایست د سلو

---

(۱) ښځې . (۲) بلوډ .

## په کار دي

لوی د زړه یې لري چه اسره یې لوئې لري — چه څوک ماتیا ساني دروازه لوئې لري

مه ژاړه مه ژاړه دا به هم تېر شي — هر څوک که کم شو کوي لوتې به سره لري

## زور

خدای چه پیدا کړو خانه زور — کړل ئې تر لاندې خیزونه نور

سر ئې او چت کړو ترنیم آسمانه — بادشاه د هر څه و بې سره زور

الله مو یو کې شو حسن پیدا شو

طاقت په چکه پریوت نسکور

## بادشاه خان خط

زما ګریوان شلېدلے — ستا شنه قبا مزه کا

زما ډک جام د میو — او ستا همسا مزه کا

چه شپه خلاصیږي توره — دنیا وینه دی نوره

ستا په مخ مو کښې ګوره — خندا زما مزه کا

په ښکلې وخت د سحر — لوے د ملګه بهر

د سوي لوي خکر — ورو ورو ژړا مزه کا

چه ورږوان شي نسیم — ته په سجده په تعظیم
ستا بندګي او تسلیم — مستي زما مزه کا
ته د سبا په تمه — زه د دنیا بې غمه

ستړګې مې سرې پر نمه
لیونتوب دا مزه کا

## نیمې مړې سترګې حیرانه وازې

په دک جهان کښې ګرځمه یواځې — نیمې مړې سترګې حیرانه وازې
چه ورځ شي خلاصه ما بنا مې راشي — تور مې د غم ماښام جامې راشي
دالر ستورې سپوږمۍ بې مهره — اوره که د تش زړونه تمامي راشي

کله به بس شي دا راتلل یواځې
نیمې مړې سترګې حیرانې وازې

مارې سپوږمۍ ته د نور میر مینې ؛ — دیار لیدلې دي تا ، سترګې خوب جنې
موسکۍ شوه پته شوه په ورېځو — هیڅ حال یې ونه وې د خپل بدنې

او زه پرېښوم غمګین یواځې
نیمې مړې سترګې حیرانې وازې

مازې لالته د حسن لورې ! — شونډې لیدلې دي تا ، هم د دلبرې
شرهنډ سرې رو رو کړ منبکته — ما ته یې ونه کړې د یار خبرې

اوه زه نے پرېښودم غمګين يواځے
نيمے مړے ستړے حيرانے وازے

بوراے وليد د غمه توره ډير پرېشانه ډير کړو کوره
ماونے ديار زلفے دنے تاليدلي څه لتهوے روره ! دالود په لوره

ليونے لاړه او زه نے پرېښودمه يواځے
نيمے مړے ستړے حيرانه وازے

لرے مے واوريل د مجنون شور لرے مے وليد فرهاد نسکور
د شيرين آه راور نسيم غيبزکښے د ليلى روح سوے د غم په اور

پوه شوم روان شوم يواځے
نيمے مړے ستړے حيرانے وازے

## د فقير اڼو غزل

ورورہ ! دى دا جهان يو مکان د فنا
ورته مکړه ژړا ورته مکړه ژړا

ما نبام خاورے شى ګل چه سحر شى پيدا
ورته مکړه ژړا ورته مکړه ژړا

دا چه لا نه يے د ښبودى دا خاورے ته کورے
وے د چا شونډے سرے او د چا سترګے تورے

دا یرے معشوقے وی چہ تللے پہ خندا
ورته مکره ژړا ورته مکره ژړا
دا مستی یو ساعت دا پستی یو گړی
دا سور شال دامیر د فقیر داشړی
دی داواره خیالی بے بنیاده دوکا (۱)
ورته مکره ژړا ورته مکره ژړا
مر دزړه کری صلا چه دنیا ده فانی
د پرون بنار یو کښنے نن ده ویرانی
دے یو خوب دا ژوندون دا ځوانی یو نشا (۲)
وے ځے پہ ژړا وے ځے پہ ژړا

## خوشحال خان خټک ته

دختکو لویه خانه (۳) ! د ټول پښتون سرداره
اے ننګیره دغمجنو د پریوتو مل دکاره !
آنجړا چه ته ئے خان وے، آکاروان چه تے امیر وے
آنجړو پہ وړانیدو ده، آکاروان دے بے مهاره

---

(۱) خدعه، فریب. (۲) نشه (۳) خوشحال خان خټک (۱۰۲۲ – ۱۱۰۰ هـ ق): — قهرمان، مبارزه، شاعر او لیکوال د ډېرو مؤلفاتو څښتن.

ستا په اوښکو زرغون شوے ستا په وینو پاللے

هغه باغ او غړن پروت دے بے بلبله بے بهاره

بیا د ننګ تورې تېرې کړه بیا ننګیالے دا دیره کړه

شه رڼا مرور خانه شه خړولا دلګیره سالاره

## پلوشه

لکه مور چه په بچي انګې خوړے کا — دا پروت دے د شبنم په غېږ کښې کل جهان
ډوغه چنبه مینه ناکه د مور سترګه — که سپوږمۍ ډه دا ولاړه په آسمان

## لږ شو خمار پیدا

دا سره شراب دا سره ګلاب د ورشباب خت — ساز د رباب ما شوم دلبر ام هم بے حجاب

لږ شو خمار پیدا په مخ د یار پیدا

دا بنګلے خط دا بنیسته خال که په جمال — لکه ملال جانانه کړم د حلال حلال

چه شو خمار پیدا ستا په خیال پیدا

وخت د ملنګ د کل وجود ما تمام او زړ نم کړ — ما ته نه زیان هم کړو لکه سود

چه شو خمار پیدا په مخ د یار پیدا

د ژوند کاروان وړی جانان — دغه م دے دغه ارمان

چه شو خمار پیدا ستا په خیال پیدا

# پلوشه

دومره ښکلې دې زمانې نن ښایسته | چې د باغ تن لو ژوبا یان ښایسته
نوریاره تش په تن بانړه ښایسته وو | د ړه حسن که همه جهان ښایسته
د جادو ډوډو سترګو مینه ناکو | لیونی ته مې بکاره شوخان ښایسته

# میا جعفر شاه ته خط

بیا را یاد شو د ملک خوږې خبرې | په پنجره کښې کړم فریاد لکه تنځرې
چرته نرمې ښتین تا چرته میوزې | چرته [illegible] چترګوله(۱) چترشکرې
چې خوړې ماته نن دې زمانه لرې | ځکه مانې په یکوم د خیال وزرې

دکوټې سادهو خرابې چنو دال کړه
په پوا اووپسې ستر شوې چغرې

# کله وړې

زړه مې پسې د چا د خوشنام نکړ اتل | هغه په موټر کا کښې په ستر هتو باند
کوړ ونزا چاره دې په ایشولو ترسکو نیږي | ښخه مربه نه چینه تا وی مزه کاند
مالي د وصال په سبار کوتا نب که چې بل | دوره مهذب او ښایسته زما جانان دی

---

(۱) ولمه [illegible] دهنددان په (یو۔ پي) ولایت یو ښار دے [illegible] غانه دبورے [illegible] کښې افغان [illegible]
(۵) میا جعفر شاه [illegible] ۱۹۰۲ ع [illegible] صاحب [illegible] سیاسي [illegible]
[illegible] دي د سیاسي سیرته [illegible] ادبي سیرت هم لري۔

نن چه د مس گوتے (۱) د بابا په کور داخل شوم
لس توتے تاریخ وکړے وه دار د غنی خان دی

### یکو شه

پیاله د جانان سره که دنیا نیستی او شکو ډکے
لبه نکته نے کالابی شو په وزر دلو کے
فاد انسیخه وکړه شه شراب دی شراب نه دی
دا د نیا نیستی او سکے چه کړی کالکے نوم سینے

### یکو شه

کفتار د لیونو کښے وی کلونه هم ماران
قطار د لیونو کښے دیر دار پیغمبران
پروانے غنی نکړے کړے سپک تلی که دے زړه
تف! ښه به د جهان دی خه بودد جهان

### یکو شه

حسن په بازار کښے مونږ پیو د رخ روان شو
پو شاک نے مقدر دی هغه تنخه د مل سپین ساو
ناکام پرے آواز یو د قبلے دد دے دوشو
خه سخاله خه ملا، داد کو خه د لیونو

### یکو شه

بیکام خوب کښے خان جنت کښے ولیده
پلاس کښے دو دنو دیر پلی ونه د رو یو
د باران چه لته وکړه د دوزخ تاترین گرته
خان خپله کته او نه خیر زی به پردد

### یکو شه

چاته نے بنایست ورکړ غمگین
چاته نے غم ورکړ بنایسته
ته نے هم مست او هم هوښیار کړم
هم نے په تخت کړم هم په تخته

---

(۱) پیغلو کے (۲) دانظم د د ترن د مراعت نه آزاد دی۔

# کارغه او بلبل (۱)

دخزان دوران ؤ نوے دو یو دوه کلونه سوے

یو بلبل په مراوے ځانګه نغمے کړے سوے سوے

خدایه! شوکور دغم روکی زړګے زما شوے شکوے په غم سترځوږے زما

تازه عشق نوے دلبر نوے شباب د لاله پیاله کښے سره ګلرنګ شراب

د دنیا د وږو سترګو نه په دده یو با غنچه کښے پټ په غاړه د دریاب

د نبیسته ستورو په باغ کښے سپوږمۍ سپینه کله خاندے کله پټه په نقاب

زه ملشوم ورک شوی یار پسے ژړیږم په جنت کښے د دوزخ غم عذاب

های شوکور دغم روکی زړګے زما
شوے شکوے په غم سترځوږے زما

یو کارغه چرته راوتی ؤ له کوړه پښخزلو کښے ګنډه منبوکه توره

د بلبل ژړا نے تیره شوه ترغوږو ورو وران شوے وے کم عقله وږو

وے صنم صنم وے نعرے دغم
مکړه ګیله د ستم له روزئ ډک دی عالم

کوره خیته چه دی ورږ نو صنم مړه نه کا خوږ سترګے به دیارے نے دچرماته نه کا

ما به هم داستا په شان خلی نهایت شیلے دم نو خو به دالله کرم خپل سپینه سره نه کا

---

(۱) دا نظم د وزن د مراعت نه آزاد دی.

خوږ د تورتان خاندي بلبله دا دنیا ده نشه ملبه    نن نصیب دي کوي غوږونه شیله(۱) نسبا خوږه نه کا

پرېږده دا غم لوړېږي لکه ماشوم ناداان
نه د آسمان د غمه پخلنه پېښې(۲) تورتان

## پلوشه

یاره ی معنه مزه کا    چه د دا ره سیال وي
وږې هم د و مره وي    چه خوږ ما نه خیال وي
شپه به جنت خدایا    چه د وا ره اال وي
خوږ ما چه ز ړه وي ډېر مینه کله    دومره جمال وي
د قام به مینه مسته    کو غږ کله لال وي
دا لیوني به هسله    خدایه خوشحال وي
چه لاس اوږده وي دده
تا رون مال وي

## پلوشه

شین زړي شه مدام خوږ ما د هوسو غوږ ښې    کنه بار شه همېش خوږ د سیسو غو ښې
یا کوه تن اساني د غني بار شه    خوږ مه کله بازاري د پیسو غو ښې

## پلوشه

لکه بت بیناب کا یو یه ورنا شمکو ریم    عشق دا زلکه کا وکړ ې په ما بانده ې

(۱) شنا یا . (۲) نه د پېښې .

غنی جام د جل نی مخمور پاکل کړے | که ایے پو تے د عو بشه سره دا ئر ئے
---|---

پښتو شم

| دعاشق مخمورے ستر گے | که د یار مشګر نے شتو نه ئے |
|---|---|
| که غوټی دی دنو ګسو | په سرو ګو تو ګنبے ا غو نه ئے |

# ریشته

| یا بے جړو ونه زه وے | او یا بے پرو مار غه وے |
|---|---|
| یا د نیم آسمان وے ستوړے | یا د سینه د میخ او بد وے |
| یا تناکے وے د شبنم زه | نه م پلار نه م نیکه وے |
| نه م دوست نه م دښمن وے | نه م بد وے نه م ښه وے |
| دا جهان به لوے جنت ؤ | که ریشته نه وے سر خه وے |
| خدایه : زه به ستا عاشق وم | که ته دوے ستا تبه نه وے |
| عاشقی به بزرګی وه | که عشق وے معشوق نه وے |
| ربښتیا زه که خیل مالک وم | یا به زه وم یا به ته وے |

هی دغه د سردا و ږه
که غنی وے خه به ښه وے

## پلوشه

ستا فراق په ما قیامت کړ　　یا به څه به وي قیامت اوس

ستا په عشق کښې رسوا خو بس یم　　یا به څه به وي عزت اوس

د همه جهان بلبلې　　ستا یو خال نه دي ستایلې

خو د ګل صفت پوره کړې　　د ګل څه به وي صفت اوس

ستا یو خوږ نظر دلبرې　　ستا یو دوه پښتنې خبرې

ما ته ملک جنت جنت کړ　　کوره څه به وي جنت اوس

بار (۱) درون جلبل صنمې　　ستا د دوو سترګو په غمې

خوار غني لوغړن پروت دے

ستا به څوک کوي صفت اوس

## پلوشه

یو ارمان مې په زړه راشي کله کله　　شنې لښې دا ورمې خیږي له ګو کله

ناګهان مې د مستۍ چپې لاموکړي　　ناګهانه مې سر عقل شي بې کله (۲)

زړه مې وښیسي یو پنجه د فرلادو　　کړې نچوړ ترې د خودۍ عرق یو ځله

زه بې خوده لیونے زړه مې آموشي

نه پوهیږي که نے پوه کړے هزار ځله

---

(۱) بهر، یعنې د ننه بیرون.

(۲) کل هندي کلمه ده، یعنې عقل مې بې انتظامه او بې اداره شي.

# پلوشه

مراوے مستر کے کړه راپورته مستر کوته زما دلبرے

خانده وخانده مسکۍ مشه په رښتیا نها دلبرے

راشه خوا کښنے زما کښینه سر زما په سینه کیږده

د مستۍ په خوب ویده شه پریږده دا دنیا دلبرے

دا غمونه نه خلاصیږي چې څو ژوند نه وي خلاص شوے

څه چې پټ ترے یو ساعت شو دیوبل په خوا دلبرے

# زه

نه زه فلسفي یم خلکه نه زه لیونے یم

یو غریب بچے زه د پښتون د پلار کلنے یم

واړه مې یاران دي یو دښمن مې چرته نشته دے

زه د خان دښمن یم چې له خان ډیر ترینے یم

بعضې ځاے کښې لږ بعضې کښې ډیر یم خلکو لوے کړے

خیال مې د سبا دے پیدا شوے پرونے یم

خوښ مې دي ګلونه هم منګاره نه هم اسونه

خوښ مې نر پښتون دي زه داوړي پښتنے یم

نیت مې دے طواف ته د وطن د تور د ختو

سترګے د طواف نه د مکې د مدینې یم

زه وم په وطن مین خو تن جلا وطن کړم

زه د سره ګل نه شوم هسې زه تورې سپېلنې یم

زه هسې بې نمه او ایمان په تپېر نه خرڅوم

ځکه لیونۍ یم خلکه ځکه لیونی یم

## پلوشه

په تورو شپو د غم کښې یو غړی د رڼا — زړغون په ډیوا کښې نه بیسته تو دلالا

دوېږې تورې ځنګل کښې یوه زړګه په خندا — یو ځاځکی د امید د ناامید په دنیا

رنګینې د بوډۍ تال د تورې شګو په صحرا

مستي د ځوانۍ د که دلبر دې که الله

## معمّا

هم زما خواږه دې هم خوږې بناپیکړ دې — هم د زړه هم د مېړنې هم د منزل دې

اوسې په څرمنه کښې راځي په تکلیف — خو بښي د پښتنو د ملا صاحب پروړي دې

## پلوشه

ته زما د ماتې زړګي دارو د غم تعویذ نې — ستا په مینه مستې سترګې خوږو دي عزیز

ستا ښکلو پایو لاړې زما د کلي بستې ! — پتې به د خوږو د جنت نه کم نکړي

ستا د انګوړو به د نرګس غوټه ایرې کړم

ښکلي ښهزادګۍ به واړه کړمه ستا کنیزې

# لنډی چرګ

نن چرګ د انقلاب د هی نعرے ۔ قوقو ۔ جوړ وخت شو د سبا
خونه خی د جومات نه انګازے دالله هو ویلی پروت دی ملا
بیګا د جمعے شپه وه دیر تالی راغلی وو خوږ پکښے حلوا
خو څه شول طالبان ځی ما پرون لید لی وو که وینس نه دے ملا
پرون نے طالبانو دیر باد رنګ خوړ لی وو تول ناست دی په بیدیا
ورو کے چینی ځه شو چه هم ږه به کړی داړه راوینس به کړی ملا
هغه بیګا تیاره کښے دیر تیپر خوړلی وو د موکه کښے د حلوا
الله په نس ئی د پردو تول پښیه لے کړل ۔ او بلو ۔ وه پروت په مصلا
اوس ځوک ورکړی جومات کښے انګازی دالله هو جهان کښے شو رنا
لنډ یه چرګه زنزرکړه وا نعرے (*) د قوقو راوینس به شی ملا

# د مالی وزیر ته خط

لویه او بنده وزیره ودوره ! اود آمدن لری

صیب ولکاه وه دموه کیل په خوله میتر

دام یو مشین دے تیز رفتار لکه موټر

(*) ټا ، وهـ .

صیب ټېکس(۱) به اخلي د بګواس(۳) او د ته تور    زیات به پېغور وي چه د ګرۍ غوټ د لنډان لري

لویه اوږه ده بیړه وروره : اوږه د آمدن لري

صیبه: مالیه کیږده د چاپیو به چاپینګ    لوی به آمدن وي د ټېکس نه د بنانګ

دا تپوس دې نه وي چه خانصیب دې ګه ملک    اخله تر ټېکس آن د صیب(۲) د دیدن لري

لویه اوږه ډېره وروره : اوږه د آمدن لري

کیږ ډیو ټېکس صیبه: په لویو لویو ږیږو    ونه کړې معافي که څو د سوار آزیاد دیږو

ټول عالم به واني دا ډېر هوښیار وزیر و    خیال د غریب دیره د غریب وطن لري

لویه اوږه ډېره وروره : اوږه د آمدن لري

مالې تحصیلدار ته صیبه وادره سفارش    ستا به ډیر ټولېږي زما به لږ ورزش

دک به رد پو کړم د سرکار خزانې تش    صیبه: تحصیلدار هر چا پولا پالنګ بستن لري

لویه اوږه ډېره وروره : اوږه د آمدن لري

## خرو

یو م خان لالا دی چه دی نن په سر خپو شانو
یو نه ملغرو دی چه تاکو دی د چور یانو

یو معتبر خان د حجرې د لاروباسي کور

ده نه ځنارې ده د ده د بچو مور

---

(۱) مالیه - محصول . (۲) خلک . (۳) بګواس چېچېړې . قصه خبرې .
(۴) ټکری: شهادتنامه ، د تحصیل سند .

لاس ئے رتبه: مات کړے چه دهٔ د پښتون خور

کاشکې دده پوزه کښے دده د خور پیزوان وُ

منږ زما خرو دے چه تا کو دے د چوړیانو

یو مستانه خان دے تیز روړئ کښے لته خیرات کښے

رسی بونیام (۱)، ته که وی دیر کښے که وی سوات کښے

هلته او پښکال د مالینے په حوالات کښے

یله د متیز کو مد کارد بد ماشانو (۲)

منږ زما خرو دے چه تا کو دے د چوړیانو

پو پیسه تک خان دے خبر له چنګ ربابه

مرنو کړه به قبض کړی روډئ ورکمیٔ (۳) خرابه

نه خه دی خوړ شی نه ویستے شی بے جولابه

وروره زمانه شی دا ورورګی د ملنګ اریانو (۴)

منږ زما خرو دے چه تا کو دے د چوړیانو

یو زور پښتون خان دے خوښوی نیزه بازی

خوښئے دی ښکاره نه د لغړ او د تازی

---

(۱) بونیام پاکستان کښے یو زیارت دی چه کالنی کرمه په کښے لګی.

(۲) بد معاشانو. (۳) ورکوی.

(۴) ماروارډ د هندوستان د سوراشتر په صوبه کښے دیو غاړی نوم دی چه خلک ئے په کروړپتیانو مشهور دی.

نو زړور تې دیوسفزي دمحمدزي

هم په قام مین دي هم مین دي په چپـلوانو
خوبنې دیر خرړدي چه تاکودي دچو رپانو

په لیوني خادنے نه په خادنے نه په بل
نه ددوړي بونه پرې ډله نه ږخي داچل

نه خلمی ته نروانی او غل ته دانی غل
خدای بے پرواجوړکړ پرواته کړي دخانانو
خوبنې دیر خرړدي چه تاکو دے دچورپانو

## دریے ژوړے

| | | |
|---|---|---|
| سوال: | ځوک نے ته جناب ! | خان نے که نواب ! |
| | بنګلې دےجوسه دوبریتوکښې دوضعدار دے | دامزے دنبار دے |
| | (۱) بنه انګریزي بو ته | بنګلانوے سو ته |
| | هیبت دےقره ناک خوجرابه کښې دنے سوړ وینم | (۲) خته دےلږ تر وینم |
| ځواب: | چوپ شه بے وقوفه ! | زه یمه مصروفه |
| | زه تیکه کوم اورنږده بخښونه دچل ول | فیس را ور ره اول |
| | مشکر د تو یک | تل م جیب وي ډک |

---

(۱) وکیل دعوا، ډاکتر بیمار (۲) انګریزي خولۍ.

ښه مې دلاله سم دے دخبرې چغېنګ | شکر د توپک

سوال: ته څوک يې حضور؟ | سوے لګه طور

لاس کښې دے انبور د صيبتې ته يې جوړ لوهار؟ | دا مزے د ښار

رنګ دے مرخن | غوب دے بدن

پاد کے چشمې د سخوتوپي کښې دے داغونه دي | زيړ شان کے د غابونه دي

خواب: زه کسر انجکشن | تشخيص او اپريشن

لاس کښې مې شفاده په تندې کښې مې اجل | فيس را وړه اول

پاس که دلندن وي | يا د امريکن وي

واره ماپروکړي زه ډاکټر يم اېشې ېمه | شي پو سود ېشې (۱) ېمه

سوال: ته څوک يې چاتا ! ؟ | دلې که کوا تا !

څڅمې د کے پاپې دي نو ورته ازکين يې بے مقدار | دا مزے د ښار

خوږ مې مهين کلام | غور دے هر مقام

(خو:)
ستر د کے دمار دي په لنه خيبر دلسه مې | شان شوکت دے کم

خواب: ديرکوپے د کے خان | کور کښې تاوان

لسو بانده واخيسته او خرچ يې کړه په شل | خپل کور ولو تل

دلته چې بيو پار و | يار زمونږ ستا پلار و

مونږ پورو دو کالي هم مغے نه واخيستل | خپل کور ولو تل

---

(۱) ولشي .

# پلوشه

دلبر دوارو دلبرانو دے دلدار زما
سردار دوارو سردارانو دے سردار زما

زما په کله شغله کښے د سپوږمۍ شي جانان
کله لاله شي کله بیا بنیسته لولۍ شي جانان

کله اهیل کله د سور ګلاب غوټۍ شي جانان
ورته به وایم چه بیا ما سره یو ځای شي جانان

دلبر دوارو دلبرانو دے دلدار زما

یا لمر خاته کښے خمارے سترګے راپورته کړي
سپینه سپوږمۍ شي موسکۍ خوله د جانان لوته کړي

ما په خندا خندل د غم له کندو پورته کړي
دلبر دوارو دلبرانو دے دلدار زما

سردار دوارو سردارانو دی سردار زما

# پلوشه

لاړه که ځوانی شی ده ځوانی جانه د تللو شی
لاړه که ښکلی رنګ شی ښکلی رنګ دے د بایللو شی
خلکه ژوندون د خلاص شی دی ژوندون د خلاصیدلو شی
واړه دا فانی دی بې فنا د عشق سازونه دی
عشق به تل ژوندی وی څو چې ځمکه آسمانونه دی

# دلربا

نه مې پلار شته نه مې مور — واړه خونه مې تالا
نه زما په غم څوک پوه شو — نه زما په واویلا
دا چې ما ده کومه کړے — څوک دی بې له دے ګناه !
داګناه ده د فطرت — داګناه نه ده زما
خو یو کس مې دنیا کښے — دی مې پلار هم مور زما
تل زما د غمه ژاړی — سودائی مې ده سودا
نصیحت به پسته ژبه — شکایت هم په خندا
وارخطا لکه د مور شی — په پوهې سختی زما

پاکیزه لکه سپوږمۍ ده    د همه خوږو خوږا (۱)

په ښایست د جنت حوره    په خویونو فرښتا (۲)

ما بخپله مینه پیدا کړی    له غمونو د دنیا

د جنت د رنګه زیات    دی رنګین دلبر زما

که دنیا کښې وحدت نه وی    مالیدلې ده چینا (۳)

د الله د نقش کمال دی
مخ زما د دلربا

# هی هی زما لیلی

ماوی زما لیلی به مینکې مسته مسته ګرځی    یو باغ کښې په چمنا

ماوی زما لیلی به لکه ګل ترو تازا (۴)    د ګلونه ښیستا

ماوی لیلی شونډانې به غوټۍ وی د ګلاب
ښیسته به یې سازونه ټنګوی لکه رباب
په سور او رد مستی به ټنګی وی سره کباب
بې تاجه ملکه به وی د حسن د دنیا

د ګلونه ښیستا (۵) هی هی زما لیلی

ماوی د لیلی سترګې به سرې مستې په خماروی

---

(۱-۲-۳-) د ضرورت شعري له کبله په الف لیکل شوي.
(۱) خوږه (۲) فرښته (۳) چینه. (۴) تازه (۵) ښایسته

ماوے په سپينه غاړه بے (۱) دسرو ګلونو هاروی

په لاس به ئې کوتے څه چه به دنرګس ګبمبل قطاروی

ورنمينه دپته کښے ښيست پټ او څه ښکاره

دګلونه ښيستا ‌‌ مئې مئې زماليلیٰ

ماوے زماليلیٰ ده دلا لا دسترګو تور

بابا ته ديره ګرانه ده نيازبينه ده دمور

زمادزړه بي بي ليلیٰ بی بی ده دخپل کور

موسکئ ماښام ويده شی سحر پاڅی په خندا

دګلونه ښيستا ‌‌ مئې مئې زماليلیٰ

نشته په دے خيالاتو خوبونه په جهان کښے

محل ته دليلیٰ مجنون روان شو بيابان کښے

نه باغ ونه بنګله وه ليلیٰ ناسته وه دالان کښے

ښيسته سر ئې تور وه غوجل کښے لوپټا

مئې مئې زماليلیٰ ‌‌ دګلونه ښيستا

ګبمبل دنرګس کوتے دڅپيا کے نه چاپيره

په صفا، ريمن (۲) کميس ئې وه هم کيا ړه بار م تيره

ليلیٰ مينځ کښے لوغيږی شين لوکے تر مينه چاپيره

---

(۱) به ئې ۔ (۲) خيرن غوندې ۔

غلو بنت خوارزه دوستان نه ذو راغلی دلا لا

مئ مئ زما لیلی د کلونه بنیستا

لبنستی نه دغلو د ملا په تیر بنکته روان

په زلفو کښې خو قسمه غونه وے د دیران

سرے شونډے سپیرو چپے د خندلو په ارمان (*)

مئ مئ زما لیلی د کلونه بنیستا

## پلوشه

دا دے وینم دلربا! په مخ کښې ستر کے که د حسن سمندر کښې د نور کور کے

دا دے وینم دلربا! په خوله کښې شونډے که د وو حورے د جنت باغ کښې بریښے

دا دے وینم دلربا! ستر کو کښې نم
په ننکو که د نرگسو دے شبنم

## بهار

بلبل گلزار ته نن په دیر سینګار راغے په خمار و ستر کو کښې نوے خمار راغے

جورے بهار راغے جورے بهار راغے غوټئ شوے پیغلے وخت د بهار راغے

بلبل راپریږی نن نه دلدار راغے خو نه خبر راغاونه م یار راغے

غوټئ شوے پیغلے وخت د بهار راغے

---

(*) نامکمل.

سپوږمۍ شراب لوني د نبيت په جام ياره ... ورته مرې مرې کړم پورته ستر باداميارۀ
چه د ته روانۍ بيا زما د سلغام ياره ... سپوږمۍ م ونه ليدۀ د ستا په بام ياره
دا څوک شراب لوني د نبيت په جام ياره

کله د سترګو کښې کړم سپوږمۍ مسوران زما ... ورو به هنوولينه داد جانان زما
وايه چه بنکته شي اوس داد د آسمان زما ... چه څوب کښې ورښي تول ګين جهان زما
کله دي په شراب کښې سپوږمۍ مسوران زما

خواني له مانه واخله مستي له مانه واخله ... دا د روه کلونه سپوږمۍ لمبابانه واخله
په هنبو ولونوه وايه جانانه واخله ... صدقه د سترګو شونډې د دخپل آشنانه واخله
خواني له مانه واخله مستي لمبا نه واخله ... بلبل کلزار ته نن په ډير سينګار راغے
جوړ بهار راغے جوړ بهار راغي ... چاته سلام راغے چاته دلداره راغے
خونه خبر راغے اونه م يار راغے
په خمار ستر کو کښې نوې خمار راغے

## وړے (۱)

څوک دے ماته روانۍ ... څرنګے شيدا شي څوک ؟
څوک چه چاته وخاندي ... وړے په خندا شي څوک ؟
ستورے د غره څوک ته ... غلے شان بيکار وے

---

(۱) دا شعر غني د خپل وادۀ په شپه ليکلے دے.

مینے پہ ژړا وو ے حسن پہ خندا وو ے
ماتہ موسکو سترګو کښے ښکلی دلربا وو ے
ولے څوک زړه وبايلے؟ څرنګے شيدا شی څوک؟

څوک چہ چاتہ وخاندی
ولے پہ خندا شی څوک؟

سترګو د مجنون وو ے او ښکو د لیلیٰ وو ے
وو ے پہ نشہ څوانئ غم وړو پہ سودا وو ے
ماتہ موسکو سترګو کښے ښکلے دلربا وو ے
ولے څوک زړه وبايلی؟ څرنګے شيدا شی څوک؟

څوک چہ چاتہ وخاندی
ولے پہ خندا شی څوک؟

## ورو ورو

ورو رو ظالمه داڅپغے نا وړے
ورو رو پرے پښے پرده دانه دی خا رے
داخو ستئ دی داخو څوانئ دی
سپینے د کوکے لکہ د وا ورے

# ولے ته

سر په مځکه بانده کیږده | چه په راز پوه د آسمان شې
سترګې ستورو ته کړه پورته | چه په شان پوه د جهان شې
لږ سر ښکته په ژړا کړه | چه مزه د خندا واخلې
د دنیا نه ځان راغونډ کړه | چه مزه د دنیا واخلې
د چیلې په کوټګۍ کښې | یو پیاله د شراب واخله
خوله دے وچه په لوږه کړه | بیا مزه د کباب واخله
لیونی زما په شان شه | چه په راز د خودۍ پوهې شې (۱)
سر او زړه دے ماشوم کړه | لیونیه چه سړے شې (۲)

# مینه او حسن

ستورے ته آسمان کښې یوه ورځ ووے ملال
خدای آدم له مینه ورکړه موږ له تش جمال
زه به په خندا ورکړم دا خپل ښیست دے کمال.
ماله که یو ښاغلے مینه راکړي خوګ په سوال
مینه حقیقت حسن سایه د حقیقت ده | حسن له زوال شته مینه نه لري زوال

---

(۱-۲) چه د پوه (ه) او د سړي (ی)، په مجهولو (ے) تلفظ شي نو قافیه به برخته شي.

# زما د کلو لښتې

خدایه زه به وم خوشحاله د جا خنجر به زړه کښې
ستا وفا لا لوغړن کړم بې وفا به وې لا ښه

موسکۍ شونډې د لښتې د عماد ږن بیرون ستې کړې
ستا خندا د شتې ګوزار دې په ژړا به وې لا ښه

تحچه ژاړې زما غم کښې بل غم هم په ما انبار کړې
ستا سودا زه سودائي کړم بې سودا به وې لا ښه

خان م هم خاور د ایرې کړ ته م هم په اور دستي کړې
اے زما د کلو لښتې بې زما به وې لا ښه

# ځواني

دا بسم الله خدایه: دالیونۍ ده
چه ځواني نښیست دې او نښیست ځواني ده
بوډا خوشحال بابا سپین سر کړ پوره
وې خاني توره ده او توره خاني ده
د منان خان هسا د منانۍ دا ملا
دا هم ثاني ده
دا هم ثاني ده

مسته رنډی زما		روغه مستی زما

خاندانی ده

خاندانی ده

## پلوشه

د مستې جینۍ نښه ده بنګړي دیر ماتوي

چه لږ نوره مسته شي زړګي دیر ماتوي

## ګډې وډې

شوق کښې د وصال		چه مس خوته ورته دے

څوک کښې نۍ سګرټ		زما خوله وسوځیدله

راغې د تهذیب باران		په ملک د خوار پښتون

ګرمۍ جومات لا هو شو		هم کوټه نۍ څڅیدله

نوې زمانه ده		که د ګلو وصل غواړې

اوس په انګریزۍ کښې		واویلا کوه بلبله

ماسره یو نه ګاوه		پیدا شوه بله

بند د لاس نګریز شوې		ګړنۍ وچلیدله

تلې د لندن ته مجنون		اوس د رایوز ده کی (۱)

او نه لیلی خرڅه کړه		موټر کښې ګرځیدله

---

(۱) کی: ګرې.

خو ناست شاعر په کوټ کښې — هغه شان قصې د گل کوي
شمع سره خاندي — ساقي سره محفل کوي
راشه زما وروره — د یار سترگو ته بیتري وایه
گل و بلبل پریږده — الجبرا و جومیټري[1] وایه
وایه ستا وجود دے — دوې ایټ د زاویو په شان
ښکلې دې آواز — زما د ریډیو په شان
دې[2] «سترد» کاربولې — او «شوېلي» د «کترین»
او ښه رنگین د کریم همین — ستا ښکلې جبین
هیر دې کړه رحمان[3] سعدي[4] — غزې د «بایرن» وایه
«کیټس» او «شکسپیر» دې — «شیلي» او «ټیني سن» وایه
او زه لیونے خدایه ! — کله خاندم کله ژاړمه

لاړمه پښتو لاهو شوله
نه په ژړئ ورته ولاړومه

## پلوشه

په غمونو کښې خندا کړه — په خندا کښې غم هیر نه کړې
او د دیړ په سودا کښې — په قیمت د کم هیر نه کړې
د وصال په لمعو کښې — د فراق ستم هیر نه کړې

---

(۱) هندسه. (۲) ورایه. (۳) صوفي عبدالرحمن مومند (۱۰۴۲-۱۱۲۸ هـ ق) (۴) د پارسي ژبې مشهور شاعر ابوبکر شرف الدین مصلح بن عبدالله سعدي شیرازي (۶۰۶-۶۹۱ یا ۶۹۴ هـ ق)

دا چه ته ئې سترګو ته خاندې　　　ددې سترګو غم مېړ کړې

د الله الله په شور کښې

چه صنم صنم مېړ کړې

## پلو شه

نه خوشحاله دې وفا کړم　　　نه خفه دې کړم ستم

ژوندیو تال دې چه عزیزي　　　کله زیر او کله بم

دا یو دوه ګړۍ ژوندون دې　　　په خندا خندا ئې تېر کړه

دا جهان خدائی جنجال دې

کله وران او کله سم

## پلو شه

ژوند او ساز وارو د باد دې　　　ژوند هغه بویه چه ساز وي

ساز هغه چه سا پکښې وي　　　سا هغه چه و نیاز وي

## ګلې ودې

خوند ورور جانه ډیر کوي خبرې بنوسئی (۱)

دوی وائی . لکه شوی ده . مونږ وایو ده هوسئ

نوم ئې په کور کوړه دی . ببوغیه بي بي . ایخی (۲)

زبه خوږه ګران دې د الله ئې وکړاوه تریخی

---

(۱) بنوخئ . (۲) ایښي د شعری ضرورت له کبله په د خ . لیکل شو :

د مینا سره سره، شمشتې خوارې، شکرتاتی ـ
تتې سره یې شوق دی نه یې لګی بنګړیو اتی
وانی، ورکړیه، کیږدنکیه میدون ته بیزه بیزه
سره کښنی لوردې دږ شخومه په ډې پېزه

## ځار دې درنشمه

اے خدایه! عقل راکړه — اے خدایه! پوهه را!
زړګے مضبوط راکړه — او سینه لویه را
سترګے دلمر راکړه — رحم د خان را
بیا تول غمونه دی — د دے جهان را
ماته نے په سر کړه — ځار در نشمه
زه به نے وړمه
زه به نے وړمه

یار بها دږرا کړه — که همت نه راکوی
غیرتی ورور راکړه — که غیرت نه راکوی
د سکندر بخت را — د دارا خیال را
مت د خالد کښنې — توره هلال را
اسلام دے پریږدمه — ځار دږ نشمه

زه به ئې کتمه

زه به ئې کتمه

د شپې خيمه کښې     د عشق شراب را

پاک مل د لارې     لکه ګلاب را

د سپوږمۍ نور راکړه     لوبو کولو له

د بودۍ تال راکړه     جونو و هلوله

جهان دې پرېږده     خمار دې نشه

جنت به ئې کړمه

جنت به ئې کړمه

## پلوشه

مخ ئې د قبلې ته ليونې ترې خبر نه وو
سترګې ئې وې وازې د انسان په تماشا

عکس د سپوږمۍ ئې د شبنم څاڅکي کښې وليد
ځکه په سجده شو د جانان په تماشا

نشته دې د ژوند د خوب تعبير کتاب کښې نشته دی
سترګې دې کړه پورته د آسمان په تماشا

خدای مکه کښې نشته د منصور دې خوم وا وريد
لا رشه ليونيه! مشه د خان په تماشا

# بې پروا لکه لولئ وای

بې پروا لکه لولئ وائے    په کلونو کړ خیدلے
او چه تول عمر ماشوم وے    په بلا نه اوریدلے
د دنیا د ورځ وستو کو    بے خبره کرخیدلے
چه په خوله د جانان نه وے    د فراق ورځ بیتے غزلے

بے پروا لکه لولئ وے
په کلونو کرځیدلے

بے خبره چه آدم وې    د رازونو د حوانه
نا آشنا مجنون ویده وې    د غمونو د لیلی نه
او چه حسن خبر نه وو    د خپل حسن د غرور نه

دا زما زړه نا آشنا وے
د دے منو بد ورځ جنګه

# بنبازی

ستړے ستومانه خیر سره راغلے    "دوه دوه پیسي د کلچے[1] دوه پیسے دی چاه
سره کړي کنے چانسکے خانو په بنار سره دي    نخه سرت ناجوړه نیبو[2] ان کنې منبه نه دی

(۱) په هند کو خپل مزدوری دانی: منهٔ کره د دوه پیسه کلچے او د دوه پیسه چای خان له راوړه (۲) نیبو لیمو

ستا قسم دی خان: دودی نه مونږ سره به نوش کوے
(نا)، ورنه وے خان مونږ دغم نه به بے هوش کوے

دا ښه لاړه د وبنیم تاله زوم (۱)، نه ده انتظام کوم
خدایږ ورنن د بنار کـــر یلا متول په تا تمام کوم

څوره هغه کوټ باندے دے پروت د سیټ دوکان
هغه سیټ دوکان پسے دی بل د سیټ دوکان

هغه سیټ د دکان پسے یو وړوکی شان مسیت دے (۲)،
خوا کښے یو پیل دے یونانی (۳) لسیږ شان پلیت دے

اخوا دوه کوڅے دی یو راځی او یو ورځی
هلته ناست دی کوټ بانا، دے دکان یو د درزی (۴)

شاته زمونږ کوړه دے مونږ ورځو په بله لاړے
اسی اوری بیتهی اوسان وینی دکار دے

لاړه که غلط شی کوره د هغه خی دکان دے
دلته به تیکه جوړیږی الله مهربان دے

---

(۱) خم. (۲) مسجد. (۳) نالی: لیتے (۴) خیاط.

# حوره

خلاص شراب جنت شو نو تکی کښې راغي جوړ گل یې په خندل شو یو باغچه کښې د انګور

نه تر یې چرته پته شوي د گل د بوټي خوا کښې خه مجبور تا شو د بلبل په واويلا کښې

راغي د شبنم اشنا مالیار د باغ غمګین

وې لیدو په ګلو کښې دیوبل ګلاب رنګین

ویې شو کاو په شونډو د سر کښې دیره مینه کینود

راغله لیلی سر نه د مجنون په سینه کینود

خوب کښې دے جوړ یا چرته د خپلو خوېندو ساز وا ورید

چرته د باغ کوټ کښې دے د زورو لحن آواز واورید

وې لرو ستورو ته په مراو ستر ګو ګورے

د باغ درته یادې کړلے حورې! باغچې نورے

زور ند د دره ستورو نه چه ستا د زړو تمالو

پروت چه په د زلفو کښې د منګ په خای هلالو

هغه چه به لرو کښې د ستورو ګرځید لے

یا به د سپوږمۍ شغلو کښې پټه ګرځید لے

حورې: ما هم بوخه درنا د غه جهان له

تا سره به زه هم خوا کښې تال دا چرم خان له

# غمګینو سترګو

خوب کښې بابا ولیدم    مور مې پیدا کړم
د سپوږمۍ عکس وې    زه هم رڼا کړم
قسمت خلق کړې    ګل په دنیا
ځوانۍ ولیده کړم    راویښ لیلیٰ کړم

غمګینو سترګو
د غم اشنا کړم

مینې شاعر کړم    او غم دانا کړم
یار لیونی کړم    بیا ئې اشنا کړم
مرګې ته خاندم    ژوند ته ژړا کړم
کله موسکې شم    کله ژړا کړم

غمګینو سترګو
د غم اشنا کړم

# عدم تشدد

د غضب په نیلی سور شو — د شیرشاه (۱) لمسی با تور

سترګې یې د پښتون سرې شوې — چه نیم اور دے او نیم نور

خوان کړل شنه بریتو تاؤ بیا — په مستئ چتر روان دے

دیار مستې سترګې وینی — بے خبر د جهان دے

مور ئې نن دے په سر قرآن بیا — خور سترګې کړلے تورې

د بابا پښتنو سترګو — ورته وکړې نن قیصې نورې

اے زما د نیکه خویه ! — اے زما د مینې وروره !

اے د نن بابا بچیه ! — اے پیدا له نن مورې !

سترګې دې کړې درنا ستا — لاس دې تش تیرې د څه شو ؟

د غضب په نیلی سور شې — فولادی زغره د څه شوه ؟

وے په نوی مستئ مسته — پاکه وینه د پښتون شوه

وے لګوره که لیلی بیا

تش په مینه د مجنون شو

---

(۱) مرکز شیرشاه (۱۵۴۵ع مړ) د هند د بهار د ایالت په سهسرام کې مینځ دی.

# جدائي

جدائي راغله بیا تکه توره

که لوګي وخوت د عشق له اوره — جدائي راغله بیا تکه توره

---

بې خودي لاړه زړه مستي شوه — وریته ځغلېل او وریته مستي شوه

بلبل ورور راغی د بوټي خواله — ویل خدای دې د مل شه د خاورې لاله

جدائي راغله بیا تکه توره

تازه پسرلي کښې په ما خزان راغی — ساقي کړه خلاص نو د بل دوران راغی

سړی کړ بنګته بوی د بوستان شو — مجنون شو خاوره روح د جانان شو

جدائي راغله بیا تکه توره

که لوګي وخوت د عشق له اوره

# فلسفه

وا وره فلسفه د لیونتوب د لیوني نه — دا آیت خو نه دی خو قرآن کښې ما ویلی دی

مرګ او ژوندګي یو د غم او خوشحالي یو دي — ژوند چه څه نه وي مرګ چا ملته لیدلی دی

زړه لکه پیاله د خوشحالي غم یې شراب دی — تر نه رخصت تښتي تا خو غم ته نسکور کړی نه دی

خوند نه یې جدا دی ده نشه یو د دواړو — دواړو کښې خمار د ساقي د سترګو ته لیدلی دی

مرګ کښې پټ دی راز د مرګ ژوند دی پر نه پوهیږي

دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ما ویلي دي

# د فقيرانو سوال

ستر کو د جانان کښې زما     ښکلي جهانونه دي

وا دے خله دنيا     زه وږے ستا د دنيا نه يم

کوره د فقير کچکول کښې     تاج د سکندر دے پروت

زه يم د سخيانو     د شومانو ګدا نه يم

زه ئې په غرور د ړنه     د مينې په نوم غواړم

زه مانګ بے نيازه     ستا د وير واويلا نه يم

هغه مستي غواړم     چه ئې مرګ نه شي وژلے

زه دے د غمونو     د بيګا او سبا نه يم

يو د سپوږمۍ څاڅکي     ماله تميک له د جانان را

زه يم د خوبونو     د لالونو ګدا نه يم

تښته دنياګۍ که دې ښې     نو اے اميره !

ستا شوه ستا دنيا

زه وږے د دنيا نه يم

۱۴ جنوري ۱۹۴۱ع

# جانان

دوه مینو سترګو کښې رڼکونه په سوونه

ما ته ئې جهان ډک کړ د ګلونو د نورونو

کوټ ئې د ښار بو د جنت په جهان راکړ

خوب کښې ژوندون راغے شو ژوندون ډک د خوبونو

سینې د سپوږمۍ دریا لپے ډکے ډکے

ونوستي(*) تا خاورو کښې زما په قدمونو

رب دے راته وښود پټ د مینې په رازونو کښې

وا دے چولغولی کښې زما ستورے په پلوونو

ساز د حورو او د رم ستا د حسن په سازونو کښې

ما ته دے رب وښود پټ د مینې په رازونو کښې

## رباعي

که ئې په عقل وے په لیاقت وے

نه په نصیب وے نه په قسمت وے

شیطان به نن ولړے له جبریله

غني به هم لایق د ولایت وے

(*) نوستل : شیندل .

# پلوشه

نه په لېونتوب ترې فلسفې کړله څه جوړه ‌ ‌ ‌ ‌ نه په فلسفه ترې څه کړه جوړه لېوني

داکړه ورځه دنیا کړه ورځه روانه ده ‌ ‌ ‌ ‌ بویه دلمه بویه بویه بخت دې خوار غني

دا دستور د شمار د وخت تلل د ساز لېدل

سنه خونېتولا دې چې دېر و شو کښي

# پلوشه

مرتتو براق دی کنه سوره د محمد په شان ‌ ‌ ‌ ‌ مرچېر کعبه د دوکره او سېره د ابراهیم پکښې

مرلا ر مکې ته څي چې نیت د دې د مکې وي ‌ ‌ ‌ ‌ مرتبر کلشن د کې ورځه ورځه اکي نیم پکښې

# لېونی

یو بنار روان کړې د نړونړو کو خودي ‌ ‌ ‌ ‌ یو خیال روان کوې نړه د تلو سودې

یو سره روان کړې تنکې سوزه او تنکي ساز ‌ ‌ ‌ ‌ یو عشق د حقیقت د جوړه د عشقونو د مجاز

یو کوڅه روان کړې د خوبونو د رنګونو ‌ ‌ ‌ ‌ د توره تمترینو کړنګېده د نکو سره نګونو

او خاندي لېونتونې د کې د مستونه ‌ ‌ ‌ ‌ وحدت نې روان کړی دا د لکها بت پرستونه

او کله لېونتوب فلسفه کل او صنم واني

او کله د مستي خبرې دیرې په غم واني

سره پیاله کل غوړنی مخ د شبنم پره پټوي

او دېل مست خوروي سترګو غم پرې پټوي

# سوال خواب د لیونی او ملا

لیونیه ! مینه څه ده؟ ملا : کور د یو عاشق دی
کوټنۍ دی کښې ویرې د مور رب خالق دی

لیونیه ! ایمان څه دی؟ ملا : دا دے پوخ گمان
د یو خوب په زړه لیډ دی د وصلونو د جانان

لیونیه ! جنت څه دے؟ ملا : ستا جنت پیتی ده
او زما جنت وصال دے یو خمار یوه مستي ده

لیونیه ! حوره څه ده؟ ملا : لهر(۱) د خمار دے
یوه کربنه ده شفق ده د خندا بربرکۍ ده

لیونیه ! نشه څه ده ؟ ملا : دا په سیل واته دی
د مستۍ رنګین محل کښې دا واته نتواته دی

لیونیه ! چه لموغ څه دے ؟ ملا : خاورے ښکلول دی
د جانان کوڅے ته تلل دی د امید ارمان کیدل دی

لیونیه ! سجده څه ده ؟ ملا : خان خاورے کول دی
د مستۍ د ښکلو مار د یار پښو کښے اچول دی

لیونیه ! ژوندون څه دی؟ ملا : نه یمه ژوندون

---

(۱) چپه - موج.

دا زما د خوب لیدہ دی      د سبا او د پرون

لیونیه ! وصال څه دے؟      ملا ! بنیست کښے دوبیدہ دی

دا په ستورو کډ یدہ دی      په سپورمۍ کښے خوریدلے دی

لیونیه ! حسن څه دی؟      ملا ! لهر د خمار دے

یو موسکی موسکے ښائستہ خیال دے      یو نرے د رباب تار دے

لیونیه ! ته نے څوک؟      ملا ! زه دچا ارمان

زه یو ګل د چا د کوتو
پروت په پښو کښے د جانان

دارالامان ۲۰ فروری ۱۹۴۴ء

## پلوشه

چه بے خودی دیره شی د خودئ رنګ ورکوی
یا بو دا توب له هم د خدائ رنګ ورکوی

غم چه دیر زور ورکړی د خوشحالئ په شان
د ژوندون تارله رقصانه شه رنګ ورکوی

سترګے چه تشے شی خوبونه دک وینی
په تش کاغذ مصور مستانه رنګ ورکوی

سحر له شپه ورکوی شپې له سبا ورکوی
د فلسفیانو سله ارنګ دو رنګ ورکوی

# کږے وږے

مچ د زمرے سترګے شکوی ماشی د اوښ وینه

خدایه! ستا د عجیبه دنیا توره ده که سپینه

مړ لسو ګیدړو ببر شیر په بوږنۍ چړګه کړ

سپوږ شغال په پړانګ دے دغږ خوږ ښکاره خینه

پریوځی چواړی ته ځان ګانه په دتۍ زړو کړی

ښکلے ستا د کوتو جوړه ځوانه نازنینه

ناسته ده د دم دلندن لوړ په سړو وړینمو کښے

لوړ د لوے شیرشاه لوږئے په لاس دے لوله خینه

مست مغرور سړد پښتون تیټ سترګے ښکته دی

شرم د اسی شرم چه شرمونه شرموینه

## پلوشه

که شړنګ دے که ړنګ دے    ټول راز و نیاز دے

که ښایست که مستی دے    یو ناز یو انداز دے

که حسن که نور دی    یو سپین سپین سحر دے

که ګل که یسین دے

یو سوز او یو ساز دے

# پلوشه

روند به څه قصه د دې رنګین جهان د رنګ وکړي

دا نیمې مړې کوتې به څه ستا د طبعې شرنګ وکړي

وچې سپېرې شونډې به په څه ناز او نیاز وکړي

دا غمګینې سترګې به په کومه نشه رنګ وکړي

# دپسرلي شپه

| | |
|---|---|
| دپسرلي شپه وه مسته مستانه | ستورې ځلېدل د پېرو ښاپېرو ښانه |
| سپوږمۍ ولاړه وه ښکلې حیرانه | لیونې سوال کړه د خپل جانانه |
| د نام پوهې له د لامکانه را | مستي مې ستړې کوله د خپله ځانه را |
| د خپله ځانه یاره! د خپله خپله ځانه | لیونې سوال کړه د خپل جانانه |
| ناګهه برق شو د رباب د نوره راغې | څه په مستۍ راغې څه په غږ ورراغې |
| مستي شوه ګونګه مستۍ ګویانه | لیونې سوال وکړه د خپل جانانه |
| او لیونۍ چه ورته زړګی کړ لړے | دېر بېخوار ګی به ځای شو یو ځرے |
| نور ډک د ځانه ؤ ډک د جهانه | لیونې سوال وکړه د خپل جانانه |
| د رباب د نوره لاړه بنیست او رنا لاړه | او د جانان مستي جانان له بیا لاړه |

لیونې پاتې شو خیرې ګریوانه

دپسرلي شپه وه مسته مستانه

شمله . هندوستان - ۷ ستمبر ۱۹۳۴ع

# دعا

دے بے انصافه د زور جهان کښې — دے بے کسے د بیغوره جهان کښې
دے په غریبو نسکور جهان کښې — سترګے لیدونکے را عقل روښان را

زړه م مین را ربه! زړه م جهان را

دے د مطلب او تګ په دنیا کښې — دے د راهنکو غونډلو سودا کښې
دے خوږ زړه و ښکلے بلا کښې — مینه بے طمع را زړه بے ارمان را

سترګے لیدونکی را عقل روښان را

دے د زړه وغواوتو جهان کښې — دے بے کسے د بیغوره جهان کښې
دے د بد نیتو داور جهان کښې — پاک دا ملګے په شان نیت او ایمان را

سترګے لیدونکی را عقل روښان را

دے بے همته کمزورے دنیا کښې — دے په نفرت تورے توره دنیا کښې

• • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • • •

مرګ چه ترے ویرېږي داسے ایمان را

سترګے لیدونکے را عقل روښان را

سر بے پروا مستانه و منصور را — سترګے خاکسارے مینے د نور را
ښکلے هر خیال ایمان د سرور را — زړه د ملنګ را او شان د سلطان را

سترګے لیدونکے را عقل روښان را

# شاعري

لږ خیال کړه لږ تال کړه لږ ښان د جانان — لږ رنګ کړه غوږ ځنګ کړه یو آه د ارمان
لږ نور کړه لږ نار کړه لږ سوز کړه لږ ساز — لږ یار د سپوږمۍ شه د ستورو همراز
لږ کوټ د کعبې ګڼې لږ ګل د شیراز — لږ باغ لږ باغچه شه لږ تور بیابان
لږ خیال کړه لږ تال کړه لږ ښان د جانان

# جنازه

سر مې لوګی شه لټا سترګې مې — شو نړې مې خاورې ستا د یار شه
قربان خلمي لټانه قطار قطار شه

ته د خزان ګڼې یو ګل د بهار نې — دې تورې شپې کې ته یو زیړ د سار (*) نې
ته د بهار خوب د ګلو وران نې — ته یو تصویر د پښتون د ارمان نې
ته د پښتون د ناموس او د ننګ نښه — ته د پښتون د سپین زیري ملنګ نښه
ته زمونږ د صبر د جنګ نښه — ته یو ګواه د پښتون د مړانې
ته یو تصویر د پښتون د ارمان نې

ته د مینې او د زور او طاقت قصه — ته د شهید د مستۍ او د شوکت قصه
ته د پښتون دیو خیال او د نیت قصه — ته یو آواز د مظلوم په آسمان نې
ته د بهار خوب د ګلو وران نې

---

(*) سار: سهار.

پاس به دې وي قوم زوړ په حصار ننبې    یا به ته په خیبر یا ژوړ په دار ننبې
سر م لوګې شه له تا ستر ګې م خار ننبې    ته د بهار خوب د ګلي ورن نې
ته یو تصویر د پښتون دارمان نې

## مور

دا په ستر ګو د مریم ګنبې    چه ژړا ده که خندا وه
چه نې سور په صلیب ولیدل    د عیسی د زلفو ول
دا خه و وایمه تا ته ؟    چه رحیم نې که رحمن نې
چه په خاور نې کنبې کړے خاورا    د ګلاب ښکلي او ربل
دا مستي وه که معراج وه ؟    دا جهان نې چه روښان کړ
که د نور د یار د ستر ګو    دریا بو نه بهیدل
چه داکفر که ایمان و ؟    چه دا زه نې لیونې کړم
چه داغم م په خندا شو ؟    که مستي م وژړل

## د ښا پیرو شهزادګۍ

د سرو زرو محلونه کښې یو تخت و د لالونو
او چت د غره په سرو یو کمال د کمالونو
چا پیژ ترخند له وه او مستي مشغولا وه    کار نه وو سر نه وو رنګونه وو رنا وه

او ناسته دے محل کښے شهزادګۍ د بنا پیروه
چه جوړه له خوبونو بنایسته ؤ نوې نزې وه
ما وے اې بې د جنت : زه ستا د ره ملنګ یمه
دې تنګ د دے جهانه د غمونو نه تنګ یمه
لږ پټ م کړه د غم د توږ ستر ګونه محل کښے
زړه ورکه دا ذره به شي د ستوږه په غوبل کښے
او ستو نے را بوره ته کړے پستے درنا سپینے
نازکے نازنینے په رنګونو کښے رنګینے
ور وغم پکښے را وخوت لکه لوږه د ما بنام
چا ډک کړه له شرابو د سپوږمۍ د رنا جام
وے واخله دا محل دا تخت دا تول ساز وسامانه
د غمه پټیدۀ نشته خوک پټ به شي له ځانه
خه ! پښبوله د جانان دے دا غمه د جهان یو سه
خه ځکیه : دا د ریاب له یو قطره دارمان یو سه
نه غم نے ته خندا ته بهار نے ته خزا ن
خو مالیدلې خوب کښے د ئ د حسن یو جهان
چه ډوب به به په مستۍ کاندې ستا غم او ستا ارمان
ما وے هم لوګی شه له تا ستر ګے م قربان

راځه چه دې دنو جهان له دواړه شور روان

اې شړنګه دګونګرو ! درباب تال او شرنګ کښې ډوب شه

او اې اورادر کیه : د لمر په رنګ کښې ډوب شه !

دې رنګ رنګا نیولې یم مادې تلوته نه پرېږدي (۱)

او ما خپلې وزرې الوتو ته نه پرېږدي

# زه

اې دمنطق فلسفو ملا ! اې دجنت دقصو ملا !

اې دجزا او قسمت ملا ! اې ددوزخ او جنت ملا !

مکړه ما ته قصې دڅو ند نا ورم ته خه مستا قصې دژوند

زه نه مالي يم نه خان د باغ ما ته ته خله کړې داستان د باغ

زه خود شا تو مچۍ یمه شاتې پيژنم او ګل پيژنم

زه يو وړو لو لکۍ يمه ستا ته رانکل او تلل پيژنم

زه يو چپه دنسيم يمه بس يو لمحه دما بام پيژنم

زه يو قطره دشرابو یم شونډې پیژنم او جام پيژنم

نو ما ته ته خله کړې داستان د باغ زه نه مالي يم نه خان د باغ

زه خود شا تو يوه مچۍ يمه شاتې پيژنم او ګل پيژنم

---

(۱) دا شعر نامکمل غوندې دی.

زه یوه ورده لولکۍ یمه
ساتل د را تلل او تلل پېژنم
زه خوږ یو شرنګ د ګونګرو یمه
پښې د رقاصې کښې تال پېژنم
زه یو ځغرے د سوز یمه
غم پېژنم او وصال پېژنم

## تول او تال

په ستر که دے پردے د لیونتوب دی لیونیه :
ته نه پېژنې تول، ته تش تال پېژنې

ته ستر کے د لیلیٰ وینې لیلیٰ نه وینې
ته زړه د سیپۍ نه پېژنې لال پېژنې

ته وینې د ګلاب ستر ګو کښې سور د ژوند خمار
نه ئې جال د جرړو وینې نه ئې جنجال پېژنې

او اے د آدم زویه اے نازبینه د الله :
د زړه کالو باب کښې ته یو کال پېژنې

زما او ستا خبرے د ماتې ماشې واده دے
زه تول لیلیٰ وینم ته ئې یو خال پېژنې
نه ترک د لوګی ترک یمه د تول د آدم
ته نه پېژنې تول ته تش تال پېژنې

خو خاص دے دوه لیونو ستر ګو د پاره
زه جوړه به خپل تصویر کړمه د تګو د غباره

# خرو

تو تو تو خرو: ووه تته تته

ارمان زمالندي له فرنګ شنه جامه کړه کته
خبرے اوس پیښتے کوي شمله نے ده بے بته

یونوے اسلام راغې دخانانو دمحلته
چه خوښې نے دي موټر داکوي هجرت د جماعته

تیز کرخي په پترولو کله بره کله بنکته
په بله تماخچه کرخیني(*) ویریږي د پنډه ته

ووه تته تته خرو! ووه تته تته

ارمان زمالندي نن په اسلام کښے دے ننګ
ارمان زمالندي سبز کال کړلي دي بادرنګ

ارمان زمالندي کښے دي چالونه رنګ په رنګ
ارمان زمالنده به: کله پلن شے کله تنګ

ارمان زمالندے دي کله بر کله بنکته
ووه تته تته خرو! ووه تته تته

---

(*) کرجنی کرخوي.

ارمان زمالنده په! لوړے خېټه د هاتي

په نسل فتح خان او په خوېونو جلاتي (*)

ارمان زمالنده ے زړه کښې زړه کينه ساتي

ارمان زمالنده ے نن کړي کار و نه خيراتي

زمالنده ے حاجي شو نه مسکوان کې مې نه لته

وده ته ته خړو! وده ته ته

زمالنده ے غصه دے نن غيرت د مسلمان کتهي

مړو له جنت کتهي ژوندو له دا جهان کتهي

زوے له نوکري کتهي او خان له پاکستان کتهي

د استاد رقيب دلال به نن تاله جانان کتهي

په بله ته مانځه ساتي ويېږي د پښته

وده ته ته خړو! وده ته ته

ارمان زمالنده ے چه پنجور لکه زمرے دے

په لنډه کښې سنه د ناوے د خوکو بوړو کښې نرے دے

په فکر افلاطون دے په اخلاقو ښا پيرے دے

په عقل لږ ښخين دی خو په ژبه چړچړے دے

ارمان زمالنده دے د کړ د چل او د حکمته

وده ته ته خړو! وده ته ته

---

(*) فتح خان برېڅ او د جلات محبر بارضي جلات ته اشاره ده.

الله : زمالنه ئې نن د فرنګ نه ګټې خان

الله : زمالنه ئې هم ګټې مصر هم ایران

و ئې نیت م د کعبې دی خو لندن ته د ئې روان

هند د ئې فیرنګي ته خوړئې نه لګي هندوان

ارمان زمالنه ئې نن نه کو کړې داونه بته

وو وه تته تته خرو ! وو وه تته تته

پرون زمالنه ئې چیرته لاړو په ویران ؟

پرون زمالنه ئې چیرته خوړل پردې توتان

پرون چې جهان وران و ، و زمالنه وردان

پرون د چا په دین و چې دا نن شو مسلمان ؟

زما د بنیادي مشه ! ستاوي غم کښې کومیته ؟

وو وه تته تته خرو ! وو وه تته تته

زمالنه یه : واوره د بوندې لګی د ئې خار شم

دښمن ته م دښمن شه نو زه یار به ستا د یار شم

که خې د جانان کوڅه زه به ستا د پښو غبار شم

ته خار شه په وطن نو زه به ستا د سترګو خار شم

که سم نه شو روان چې که به زه د ومه بنکته

وو وه تته تته خرو ! وو وه تته تته

# اسلام

اے پہ اسلام مینہ! اے سیاسی مؤمنہ!

نن چہ اسلام ستائے ستایہ دے خوک پرون!

دا مغہ مخ دتپوس خونوی شنہ پرونہ

دا د عقاب پنجے دبنا پیرک دروِنہ

نن د جنت وعدے پرونی دوزخونہ

چار بیتہ هغہ زړہ خونوی دی سرونہ

اے پہ اسلام شیدا!

اے سیاسی مؤمنہ!

ستر دے بر کے بحر برک دے ایمان دننہ

پرون ئے خان نہ کاتہ نن دے اسلام کتہ

پہ خرخ د ننگ دپښتون خپل ننگ او ناموس کتی

زما پہ وینو چا لہ ایران او شام کتی

او د شرابو تاجر ساقی او جام کتی

اے پہ اسلام مینہ!

اے سیاسی مؤمنہ!

څه به وي زرب ته ځيل چه نے د کوږ دننه
تا د پښتون ستر کوته د تيار سے جال جوړ کړ
او د جناح د خره د ے خر د جال جوړ کړ
غلاف کعبے له دے د وایت مال جوړ کړ
ماله لندن کښے تا نو ے ملال جوړ کړ
او د بلا نه دے ما ته بلال جوړ کړ

اے په اسلام شيدا!
اے سياسي مومنه!
ګلاب نيو ے نه شي
چرے د زور زونه

او د رقيب نوکر نن ماله يار ګڼي
زاغ نن بلبل ګڼي خزان ګلزار ګڼي
مبا پيرک جنګ له ورځي د شهباز پلار ګڼي
نن په بوډا له ګونګت د ګلو مار ګڼي
او د کافر نوکر کړي د اسلام پالنه
اے د ګنو وطنه! اے د رندو وطنه!
او کوږ شر مبن ته کوي د شپون آواز
نن چه بانګونه کوي څه نے کړ پر ون آواز

د نفرت کړیکو کښې    د مینې سوز او ساز
پروُن عمل د یزید    اوُن نامه د ایاز
لږ خو پلاره سوچ وکړه    زما ساده پښتونه!

اصلي مومن کړه بیل
له سیاسي مؤمنه!

څوک د عیسی په شان؟    مستی د دار اخلي؟
څوک د نمرود کاله کښې؟    د موسی لار اخلي؟
څوک د رقیب په محل؟    نوم د دلدار اخلي؟
څوک ټول جهان غورځوي؟    ستر ګې دیار اخلي؟
غماز لږ وپیژنه!    ایاز لږ وپیژنه!

اې د کنهو وطنه!
اې درند وطنه!

# سیل

څه چه لږ سیل وکړو    بره آسمان ته ځو
د دې تیاره لاه کوره    د نورجهان ته ځو
څه چه مستئ له ور کړو    د بې خودئ ورزې
څه چه جنت ته ځو    څه چه رضوان ته ځو

داد خزان تیار ے | کړو په تیارو کښې ډېرې
خهٔ چه بهار له څو | خهٔ چه بوستان له څو
داد جهان خبرے | داد ملنګ تکړے
تخت تاؤس ته څو | ماه تابان له څو
او د رقیب دکو څخه | د ربانی نه کوو
مونږ مستانه لیونی | کور د جانان ته څو
مونږ د جانان د شونډو | شراب ښکلی دی
ښکه مست مست مجنونان | نن بیابان ته څو
مونږ بیو، بخرے د نور | لرے لیدلی دی
دکل په شان په خندا | غیږ د خزان ته څو
راځه چه هیرے کړو | د دنیاګۍ قصے

خهٔ چه لږ سیل وکړو
بره آسمان ته څو

۹ جنوري ۱۹۴۶ ع

## ګلهٔ وړے

دمحمود غمګینې سترګے | څان له چل ایاز لټئ (*)
که زما بیګانګی نن | ستا د زړه نیاز لټئ
دلیلې سترګے ژړیږی | دمجنون د سترګو غم کښے

(*) لټئ: لټوي.

نرګس مړاوې مړاوې ګوري　　　　د بلبل آواز لټهئ

راځه وجل څه مستي ده!　　　　چه الله تې آدم جوړ کړ

ای معشوقې د مینې سازله　　　　د عاشق آواز لټهئ

نه داغم د فلسفې دے　　　　نه دا رنګ د لیونی دے

د کونګرو شرنګار روان دے

حقیقت د ساز لټهئ

## مسلمان

مسلمان هغه بنده دے　　　　چه شونډې ئې تل موسکۍ وي

سترګې کې د رڼا ئې　　　　لغولې یو په بل موسکۍ وي

سپین ایمان ئې لکه تنله　　　　بې د ځانه هر څه سیځي

د جانان د در ایروته ئې　　　　زلفې ول په ول موسکۍ کي

چه ئې زړه ډک د آرام وي　　　　لکه بیخ د سمنله وي

خوله ئې ډکه د ګلونو　　　　لکه باغ د صنوبر

راسے مست د اے سرشار　　　　لکه مینه د کافر

اراده ئې لکه بې کړے　　　　لکه څوکه د خنجر

د وجود هر ځائي ښکلی ونیه　　　　سره په مینه د دلبر

په سینه کښې ئے رڼا وي　　　　لکه څرکه د جوهر

په ژړا کښې ئې تاثیر وی ... په خندا کښې ئې اثر
مټ ئې بر په هر څه بر وی ... لکه مټ د سکندر
د ذره نور ئې لکه شمع ... پرے اورونه بل موسکی دی

د بلبل د خولے آواز ته
راغوږئ د ګل موسکی دی

## رڼا د شمع کښې د سحر نور راغی

تاو د غره لاړ ماسپښینی شو ... لکه دمنی یخ باد د سینی شو
سره د سترګو دیر خود ذره ګرم شو ... او د فراق استاځی یخ د صنم شو
ساز کښې سره نن د خاموشئ خیزی ... د هوش جنډے په کوږ د بیهوشئ خیزئ
بادشاه شړنګی شو د خپله کوره ... د شفق سره زنګونه شولړه توره
او: ستار کښې شړنګ دے هغه د ماښام نشته ... سره په سترګو کښې د خیام نشته دے
پښے د رقاصے خوږ والی هغه نه دے ... بانګ د بلال هغه بلال ئې نه دے
په جام کښې کوټ کوټ شراب کمیږی ... سپرلے خلاصیږی ګلاب کمیږی
او: رڼا د شمع کښې د سحر نور راغے ... باغ د بلبلو ته نوم د باتور راغے
د غوټو سترګو له خیال د خزان راغے ... لږه مستی لاړه او لږ ارمان راغے

او د فراق سوړ په وصال پریوت
ستوری راختل او هلال پریوت

۴ مارچ ۱۹۲۹ ع

# پلوشه

زمانه د شمع بخت دې یا به مړه یا به سوځي — یا به ننځ له د دریاب ځي یا به یار ته په چپو ځي
عجبه عجیبه لاره عجیبه کاروان روان دې — ما ورته مستي په اوله بیانی که ځمه او که نه ځي

# اګست ۱۹۴۷ء

نن انسان شو د انسان د وینو تږې — نن مجنون شو د جانان د وینو تږې

دا سړي روند په سترګو روند شول د تندې — چه تر پړانګ تېر شو حیوان د وینو تږې

دا محل د چا باچا د شان او شهنګ دې — که دا پرت دې بیابان د وینو تږې

دا قصه د یار د کور او استانه ده — که د ظلم یو داستان د وینو تږې

دا سړی چه بنامار ورته پسخیږي — دا سړي تا وچه کړي جانان د وینو تږې

دا سړي قهر چه لمبه کړي خپلې سترګې — دا سړي خان چه وي دخان د وینو تږې

دا سړي رند چه د آدم په وینو مست کې — دا سړي شه چه کړي آسمان د وینو تږې

لیونیه! د مستۍ باغ ته تر تنبسته
نن د تندې مري جهان د وینو تږې

# تول (۱)

جال نه دې د دام نه د تول بچکې؛ تول! — یا به په دوه خانه شي یاره یا به شي پر دول
یا به قلم یو سړي یا تق به دلته (۲) وا ور دې — جال نه د دام نه د تول بچکې؛ تول!

---

(۱) د منلو په شان منزل. (۲) هغه آله چه غنم پکښې نیولے شي، ارکے صو ته ویل کیږي.

## ارمان

ما د ګلو باغ کړې د خزان کښې — د جنت خوب مې لیدلې د هجران کښې

ما د مخکې په مخ هغه لال کتلو — چې موندلې شي په برجونو د آسمان کښې

او زما په ځوانۍ مست په عشق خوږ زړه — فرق ونه کړ په تصویر او په جانان کښې

زه په خپل ارمان مین دم په تا نه دم — ځکه د نه ځي تیر ومه په ارمان کښې

ته چې را غلې ستا د زلفو ارمان لاړه — مې مستي د مجنون پائي بیابان کښې

ماله سود د وصال نه یا شو پکښې درکه شو — هغه یار چې مې موندلې و په زیان کښې

زه په غم مست په فراق باندې مدهوشه — مرم د تندې د ګلونو په باران کښې

پتنګ روند شو د لمر سپینې رڼا روند کړو — لولکۍ ګل په سپې ژاړي ګلستان کښې

د ځوانۍ مستي مې شوله ځوانیمرګه

د جنت خوب مې لیدلی د هجران کښې

## بکوانس

راځه زما زړګیه یو به ته شې یو به زه — یوه وړه لولکه او یو ګل د لالا

یو مشر ننګ د غورځنګ ښکار ننګ د مستۍ — شو مسور په ملغ په خندا خندا

روان شو جانان له پښو او سر ورد — په نیاز په خرام په مزا مزا (*)

یا خوب به لګي په کټ د لولکۍ کاوه — یا ته به داور او ور کوپه دنیا

خوږ دوب په قطرې د شبنم شو کښې — او چت په ملغ په خندا خندا

(*) مزه.

# پلوشه

او د بنده مثال لکه خس دے — تو د شي لوګي وکړي رنا کړي جوړه
لمبه شي وسوځي خاورے اېرے شي — بوره اېي پر ذرا کړي جوړه

# دوه خبرے

نن م ماته جانان وکړے دوه خبرے د مستۍ
د فقیر کچکول کښے ګوره ملغلرے د مستۍ
چه زوروُکه جمالُ ماسره پښو کښے کېنوُد
چه به زه ترے ګرځېدمه لړے لړے د مستۍ
د فراق سلو صدو لړ یوه لمحه د دیدن بس دے
د غم زړ کاله اېرے کړے یو نغرے د مستۍ

# کډے وړے

څه که نه وینمه سرے سترګے خمارے — زړه پېژنم د سرو سترګو خمار
نه کعبه م ده لیدلے نه پرے پېژنم(1) — نه خو پېژنم لولۍ او لاله زار
نه م حوره ده لیدلے نه ئے غوارم — زه لیدلے شم سپوږمۍ د دنیا تار

---

(1) پوهېږم.

غریب خضر شوند لیواله د چینے کره ... ماله کوت راکوی شړنک د ستار
لکه بیخ د سمندره دوب او خاموش دے ... دا پروت دے د مستئ بیخ کښے قرار
او پر ته د قرار جرو کښے مستی ده ... عجیبه مرګی ته ده عجیبه لار
په نصیب او په تقدیر م بورے وکړه ... توکل یم شو قسمت م د اختیار
په جنت او په دوزخ م څه کار نشته ... د دے دواړو بره مالیدلے لار
له جزا او د سزا نه بے پروا یم ... خو پوهیږم په فراق او په دیدار
که غمونه که فراق وی که دیدار وی ... مستول کوی کښل هم د دلدار

په خندا به شی غنی په لمبو سور
په دی شنو سترګو که ستا پیرزو شو اور

# دنیا ګئ

دنیا ګئ څه ده غم او غوغا څه دے ... سوے دا ورسوز او سودا ده
لیونتوب زئ یاره خره داده ... چا جوړ کړے خیالونه، منبه مشغوله ده

# ږالئ

سترګے دے رنګینے دی نیازبینے دی مهینے
شونډے دے ترسکونے او خبرے دے حسینے

ستا سینه د ساز او د آرام یو خزانه ده
څی دم چا شونډو له ستا ګوتے سپینے سپینے

اے دحاتم لورے! خزانہ دعشق دے لوټ کړله
چاله لیپے دکے دکے چاله پیسے پیسے
دا خودجانان دسترګو رنګ دزړه مستی ده
دے نه جوړ جنت دے او دحورو خولے ډیسے
تا چه باغ تالاکړد مالیار کوړله به څه یو سے؟
ته چه زړګی ټس کړے نودیار کوړله به څه یوسے؟

۲۹ جولائی ۱۹۴۶ء

# ګله ورله

پښتو! ټکی جنه! تا ملا بابا دهوکه کړ
راضی شو په پیتی دکل ګلونه خبر نه شو
او سیر غریب جیرا دګلے غیب کړی کله کاؤن
به یې لاړه لاړه دا دتلونه خبر نه شو
منمه دجناح کاکا چه لوخ بنا نګ له راغی
دډیه دګو تکه دګولونه خبر نه شو
ګوره لیونی ته په مره خیته بودا شو
دخولے او دګولمو دسلسلونه خبر نه شو

# قصه

توره توره شپه دجرئ | توده توده دغم قصه
نصـ .. نه صبینه نشه دخوانی | سپینه بنیسته دشبنم قصه
شکلے بنیسته دامید رنا | سپوره زړه دستم قصه

خوږ او مهین دی نوم د یار | ښکلی پسته د صنم قصه
ما ته قصه د پسرلی وکړه | نا ورم د دیر او کسم قصه
ما ته قصه د جانان وکړه | نا ورم د دیر او حرم قصه
ما ته موسکی مخ را واړوه | پرېږده د فضل او کرم قصه
وایه د رحم او نور خپل | مکړه د دوران او ستم قصه
زور او اور او شور دا | دا ده ستا د کرم قصه
شرنګ ستا غوږ ږنګ د زړه | دا ده زما او صنم قصه
اور او خوږ سوز او ساز | څه د مستی څه د غم قصه

مالا خندا خندا راځی
مه کړه دوران او ستم قصه

# ګډې وډې

دیرنه زما لالا وُ خوچینی (۱) رانه خراب کړ
ملا پیتی ته تینګ وُ خوفیرنی رانه خراب کړ
صاحب هلر کړ فتح خو نه خیته فتح نه کړه
دے ترشے مسالے هندوستانی رانه خراب کړ

(۱) صوبه سرحد کښے بُوری ته چینی وائی. یو وخت چه بوره ډیره سخته شوه د بوه خوږ بو یو پرمٹ لوی رشوت او لالچ وُ چه د انګریز او د هند د وطن دار و له خوا به د قومی تحریک مخکړ ته وړاندے کیده. غنی دے خبرے ته اشاره کوی.

او خان لالا م ورک ؤ په اسلام او په ملت
مرید بنه د جناح ؤ خوجینیٔ رانه خراب کړ
کوږ لیونی به د پیر ښځې او لوے قاضی ؤ
قصے د آدم خان او د ډخانیٔ رانه خراب کړ

# ځوانه

وران د ے گلستان د ے بلبله : د پښتون د باغ
نوم د رقیب لیک دے په هر بوټی د مجنون د باغ
خوار و زار ښځے د بے هنره بے کماله د ے
غوږ نے دی کانه لا سونه شل سترګے پر کاله دی
لال د دوب دے ایرو کښے او مرجان پروت دے په خاورو کښے
زوے د شهباز ګرځی چړی خوری په سیل د داوړو کښے
پا څه اخلیه : مستی توره او ایمان واخله
مشرقی مشه او هشه تنده مشه او نوشه خپل جانان واخله
خار د ے دشنو بریتو شم غلام د غلام زوے ته
پروت په دوسیٔ کښے نے که زر خله ځلیږے ته
توره د ے را واخله ننګ پښتو او اسلام پوره ته کړه
لخپلو مستو سترګو د ے نامه د غلام بوره ته کړه

پاځه ننګیالیه! ننګ دلبر او جانان وګڼه
نوم د پښتون وګڼه ناموس د افغان وګڼه
ټول جهان حیران کړه د خپل شان په تماشا
اې د احمد(*) زویه! بچیه د شیر شاه!

# سلام

| | |
|---|---|
| نه ساز شو نه سوز شو | بس مې ژوند تمام شو |
| نه خوب شو نه شرنګ شو | نه یاد ګل اندام شو |
| دا توره شپه راغله | نه ستوری نه سپوږمۍ لري |
| ځواني وه لاړه لاړله | یو ګوټ او خالي جام شو |
| یو ستوری د سبا لاړ | سور ګل یو لاله و لاړ |
| سور لمر زیړې زیړې شو لو | نرې نرې ماښام شو |
| قصه د حسن هیره شوه | مزه د مینې تیره شوه |
| ملا بانګ د سبا وې | آخر په سول خیام شو |
| مستي بې پروائي وکړه | په خود ګنې بې خودي دړه |

(او): ګوره لیونۍ هم نن
بادشاه ته په سلام شو

---

(*) لوی احمد شاه بابا (۱۱۶۰-۱۱۸۶ ه ق) چه لوی سپه سالار سربیره د پښتو صاحب دیوان شاعر

# د ژمي ماښام

اوس د ژمي ماښام — د جرګۍ شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وريږي
غاړه د اور او خيام — شروع قصه ده
د شاعر سره استاد — ښهين غزيږي
ټنګ او ټکور د ژوند — ناز او مستي د جانان
شرنګ د ګوانۍ کښې پټ — شاتار د غم دمي
خندا مستي د ساقي — بت پرستي د ساقي
ستيني دې (۱) د مرګ سره — د کونګرو شرنګ دمي
اوس د ژمي ماښام — د جرګۍ شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وريږي
يار شروع کړي ماته — د غم قصه ده

کله موسکې شي

کله ژړيږي

---

(۱) ستيني: ستايني هغه سازاند چه د مړګي په سر نڅيږي وائي.

# ژوند

هر څه د رب او هم د رب — زه یو ما بنام له راغلے یم
باغ او انګور میخانه دیار — زه خو یو جام له راغلے یم
مینه مستئ او خمار د بل — رقص او خندا او سینګار د بل
ګل او نرګس او ګلزار د بل — زه خو تش دیدار له راغلے یم
زه د لولکے ورے په شان — ګل او غوټئ او بهار ګورم
زه لکه شمع بلیږمه — ښیست او مستي د دلبر ګورم
لوے سمندر د مستئ له ما — څاڅکی د رنګ او رڼا دے
زه پرے د لمر رڼا التوم — ماهم مثال بل کړی دے
هر څه د رب او هم د رب — زه یو ما بنام را غلے یم
باغ او انګور میخانه دیار
زه خو یو جام له راغلے یم

# ربّه

اے په ښیست مینه جوړونکی دګلاب ربّه؛

ستا ښکلے دنیا شوه دښاروي او دقصاب ربّه؛

آچه دماشوم سترګے جوړے کړے ګل په شان

ووکی او خوږے خوږے خبرے دبلبل په شان

زړه ئے پاک دبلبل دمسر خیال او دازاره پاک

پاک لکه شبنم ؤ دګناه او دازاره پاک

تا چه تا ته تهیت دفرښتو ښکلی سره نه کړل

جوړ چه دچا سترګو له تا ستوري او ګلونه کړل

تا چه دچا حسن له دخپلو سترګو نور ورکړ

تا چه دخپل خانه چاله مینه او سهور ورکړ

هغه محبوبه ستا آدم نه دے آدم خوړ کے

آ ښیسته ګلاب ستا ګلاب نه دے اور دے اور دے

هغه ستا دلاس ګل پروت په دینو کښے سمسور دے

ستا خلیفه ربّه! آدم نه دے آدم خور دے

تا چې چاله جوړه کړه د حسن او ګلزار قصه
ورکړه مشغولا له دې د مینې او دلدار قصه

تا چې چاله ستورې او سپوږمۍ او ماښام جوړ کړلو
تا چې چاله مینه او مستي او خرام جوړ کړلو

سترګې ئې دي ښکې هغه نن د زړو وینې څښي
ستا په نامه ربه! نن سړي د سړي وینې څښي

## اول سترګې ستا د لیدو خوړا !

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم
زه لیلی پېژنم یا ایاز
زه خو غم او غرور او ژړا پېژنم
زه نه جانان پېژنم او نه نیاز
دې نسکورو شمکو ته د نور قیصې ؟
د جنت قیصې د جلال قیصې ؟
منږ کوږې ته د زړګي قیصې ؟
د ماښام قیصې د هلال قیصې ؟
زه خو ګل او چمن او شراب پېژنم
زه بهار پېژنم او خزان
زه خو شرنګ او رنګ او کباب پېژنم
نه ګناه پېژنم نه شیطان
دې شمکور ته ستا د لیدو طمع ؟
دې نسکورو ته تا ته د تلو طمع ؟
اول سترګې ستا د لیدو خوړا
بیا ګوره د مینې د طمع
زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم
هغه خورم ربه! چې څښلې ئې شم
زه خو شرنګ او غرور خنک او دستار پېژنم
او جانان هغه چې لیدلې ئې شم

زه خوناز او مکیز مسخره پېژنم — نه کلے خط پېژنم نه کلے خال

زه خو ستر ګې پستې او خوله سره پېژنم — او نه نګینه خندا د وصال

دے نسکوره شمکو ته د نور قصے! — د جنت قصے، جلال قصے!

دے ګونګو ته د باتور قصے!

د پرواز د بنیست او کمال قصے!

زه ستر ګے خوږے په ارمان پېژنم — او نه ئې تور وږمې د ماښام

د سرو شونډو خندا د جانان پېژنم — د ساقي په سرو ګوتو کښې جام

زه خو مست او منت او خندل پېژنم — نه ګناه پېژنم نه شیطان

زه خو غم او صنم او ژړا پېژنم

نه دعا پېژنم نه اذان

## رباعي

که پتنګ د لمر رڼا نه شي لیدلے — ګنهګار شو که په شمع شو شیدا!

زره کښې چونګه په ایله د خادرۍ خلے شي — پته ځائے که هم پکښې دا د نور دریا

ښکلے خنکه په یو کوټ کښې دا جهان او آسمان اجوم

د شبنم ځائے مکوب کښې ځکه د وسینه د نعمتو حجوم

بیا لا دادے د پامسه په حساب او کم کړي — د رندے ستر ګو پادشاله به او غلام دی

ژبه زمار ته د مستئ او د خزان ژبه! اے د تنګو د کور کړو د جانانَ ژبه!
اے د نبکلو سترګو د خمار او د ارمان ژبه! اے د کشالی او خیتور او د ږغیان ژبه!
خنګه خنګی به یوګوټ کښې د جهان او آسمان واچاو؟
د شبنم څاڅکی کښې خنګه د سیند د نو دوران واچاو؟

۱۳ نومبر ۱۹۴۲ع

## یاد دے دی

اے د پښتو سترګو بنا پیریٔ! چه ستا دی یاد که هیر؟
هغه دوزخونه تیر او هغه جنتونه تیر
یو نجرے نور چه به کړ کل جهان د نور په ډک
یو رنګین نظر به غمګین زړه کړ د سرور په ډک
ما ته به سپوږمیٔ کړلے د صبر تسلیٔ قصے
ګل به را ته کړلے بنا مې کښې دلولیٔ قصے
حسن او ځوانی او سپرلی مینه، سپوږمیٔ، زه او ته دویو
وصل او مستی جنت جهان او زه او ته دویو
اور د جهنم د خوشحال پاسته د ساز هسے
لاسَئے د جلات د خو ځکا تهنے د ایاز هسے
وے به هر نظر کښې د سازونو خزانے پرتے
هره اشاره کښې د عمر د نو ترانے پرتے

زړونه پټ په نور نکليده دي په کاکو کښې پټ
مرګ ؤ په خندا بانګ د زړکو په نارو کښې پټ

ساز ؤ بيخودی ده سوځيدو دوجهان دې کې ؤ ډک
زه وو مه او ته وې ځکه ستوري اسمان دې کې ؤ ډک

وخت ؤ بې حسابه بې پايانه سمندر ژوند
پښو کښې جهان پروت ؤ بېنيازه قلندر ژوند

خيال به د نسيم په شان ګلونو له ما بنام له ته
عقل مرور د حورو سازله او خيام لـه ته

تن کښې م زړګے نه ؤ يو لال ؤ د شغلونه ډک
ستر ګے د هر رنګه، هـر اندام د ولولونه ډک

وا ره دنيا وه ماته باغچه د دلربا د کور
هر ستوری به لا ر ماته ښودله داښاد کور

اے د پښتو ستر ګو ښا پيرۍ: چه ستا دی ياد که مير
هغه دوزخونه تـير او هغه جنتونه هـير

۲۷ اکتوبر ۱۹۴۶ع

# دنیا

ما د ښځې پښو کښې شهزاده په ژړا ولید
ما مړ بت ته ژوندون د میت په دعا ولید

لږ بې نیازه سترګې مستې د بېخودۍ ډکې
وچې تر مستې شوې وې د سپي په هکلې

لا مې سکندر هم غمځلی په سوال ولید
پرون د مستا پښو کښې م په ذکر بلال ولید
ما د ښځې پښو کښې شهزاده په ژړا ولید
دا مستانه زړه م د دنیا په سودا ولید

۲۵-اکتوبر-۱۹۴۶ء

# ژوندون

دا ژوندون دے دوه ورځې
خلاص به شي او تیر به شي
دا غني به خاورے شي
ورک به شي او هیر به شي
دا شونډې تودے خوږے
دا د غم صنم قصے
دا کاروان روان روان
ځي به په مخ تیر به شي

# جنتي ته

ته چې جنت کښې مزې د دنيا لټې
د حورو سترګو کښې د ډمو خندا لټې

ته په اسمان وريځې کښې د ديران لټې
ته په سپوږمۍ کښې تيارو له مکان لټې

ته د عاشقو عاشقي او مستي نه پېژنې
ليونۍ نه دلربا پرستي نه پېژنې

تا د دنيا د پاره، مينه د جانان ورکړه
مجنون حلوا کښې، بېخودي د بيابان ورکړه

لاس دې ګراو ورزد، بادشاهي لاړه فقير شولې
يا زما خانه، دې ياد کونډه زما د پير شولې

ټول خېټه خېټه شوې مستي او جانان نه پېژنې
ټول بډ بډ شوې، مرګ او ميدان نه پېژنې

زما اميروې، تا لي خپته اتفکه خور شوې زما
زما سرداره: ته مړو وظيفه خور شوې زما

قسم په هغه رب، چه ته نے د خلمت دعوه گیر
چه نے د حورو غلمانو، د جنت دعوه گیر
تو م راواخله، خیته هیره کړه میاڼ ته نخه
ستی بیتی مشه، په مستئ کوه د جانان ته نخه
لمنے دوه بیږے، په بیتی کښے به حلوا کښے یاره
جنت د بابلو، د تیږو د په سودا کښے یاره
د دے کرانه ده، د لوړ ے نه کاکا جنتی:
تپ زمرے بنه دے، له ځیرے مرے زما جنتی:
د سامرے له زړه بنه ده، ملنگی د موسئ
د زر پرست نه، یار پرست بنه دے زما جنتی:
قسم د حورو په مستئ، او په خندا د یار
قسم په شرنګ او په نسیم، او مشغولا د یار
قسم په سترګو په بنایست، او په ځوانئ د دلبر
قسم په ساز او په سرود، او په ثنا د یار
ته سجدے زرو ته کړے، ما ته نوم د یار اخلے
شفق کنه کړے، په بدل کښے د گل خار اخلے
راځه چه زه د ته، جنون او مستی د بنیمه
راځه چه زه د ته، محبوب پرستی د بنیمه

سرداري نه کيږي د توحے د مستۍ نه بغير
الله ليلې نه شي، د حسن پرستۍ نه بغير

سکندري قلندري، دواړه سرور غواړي
دواړه مستي او ځوانمرګي، خدا غرور غواړي

ته خو جنت کښې مزې د دنيا کوره
بربنډې حورې، او ترسکو نه حلوا کوره

د شاتو نهر او کناره، ول د شرابو دک
نمکين غلمان او ښانک د کبابو دک

ياره چه شونډې نيښې (*)، نو حورې به په څه ښکلوم؟
چه کولمې خالي شي، ګوړګوړے به په څه مضموم

## واوره جنتي!

جنت يو حال دے، د عشق د مستۍ يو رنګ
جنت يو شرنګ د ګلګرو، د ځوانۍ غور ځنګ

جنت نازک دے، د ګل د ارمان مے
جنت ښيسته دے، زما د جانان مے

جنت دريابيد، د مينې ارشان دے
هر قطره ئے سپوږمۍ، هر څاڅکی جهان دے

---

(*) نيي، نړوي.

# شان او شرنګ

**فلسفي:**

داسوز او ساز — داشان او شرنګ
یوسوړے دوخت — داخیال او رنګ

دالمبې کاروان — داسحر مابنام
داکوټے او شونډے — او مے او جام
امید او خندا — او ژړا او خیام

داګل داساز — داشان داشرنګ
یوسوړے دوخت — داخیال او رنګ

دازور دا زر — دتورو پرق
دعا او ژړا — او دحورو پرق
دابرق دسرو شونډو — مغرورو پرق

داچال او جال — داخیال او رنګ
ارنګ دورنګ — سپاړی تهنګ

دا ښکلی کاته — په نیاز کاته
داورو نازک — په انداز کاته

دالرو کنبے تا دسپوږمۍ دمخ
نرکس کنبے پټ پټ د ایاز کاته

دامینه رنګینه داشان اوشرنګ
یوسورے دوخت دخیال اورنګ

داناچ دلولکو بهار اوګل
مابنام اوخیام اوستار اوګل
ګلزار اوچغار اوخمار اوګل

داسر اوسرور اوشان اوشرنګ
یوسورے دوخت دخیال اورنګ

## شاعر:

نامرد: ته ستر کے دیار نه وینے
دسترګو سره وینے خمار نه وینے

ته تنګ او تکور اوسرود وینے
مستي اوجنون ددلدار نه وینے

داسوز اوساز داشان اوشرنګ
یوتار ددلدار دخمار اورنګ

دانبکلې کاته په نیاز کاته
داورو نازک په انداز کاته

دالرو کښې تا دسپوږمۍ د مخ
نرګس کښې پټ پټ دایاز کاته
دامینه رنګینه داشان او شرنګ
یو تار د دلدار داخمار او رنګ

دا ښکلی کاته په نیاز کاته
دا ورو نازک په انداز کاته
داناچ دلولکو بهار او ګل
ګلزار او نسیم او ستار او ګل

سرې شونډې دیار دسپرلی په شان
ژوندی کړی مستی او بهار او ګل
دا سرا و سرور او شان او شرنګ
یو تار د دلدار دخمار او رنګ

سپړ دل دګلاب او خندا دیار
کاږه کاته په رضا دیار
انداز د مستۍ او تول دغم
سره سترګې او شونډې زما دیار

دامست مانبام کښې د ژوند غور ځنګ
یو تار د دلدار او خمار او رنګ

دا اوش کاروان    دا سحر ما بنام
دا کوټے او شوندے    او مے او جام

دا تله په امید    په ایمان او زور
دا تله په مستئ    پرېواته دخیام

دا گل او ساز    او شان او شرنگ
یو تار د دلدار    دخمار او رنگ

## ترانه

نه ماسره زر نه مرجان شته دے
نه ماسره شته دلالونو دیر (۱)
جانانه! جانان د ملنگ ئے ته
ملنگ سره وی د سوالونو دیر

ماتاله دالئ (۲)، راوړے ده
وطنه! مستئ او خوانئ نها
سره وینه توده او زړگے نر
نرتوب او پښتو او خانئ زما

زه خان او جهان په دلبرے دمه
زه پښو کښے جانان ته خیګرے دمه

---

(۱) دیرئ. (۲) دالئ: تحفه، سوغات.

زه مست دا سے مست ننګیالی یمه

فقیر ته کچکول کښے خپل سر بږدمه

زه مست او سرشار او مجنون یم      زه هر دے ننګیالی د پښتون یم

لوګے شه له تا دا خوانی زما      مړتوب او پښتو او خانی زما

زه سر او سر صدقه در کوم

دستارګو د نر صدقه درکوم

زه ژوند او خوانی تالا کومه ښن

مستی او غرور صدقه درکوم

ماسره خپل جانان ته ښنلے دی      خمارِ م رحمان ته ښنالے دی

خندا په دلبر لوګے کومه زه      ماهو ښن بیابان ته ښنلے دی

زه جوش او جنون لوګے کومه له یار      زه تمنګ او تکور صدقه درکوم

زه ښیست او مستی ستا په ښنو ږدمه      زه مینه او زور صدقه درکوم

زه ورک لیونے د منصور په شان

لیلیٰ له په تمیک کښے قمر بږدم

زه مست دا سے مست ننګیالے

فقیر ته کچکول کښے خپل سر بږدم

خونه ماسره زړه نه مے جانان شته دے      نه ماسره شته دلالونو دیر

جانانه! جانان د ملنګ نے ته      ملنګ سره وی د سوالونو دیر

# شاعر او ليلى

## شاعر:

دا ژړا، ورن او مستي او خندا زما
دا ځواني او تاو دې يو دوه ورځې
دا مې سترګو کښې ستا د ښونا و رنګ
زور د تور پلو دې يو دوه ورځې

اخر تلو نږ کې مغروريتيا ړوند يم
چه د کومو تيا ړونده راغلے يم
اخر خم به بيا مغرو کې تو له
کوم کوڅې ته چه زه غځولے يم

دا ځواني لکه د سپرلي ماښام
يو لمحه د سازي يو قطره د نور
دا خندا اسمانه حيرانه ستا
يو جهان د رنګ يوه ذره د نور

ستا د سترګو جانان مست ورو خوند
ستا د ښونا و خمو او مغرورو خوند
ستا د ګيتو او غمو ورو خوند
کړيکه د ښتا او چو رو خوند

دا د ستر گو بنا یست او د شونډو خوند
او دا سوز او ساز او ارمان زما
د نسیم چپه او د گل غوټۍ
او مستانه حیرانه جانان زما

دا یو تلو نکی تلونکی کاروان دے
یوه قصه ده چه وشوه او تیره شوه
دا یو ښکلے تصویر د خیال
یوه تپه وه چه وشوه او هیره شوه

باقی یو مغنه د تیارو جهان
باقي یو مغنه، د رڼا وطن
باقي یو مغنه، خواني داشان
د خوبونو او د خندا وطن

## لیلیٰ :

یوه لپه تر ینه واخله د ګک دریاب د مینی بهیږي[1]
دا ته ولے په ژړا وے، چه پیاله یم دریاب نه یم؛
تو لے جهان د نور د ک دی ګله: خان د نور د ګک کړه
دا ته ولے په سلګو وے چه سپوږمۍ او آفتاب نه یم

---

[1] بهیږي.

# اے نایکه! (۱)

اے مالیارهٔ ددے چمن! — اے نایکه ددے جهان!
اے د نرګس او نسیم زړه! — اے سردارهٔ ددے مکان
دا خلیفه او مجنون ستا — ستا د شرابو او حورو خان
دا ستا د ګوتو جوړ ګلاب — ستا د چشمانو مخمورو شان

تا خو جوړ کړے د مینے له — ګل دے کا ته بیابان له
ته خو د مینے لیواله وے — تا خو عاشق کا ته خان له
تا خو بلبلو او رحم له — ستر ګے بنیسته دلیدو کتے
تا خو خمار او خوږ والی له — شونډے دے د پیژندو کتے
تا خو خپل شان او کمال له — ورکړه موقع د کمال او شان
ځکه دے ستر ګو دیدار له — ورکړه رڼا د هلال په شان
تا خو په لی دلربا کړه جوړ — ستوری سپوږمۍ او سبا ګړه جوړ
تا خو انی مستی ورکړه — تا خو شیرین او لیلی کړه جوړ
خوږ روند او کوڼ شمکور همیه — ګل او بهار او جانان نه وینم

---

(۱) بادار - څښتن.

زه د غضب او سره او ډک — رنګ او مستي او خمار نه ونیم

تاکره جهان د خندا نه ډک — ماکړ د شور او غوغا نه ډک

تاکره سرور او مستئ له جوړ — ماکړه د غم او ژړا نه ډک

ماکړ د ورونو په وینو رنګ — ماکړه خوار د آزاره ډک

ماکړ د ظلم او زور وطن — ماکړ د مرګ د غاړه ډک

تاکړ خوانئ او دلدار له جوړ — تاکړ خندا او خمار له جوړ

تاکړ صپوږمئ او ستورو له — ماله پسرلي او یار له جوړ

خو ماکړ د وینو او چغو ډک — ماکړ د سوز او ارمانه ډک

تاکړ سرور او مستئ له جوړ — ماکړ د غم او ژړانه ډک

اے مالیاره د دے چمن ! — اے نایکه د دے جهان !

دا دنیاګئ دے سباله کړه — دا دنیاګئ دے په تلوده خان !

ګوره ! علم او زور نه خوري — ګوره ! هنر او شعور نه خوري

نه دے د آدم آدم خور شولو

وګوره ! ورور ته ورور نه خوري

# ژوند

چه خمار مستي ترې وځي　　شراب ئې ترخې اوبه وي

چه سرور غرور ئې نه وي　　دا ژوندون د ژوندون دخه وي

چه د مينې زړه شي پاتې　　لکه کل وي رژيدلې

يا شغله يوه د نور وه　　يا يو موټې د خزلې

چه په ژوند کښې سختي نه دي　　لکه بې مالکې طعام

چه په خوله کښې خندا نه وي　　لکه ډک د خاورو جام

چه ځواني کښې تکليف نه وي　　لکه پټه ميان کښې توره

نه ئې برق شي نه ئې شرنګ شي　　په زنګونو شي نخوره

چه آرام وي او سمام وي　　او يا ئې په جايداد وي

خوبانو م شيريني وي　　مرتبه و پرو فرهاد وي

چه ئې سر په خندا ورشي　　هله خوږ راز و نياز شي

چه د سپينو تورو جنګ شي　　ښکاره هلته کښې اياز شي

ژوند که تش نيزي نخل وي　　دا خو بې هم شي خټلې

که تش نسل زياتول وي　　دا غوئي هم شي کولې

ژوند نه خیته نه مانۍ دی    نه ډېرۍ د سرو لالونو

نه یاران نه معشوقې دی    نه باغونه نه ګلونه

ژوند خو تله دی په یو مخه

غورځېدل او پاڅېدل دی

تکې سوز او تکې ساز دے

څه خندل دی څه ژړل دی

ژوند په سترګو د عاشق کښې

پلوشه د خمار

په صحرا کښې لټول دی

د آشنا د کوڅې لار

حیدرآباد جیل
۱۱/۹/۱۹۴۷ ع

# غزل

مینه مینه مې کوله خبر نه وم
چې د ورځې مازیګر او ماښام مې شته

لکه زرکه د سپرلي وم په چړچقو
خبر نه وم د ښکاري سره دام مې شته

دنیا ښېنې بنا پیرۍ په بستر پروت وم
خبر نه وم چې رقیب مې په بام مې شته

د ساقي په سخاوت باندې مدهوش وم
خبر نه وم تشنیدې د جام مې شته

سپینه شمع د محفل په خندا وائي
د رڼا سره د سولو سامان مې شته

دا ویل لیونی ډک د رباب له لاره
آ ورو بل چې رته یو ښکلي مقام مې شته

خوږ خوږ چې د ملا دروغ معلوم کړو
دې وئي هلته مستي انتظام مې شته

حیدرآباد سند

# عبادت

| | |
|---|---|
| د ملا عبادت کسب | پاڅیدل او کیناستل |
| د حلوا په ارمانونو | تلل الله الله کول |
| د ملا مینه عجیبه | په پیسی مینیدل |
| او د حورو لمغرو ته | د خر چوکو ځنیدل |
| د صوفي عبادت ویرد ے | سوځیدل او ژړیدل |
| د رحمن رحیم د نوم نه | رپیدل او ویریدل |
| د صوفي مینه عجبه | د زړه ګل مړاوے کول |
| بے کنار دریاب د حسن | په کوزه کښے بندول |
| د زاهد عبادت څه دے | سوال منت ژړا کول |
| په جنت او د دنیا کښے | د فاید ے سودا کول |
| د زاهد مینه عجبه | په خپل ځان مینیدل |
| د دریا سپی جوته کړے | دلربا له ورکول |
| د غني عبادت مینه | ځان جانان کښے ورکول |
| د مهینو سترګو شړنګ ته | ګډیدل او خندیدل |
| د غني مینه عجبه | ټول بیلات (*) هیڅ نه ګڼل |
| دا خپل ځان او جهان واړه | یو خمار کښے ډوبول |

(*) بیلات ، باټول.

# دایلم توتیان

چا بند کړي دي پنجرو کښې — دایلم[1] دسر توتیان

---

چا عقاب په لاس کینولې — د مرز هسې چغولې
چا منصور په سر او سپینو — او خوږ و باندې غلولې
چا قسمت په زور تړلې — د کوډئ هسې لوبولې
نن د کومې بادشاهان دي — سکندر او شاه جهان
څوک ځیولې (۲) شي کوړو کښې — سمندر بې پایان
سیلاب چا دې منع کړې — په بندونو د شنو شګو
د قسمت په کور کښې نشته — شمیر د ډیرو او د لږو
بادشاهي لښکرې اړې — تل د وږو او د تږو
فقیري چه فقیرې وي — بادشاهي ترې شه قربان
چا بند کړې دې پنجرو کښې — دایلم د سر توتیان
چا سوړ په لاس کینولې — څوک مستي شي سوځولې !

---

(۱) ایلم: د سوات په سیمو کې یوه هسکه غر دی. (۲) ځیولې: ځایولی.

د بهار ولولې څوک شي | څوک د پښو لاندې کولې ؟
کله ګلونه ژوندي مړه کړي | ژوند څوک نه شي مړ کولې
چا د بوټين منع کړې | ښه ګلونه د ريحـان ؟
چا بند کړي دي پنجره کښې | دا ايلم د سر توتيا ن
بلبل ناست بندي پنجره کښې | د سپرلي خوبونه ويني
په شبنم زير ميدانونه | د نرګس ګلونه ويني
سره ګلاب مست او خندان | د لولو پرونه ويني
ولي (۱) ريبارته راشه توره | دا پيغام د غني خان
څوک اچولې شي کوزه کښې | سمندره بې پايان ؟

## سزا او جزا

ميځ په پته دے پوه نه شو | د سزا او د جـزا
تا ته يو دے لويه خدايه! | هم خندا او ژړا
څوک ښايسته ځواني کړي خاورې | په يو خيال باندې مين شي
څوک غمونه وينې وخښبي | چه په مال باندې مين شي
څوک غوټه په رنګ او تال کښې | په يو خال باندې مين شي
څوک مدهوش په حق او نور | په هلال باندې مين شي

---

(۱) والي.

اخو، ستا سپوږمۍ هر چاته خاندي    که ږهري وي که بلا

هیڅ به پته دے پوه نه شوو    د سزا او د جزا

څوک به پټو سترګو ډوب شي    سمندر کښې د غرور

څوک به تخت لکه فرعون    ناست دي خاندي په سرور

څوک به مځکه پروت ملنګ وي    یاد دي قیصے د لوړ

څوک په وینه مور خندانه    څوک به مینه کښې ژغوړ

روند قسمت کې فرق نه کړي    د فرعون او د موسیٰ

هیڅ به پته دي پوه نه شوو    د سزا او د جزا

عجیبه ده فرق نشته    د غرور او د نیاز

عجیبه ده بیلتون نشته    د یزید او د ایاز

عجیبه ده انعام یو دی    د تپوس او د شهباز

تا ته واره چغے یو دی    که د وېر دی که د ساز

تا ته یو دی لویه خدایه !    هم خندا او هم ژړا

هیڅ به پته دے پوه نه شوو    د سزا او د جزا

یو خوا سرے سترګے شاهین    په پنجو کښې پروت ژړیږي

بل خوا زیړ سترګے شغال    په ټغلو کښې لوغړیږي

یو خوا ننګ مینه او توره    وړه وړه سو خاورې کیږي

بل خوا چل د موکه دروغ    راخوریږي زرغونیږي

آستا غټې لا پېښه شوې؟ د قسمت او د سزا

ماته یو دې لوېه خدایه؟ هم خندا او هم ژړا

# ماتم

ذلخونه وګې غم له جوړې ستا داسترګې د غم ډکې

چاتې بڼ بڼه اړئې د افسوس او ماتم ډکې

په ژړا باندې چانه دی، ستړې ماڼئ آباد کړې

په بنیرو باندې چانه دی، مړې پېرئ آزاد کړې

داستا کوتې د پولا دو تش دعا زاری له نه دی

داستا متې د مړاسې جوړ دې خواری له نه دي

داستا زور پښتو او تورې، ستا دسړې وینې غورځنګ

چه ابنکلی سړه ټیټه شی څو ابنکاري دیر بد رنګ

پاخه پاخه چجه وکړه ستا دسرې وینې غورځنګ

ته آفت ئې ته غضب ئې د سور تیلو سرې یو ګوزار دې

ستا دالاس د قسمت لاس دې، ورانول جوړول ئې کا

ستا په سترګو کښې اجل دې، د ګوهل سوځول دوی کا

د زړون د ګوړ په شانې د احصار خاورې ایرې کړې

دامغرور سر تیس نس کړې داغرور ذرې ذرې کړې

پاغه وښيه دنياته د پښتون دچونتک
پاغه وادره شغالته ، دويستلو تورشرنک

## پلوشه

زور شومه زور شومه مسلمان نه شومه
ارماني ډير شومه
خوپښيمان نه شومه

## شاعري

دسکر تو بيخ م وښکه سرم خوږ که په کړولو
ډير مسره نه م راياد کره يو هم نه دي د ياد ولو
نه ټپه شوه نه چاربيته نه غزل نه نيمکۍ شوه
نه قصه شوه نه بدله نه ساقي شو نه کوکۍ شوه
شاعري م يارانه ده نه په زور نه په زارۍ شي
نه په چل نه په هنر شي نه په مال نه په خوارۍ شي
شاعري لکه باران دے کله تنده کړ زهر شي
ناګهانه داسے شرق شي چه صحرا م سمندر شي
کله نرم نرم پښم پوست نازک نازک ښينين

د نسیم په شان مستانه
د مخمل هسې مهین
کله سبه دړنه شیبه شی
په اوږده صحرا دریږی
کله توربارانِ د ژمی
نه کمیږی نه ودریږی
کله شړ د پشکال شی
چرته لمر چرته باران
عجیبه لکه دژوند
خه خفه او خه خندان
کله داسې سوکړه راشی
باغ چمن شی کربلا
لا د خادرو وتی نه وی
چه بیا خاورې شی لالا
کاش چه وی زما په لاس کښې
د وږمې غوندې بڼتې
ما به هر وخت بنکلې بنکلې
سپینې لړې راوستې

ځما بنام به مې جوړ ولو — په قبله د بوډۍ تال
ځه دروغ به مې ستایلو — دا اشنا د زنے خال
ولے څه وکړم جانانه — واک د بل اختیار د بل دے
دا په تا میینے سترګے — د دوی نور خمار د بل دے
دا چه ته پرے راته خاندے — د دے سرو شونډو د ځار شم
د دوی نښیت مستی د بل ده — د دوی سرپینکار د بل دے
(او بس:) دا دومره واکمن بس دے — چه زه ویم درته غزلے
ته نبیسته په پښتو ستړګو — راته ګورے غلے غلے
چه سات ګړۍ مشغول شو — بیا به څو زما بلبلے:
مونږ له تورو اوږده شپه ده
دی د ما دا دیوے بلے

حیدرآباد جیل
٣- ستمبر- ١٩٤٩ع

# ټک

ماله قصه د دروغو تا ته وخوړه قسم
بے وفا زه بے مې هسے تا ته وے صنم صنم
ستا معصومو سترګو وکړه په ټګۍ باندے اتبار
لکه ونیسی ماشوم چه په خندا خندا بناما

ما چه ستا په سرو لبانو قسم وخوړه مابنام
د شرابو په نامه مې د ړکړ دک دخاوړې جام

ستا معصومو سترګو نه مې ولباسې سترګې لیدلې
خکه زړه مې پکښې روښانه شوې د مینې ډیوې بلې

زه وم غل د دوو ښاغلو تا د حسن دریاب راکړ
ما په چل چړنګ دکولو تا د مینې سیلاب راکړ

تا د خپل ایمان په زور زه کافر کړم مسلمان
زما زړه کښې دې دکړل خاورې د تګي مه بوتان

ستا د شونډو غلا له لاړ وم خپل خیګر مې پکښې بایله
د خوارۍ او تکي جمع تول دفتر مې پکښې بایله

جام مې وړې یو کوټ له دوب دریاب کښې د سرو د شوم
د منصور پېښو له لاړ وم لیونې شوم زه منصور شوم

لیونې نه زړګي یو ور، ناز نینو، مو سکو شونډو
غلا له ته په داکه واوریله زړه نې وچاوډه په خندا

حیدرآباد جیل
۱۲۔ ستمبر ۱۹۴۸ع

## کړے وړے

یادم باندے کړے دے — خیال پخوم پلاو

ځان له سیخکی وریتوم — د زړه د اور په تاو

ناست له کمه منزلکیم — جیلخانه کښے په دے ساو

څوک به تری خدایه ! — د قسمت د پیشو میاو

خلاص که نه په چل شو — لیو نے او نه په داو

گډ ئے په گلزار کړ — نصیب بے موسمه لاو (۱)

کور ئے کشمیری ته — په پښتو کوی د باو

کال چه شی کونی ، بغ

هم مرغی ونی (۲) د تلاو

## پلوشه

کعبه جوړه ابراهیم کړه
وایه څوک دے شو او چته شو؟

زه جوړه کړے بسم الله
وایه وایه اے ملا!

(۱) لو . (۲) ونی .

# لکه واخلي چه ماشوم

لکه واخلي چه ماشوم　　ډک شکرے د سرو کالونو
خاندي چغې وهي غرزني ئې　　پسے پسے په موجونو
دے په غاړه ورته خاندي　　خو سیلاب ئے کلاب یوسي
نه په زور د سیلاب پوهیږي　　نه په قدر د کالونو
داسے ما دا خپل جمدون[1]　　د مستے سیلاب کښې لاهو که
په خپل لاس مې خان بندي که　　د خو قسمه دوزخونو
لکه واخلي چه ماشوم　　ډک تالے د سرو او سپینو
په خندا خندا ئے نولي[3]　　په کوخو په بازارونو
غله والي واه واه د نر زوبه　　خه سخي ارسلا خان ئے
دے نه زور د دولت ويني　　نه دردونه د غمونو
داسے ما دا خپل جمدون　　زرک[2] که خاورے که ایرے که
خان مې وتړه په خپله　　د غضب په زنځیرونو

---

(۱) جمدون: ژوندون. (۲) زرک: زرکه. (۳) نولي: لوټي، شيندي.

یادا ژوند بیللے جنگ دے

او یا زه پهلوان نه یم

ماخو هیڅوک هم او نه لیدل

چه زوره ور شو په غمونو

زه لا ورنس نه وم دخوبه — چه زیرے ماز یکرے شو

چه نے زه په قدر پوئے شوم — گلزار تش وو د گلونو

او س نه رنگ شته نه مستی شته — نه سیلاب شته نه گلونه

دیو خوب لیدلو وو تیر شو — ژوند شو دک دارمانونو

باغ د گلوم تالا شو — دالا لونو شکو رم تش شو

دالا وا وره ملاجان — کئ (*) تنگ تنگ دحسابونو

وخت او ژوند د غم تقدیر دے

دیو اور دے بل له بو تلم

داجهد وں وو که یو دام دو

دا وردنو د غمونو

(*) کئ : کوی.

# تبسم

څوک لیونی شي　　　څوک لیونتوب شي

څوک شي په خوب ویده　　　څوک رنګین خوب شي

څوک احرام وتړي　　　مخ په قبله شي

څوک جلال واغوندي　　　پاکه کعبه شي

څوک مست بورا شي　　　مسته لولۍ شي

څوک رنګینه نیازبینه　　　دَ ګل غوټۍ شي

څوک یو دَ درد تصویر　　　دغم قصه شي

څوک ے په مینه مینه　　　په ننداره شي

یو څو ساعته درنګ　　　دَ خندا تیر شي

اخر تیاره راشي

او واره هیر شي

# بیا

قسمت مِ ږوند جولا دے ناست کړي (۱)، نه په آرام
دَ منو بلو عجبه تنسته بُږده روانه

دوخت ملګو چلیږي زر سپېږي (۲)، بېشي تمام
خبر نه یم داخه له او داخه جوړي زما نه

زه ګرځمه چاپیره تپوسونه کوم مدام
دګل نه، د ساقي نه، د کتاب نه د ملا نه

داخه له دے جوړ شوے دومره او وږ د انتظام
داخه وي چه ژوند راوړي او مرګ یوسي د دُنیا نه

دا ګله هسے رفتار دے که لري چرته مقام
تیارونه دارا غلے لاړ تیارو ته ده روانه

اوه! هغه دِ والاړ دے په کلونو کښې خیام
وَلي (۳) ژوند خاورے ایرے کے د بے دمینے او جانانه

---

(۱) دجولاد اوبدلو دستګاه.

(۲) سپېږي . (۳) وَلي: والي.

دَے درد لړلی ژوندکښ بےخودی کښې دَ آرام
دَ ظلم په دے اورکښ یو ساقی دے مهربانه

دا مست بے خوده سړ، نشه څُوانی او دِ لاړه ام
راواخله په شکرونوُ قبول که غنی خانه

خو هغه دے جمات کښ اوچت بانګ اوړ امام
ویٔ دا دنیا بلا ده تښتښته تښته دَ بلانه

ساقی دِ تهٔ ډِک کړے دے دسورانګاړه جام
دا سړے شونډے سُے اوردے دَ دوزخ په لاړه روانه

دا ژوند د دنیا څه دی، لوبے تو قے مسخرے دی
جنت کښ شرابونه، سپین غلمان حورے مستانه

سقراط وکړو آوازو ے دَ دے تولو دے سرسام
هیچرته رښا نشته بے د عقل دَ جهـــانه

په پوهه او په فکر کښ دے حُسن هم آرام
دا نور دے د رب نُور د آدم خاوره کښ پټ بنانه

دا خبره دی نه پوهیږی وائی وهـــم ته الهام
منطق او فلسفه ده چه پے کرانه شی آسانه

راځه روح له دِ هـــم ماپوره کړے انتظام
که بُت وی او که رَب څه بره آمنه دَ خـــانه

شو چاړه چاپېره شور هر خوا ولاړ وَ یو امام
هر یو وے زه په سمه یم دا نور دي ټول په ورانه
یو بل ته ور نږدے شوم منبه مِ ولټول تمام
یو هم نه کړم آزاد دَ نغښیرونو دَ سودانه
مستي مِ کته داسے چه نه مے غواړي نه جام
مغنۍ دیر وړک، کونګا مرے جوړوُ زمانه
جانان مِ کته داسے چه مِ هوش واخلي تمام
هر ساز مِ دمستۍ نه همه سوز مِ دَ ژړانه
دلبر مِ کته داسے چه وي تل روښان په بام
یو کل درنا جوړ، خبر دَ مینے او ارمانه
یوازے ترے روان شوم زړګی کښے مِ ماښام
نصیب نه کیله منډ، په هوش جمډون باندے ستومانه
ورغلے مِ په ولي باندے لاس کمینو دخیام (۱)
وے په دے کوځو کښے څه تلے راغلے یم دپخوانه
دخاورو ده آدم آخر دخاورے دے مقام
هیڅ داسے علم نشته چه ژوند خلاص کړي دَ خزانه
دوخت هره لمحه ده هم شروع او هم انجام
د ژوند راز و نه هرګ کښے دي پټ شوي دانسانه

---

(۱) عمرخیام (۴۴۰-۴۴۱-۵۱۵ یا ۵۳۰ ھ ق)

نه ئے سرشته نه لګئ یو دایره ده خُله دجام

رنا دتیارے تاو ده او تیاره تاو دَ رنهانه

په خود کښ درد دے، او رد، بے خودئ کښ دے آرام

دے درد لرلی ژوند کښ یو ساقی دے مهربانه

دامست مستانه سر، نشته ځوانی او دِل آرام

دَ دے به زیات خه دره کړی، او زیات خه غواړے دَ چانه

چاپیره خیشت او رنګ تش دکتلو په انعام

په هرهمتی دخاورے کښ زرګونه ګلستانه

یو خاخکی کښ ژوند، دَعقل، یو مے، کل سمام

زګونه دنیا ... بنځ او دَ بـــــابانــــه

دَ قال او ســار او شرنګ او غورزنګ بے میو خمار

دا ټکلی لیونتوب د بے وجوده شان هوانه

دداسے هنرمند هـــنرله نشته دے تمام

قسم دَ جهانونه شته بنایسته دَ دَ جهانه

دنیش نه را روان شو که شو شودِ دا رنګین مقام

چه هرچرته دِ بیائی زه، ورخه وراله خندانه

او پرین ده جولاګے خپلے کلہ ئے نه په آرام

جوړئ دے، چه کم شے وی که وی ګرانه که ارزانه

او چه دا قوته پوره شي، دا پښتني[*] نے شي تمام

نو خه په خندا یاره دکدے نه دَ جولانه

چه تش یو یاد او هوش شے لکه بوی باغ کښ بانام

آزاد شے دَدے تورو زنځیرونو د دُنیانه

بیا بل جهان، او نوے هوش، او نوے مستخمار

او بل قسمه سرود نورو پردو کښ دستار

[*] پښتني : سپیڅي

# لیلهٔ

دکارغه خوله کړه — ژبه د مار کړه
دچرګ عقل کړه — زړه د سیاه کړه
مړنے دسپي کړه — چه بنه غبار که
ضد دکچر کړه — غرور پرے بار کړه
خته د کلی — دیران د بنار کړه
بیا چرته روند — کولال یو یار کړه

تاله به نوے
لیده تیار کړه

# څوکه

لرے لرے پہ وږمو څو کښې یو سپینه څوکه ښکاریږي

خو پہ لاره کښې دي غرونه او دړے دي غمونو

غلے غلے مې رګونو کښ یو ښکلے آواز دې

پکښې تور سوري سازونه، زېړې پاڼې د ګلونو

رو رو پټ پټ مې ځیګر کښې یو ممین ستا غږیږي

عجب ساز د خاموشئے د لیونے کوم سرونو

او ما ته ډیره لویه لاره، دا زغو د تیارو پاتے

خو چه دغه څوکه وینم اور مې بل شي په رګونو

دک د ګلو کور مې کور شي، مړه ګلاب راته پیغور مشي

همه خیښت(*) د ژوندګری پسته تورے لږے د غمونو

زړه مې وئی چه پاڅه پاڅه غني خان پسے ملنګ کړه!

دغه څوکه کښ پټ پروت دے ستا مطلب د مطلبونو

---

(*) خیښت: بنایست.

# وخت

تکنه غرمه دَ لېونو د کرزېدو دے وخت

لړه، ترمکئ (۱) دَ يار د سترګو دَ لېدو دے وخت

زېړ مازيګرے دَ ژوند غمګينه شان نشه لري

توره شپه ژمي دَ اورولو اورېدو دے وخت

هغه ده سپوږمۍ د ونو څوکو کښې مسکۍ شوله

پاڅېږه لاليه! اوس د باغ د ګرځېدو دے وخت

لاړه ساقي بوډا شو، خيام هم د بزمه پرېوتو

اے د مستۍ جامه دغه ستا د ماتېدو دے وخت

مه ګوره آئينه کښې ليلے هسے به دې وژړي (۲)

لاړه چه ځواني شي بيام وخت دَ ژړېدو دے وخت

---

(۱) ترمکئ: ترو پرې. (۲) وژړي: وژړوي.

مرګ به ما مئین نشو، اوس به هر وخت سلام راځي

وئ مخ که یاره ما ته اوس نه ښوې د لیدو دے وخت

مګر صبر او کړه لږ شان او ورم به وجود کښې ښته

د یرم دي سوزولي اوس نه دے د سوز یاد دے وخت

هغه دے م ساز لیوني ، مست نظر مستولے شي

وینه کښې م اور دے د ول د کله یاد دے وخت

سوز او ساز چه لاړ شي، تشخاوره شم نور اشنا یار!

دا به شم سینے له دغه وخت د هیله دے وخت

# وائی مُلاجان

وائی ملاجان چه په جنت کښې حورې پلې دي
غټې غټې. سپینې سپینې. مستې اوبربنډې دي

کوره ممباتې چه ئې خُلې د لاړو ډکه شوه
ښا ننګو(۱) کښې دحورو ئې. الحمد قامو" کړه شوه

کوره د آشنا په بیړ لاړې را روانې شوې
قول شهوت شهوت. سرې و را سوځنې ئې ښځا شوې

دا وجود دخاورې. دے نه پائی جنتونو کښې
دا د خاورې ګل مست وی دخاورې په کاڼو کښې

خاوره به شي خاوره یو احساس او یاد به پاتې شي
ساز سړه به لاړه شي خوښۍ تښې باد به پاتې شي

زه به حورې ښکرم(۱) چه ئې غیږ کښې کینوے نشم
غټو مستو سترګو ته ئې په سرو سترګو کتے نشم

---

(۱) ورنوګی.

او دا وجود که بیا شي جوړ شهوت خوړ شراب وي

مست مست هلکان چه به هم ښکلي هم خراب وي

کوږ ملا که ته دې چه لس ټوټې دهٔ له ګیره کړې

ته به ورله ګورې او هغه به دهٔ له تېره کړي

او لونه دې راونیسي. لا مور دلهٔ به مخه کړي

تو له خیلخانه به دلهٔ ګرمه کړي او یخه کړي

دغه که جنت وي ملا رَبّ دِ ورله بوځه زر

دغه دله توب نه زما زړه ځله دې غوښه سقر

یا خو وجود نه لري یو مست او رنګين خوب دې

حورې او غلمان د مینې خیشت او لیونتوب دې

یا داته چه وګړي که دار ښتیا ستا په کتاب کښې وي

تول غلمان به مړه وي پښتانه به په عذاب کښې وي

تالا ملا جانه رَبّ دِ دې کړي جنتونه ډیر

اوس پوهه شوم چه ولې دا اوږده ګورې مخونه ډیر

زړهٔ به سوړ دوزخ له خپل غیرت او غږ ړه یوسمه

ځان سره به خپله حیا. خیشت او سرور یوسمه

او روي که عذاب وي تیروم به ئې لکه خان

ته همسایه لاس شړه د ښځې نه غلمان

# پلوشه

ژوند او ساز واړه د باد دی
ژوند هغه بویه چې ساز وي
ساز هغه چې ساېکښې وي
ساه هغه چې د نیاز وي

# نرس

د دردمند خوار خلقت ‏— خدمت نه د عبادت دے
لکه مور، رحم او مینه ‏— د حوا اصلي فطرت دے
دا د مرګ سره جګړه ‏— دا نرتوب او شجاعت دے
دا د درد په اور کښې رحم ‏— او تیارو کښې سپین مشال
هر ژوندے د ښځې نه دے ‏— هم ئے خیښت او هم کمال
که دنیا ورته سپک ګوري ‏— دنیا څوک دي پېژندلې
د شمکو رو خرو کاله ده ‏— هر ملال ئے خاور کړے
لور د خیښت او مور د ژوند ‏— دے له رب پیدا کړې ده
دا خو مونږ ه شاعرانو ‏— یا ساقي یا دلربا کړه
د مغرب قحبه تهذیب دا ‏— تو مسته شان بلا کړه
نه ئے مور کړه نه ئے خور کړه ‏— نه د دین نه د دنیا کړه

د حوا اصلي مقام
رحم مینه او خدمت دے
دا د مرګ سره جګړه
خدمت نه د عبادت دے

# شپه وه د سپرلي

شپه وه د سپرلي ژوند ئې پیدا لو په ګلونو کښې

ټول جهان روښانه وُو، وه تیارۀ زما خیالونو کښې

او ښکلي د سپوږمۍ رڼا د مینې د آواز په شان

روح ئې د ژوندون نیوه د حُسن په دامونو کښې

څه دَ ولې ولې په دریاب کښې روک لاهو وُمه

ډوب په بې حسابه لاجوابه تپوسونو کښې

ما وې ژوندون څه دے، يو جنجال چه معنیٰ نه لري

بې مطلبه ډېر لړلے اور کښې او غمونو کښې

کوز شومه چمن ته د لښتي غاړې ته لاړمه

خاشکي له دَ جونډم کته کوره چَله سيندونو کښې

حُسن باغ کښې اوخندل د هر سوال ئې جواب وُکا

ژوند شو لکه ناوې د امید په سرو ګلونو کښې

هغه سرې غوټۍ چه قسمت کښې ئې سپړېدل نه وُو

غوټۍ شوې سوې د باد لاسې خورې شوې په بادونو کښې

کړې ذکې چغه کړه چه ژوند د ړوند ډیوه نه ډ
نه د غم قصه بنا ی داور په زنځیرونو کښې

حُسن د کښې حُسن چه هم خدای او هم جانان دې
د فانی مکان کښې بل مثال د لامکان دے

یو د کلاب غ کښې چه ښکاره کوم جواب نه دی
نشته یو هم نشته د منطق په کتابونو کښې

مینه چه تالا شی یو امید شی یو ارمان شی تول
حُسن په خلا شی تور د لړو د غمونو کښې

ژوند او درد او غم همه کړی شی د زنځیر د نور
مرګ او قسمت ډوب شی په دریاب د خمارونو کښې

وخت بابا د تال دے، بے پایانه سمندر نه دے
تال د ساز ژوندون دے، چه کله یی په سرونو کښې

# کیمیاګر

راته ښکاري جوړ پاست     په آسمان کښې کیمیاګر دے

کله سره زر کاڼي خاورے     کله خاورے زر کوي

ډیر کلونه یې راغونډ کړل     د جانان شونډے کړے جوړے

چه د ګل بو خاورے     په کوم کال به جوړ کوي

د تقوې زر شپے کړي جمع

د عشق یو ساعت ترے جوړ کړي

څه به ناز غني ته ځانګي

چه دلبر دلبري کوي

# دبوډۍ تال

داکم جانان له بڼې جوړ ښکلے تال کښې
رڼا بندي کړے ښکله د رنګ په جال کښې

داغه له جوړ که چا، دغه تصویر دے دا
خوب دے یو خوب د دا، که ئے تعبیر دے دا

که د جنت ور چا لمحے له لرے که
که د وصال ارمان د چا د لمکیر دے دا

که مخ زما د خوانئ، ارمان او خیال کښې
که امید ونه خاندی، مخ د جمال کښې

ښکلے دهوکه د نظر وه، په آسمان کښې سراب
که د کتاب د جهد وان. ډیوه رنګین غونډ باب

د رباب د رنګ، که ثبوت، چه رب مُبین دے په خیشت
بشه صحرا کښې روان، یو د نور و نور، د رباب

که رنګ د یار د سترګو، د وبې په خیال کښ
که د جانان مسکې شو، خوب د وصال کښ
ټټرې تالې بډې د باغ ته مابنام کښ
خکلې خیلې او بنکلې ګلاب د غم په جام کښ
په مراو مراو سترګو، وائي نصیب ته ولې؟
ولې کړې خیشت پیدا، ولې تمام کښ
ناوې خزان، خزان، د سپرلي شال کښ
رنګ او رنا بندیوان د وخت په جال کښ
زه یم دیر سترې بډې دیر د جهانه سترې
د خوشحالو سکین، او د خفګانه سترې
داسې سفر خدایا. نه نې پړ او نه دمه
دا هوش په بېرته واخله یمه د خدا سترې
بس تش خزان او خزان د ګل په خیال کښ
یو سور عقاب ګیر پروت د غم په جال کښ
وم یو څاڅکې د رنګ، شومه نه ګل نه تصویر
لمحه خمارو ورک شو. نشو د سترګو اسیر
یو ساز چې دام کښ د سر، د چا رباب او نه نیو
یو خوب چې خوب پاتې شو، ژوندې او نه که تعبیر

یو لال بنډی به سینې د کوتی لال کښې
یو بې قراره شاڅکې ، سینه د کمال کښې
ماهم لږ پرېږ ده بوډې ، د خپل جهان ته
ستا د رنګونو ، خندا ، روڼ ګلستان ته
زه به یو شاڅکې د رنګ ستا د دریابونو کښې شم
اور د آدم به وښیم ، زور د آسمان ته
پټ م که ، پټ م که ، لږ ، د دنیا شال کښې
یوه تمالنې راکه ، د بوډې تال کښې

# ساز

زه یو مست شان لیونتوب یم — دهوا په آس سوریږم
که یو رنګ دیار دسترګو — شل رنګونه شم ګډیږم
دا زه څه له ولے جوړ شوم — خبر نه یم نه پوهیږم
ولے سوز شم، ولے ساز شم — یو آواز یم چه غږیږم
د زړه پټو تار خانو ته — یو شغله یم چه کوزیږم
یو سرور یم چه شرنګیږم — یو خمار یم چه مستیږم
چه په رګ رګ کښ دِ اور شم — یو لمبه یم چه رپیږم
دا زه نور یم چه برقیږم — که سرور یم چه سوریږم
حقیقت م نشته باد یم — مستول کوم هم مستیږم
په خندا کښ م ژړا ده — په خفه سترګو خندیږم
وایا وایا لیونیه! — ولے ژاړے چه ژړیږم
اوچه برق دا تپ ولچیږم — ستا په وینه کښ ګډیږم
دا زه تش دخیال دهوکه یم — که یو خیشت یم چه خوریږم
که یو مست د باد نیلے یم — په فکرونو کښ څغلیږم
که تال او شرنګ نه جوړه — یو دعا یم چه قبلیږم

# ناوی

اُف دنیا کې پلیتې     ګنده دګنده وبوتې

نه یو لمبه ئې دَ اور     دېکښې غیرت سوزېږی

سړیتوب، علم، پښتو     ډوب او نازک خیالونه

دَدې نه ښه څو چنده     حرام حلال مالونه

بال بچ او دین او ایمان     په مال او ښیارو ورکوی

دَ سرو بدل کښې والله     جانان دِلدار ورکوی

لوړ خاندان ښه خصلت     دا هیڅ قیمت نه لري

ښیسته صورت دَ ګلاب     چه حبیب ئې تش کې خه وی

دلوړ دخوښې تپوس     وئی دا سپک کار دے

یو سپی ته ئې ناوی وړکی     خو سپې مالدار دے

ډمه غریبه سپئ ده     چه په ښکاره چلیږی

دلته زر کونه دے     په سرو ډولو کښې پټے

په مزکه مال او دولت     ښه په عزت ورکیږی

که په یو نوټ لاړه     ډمه ده ډمه ده

د زرجریبو خرڅه     ترې په خه کمه ده

دلته تیر باسې څوک     په دَ سرو بریتو خان ؟

ماله دهوکه راکوے — که دهوکه کئے دخان ؟

مُلا دغټ پټکی — او دببرے ږیرے

کی معربے غُټے — دَغوړ تالوخبرے

ځان او جهان دَپاره — څه تماشه جوړه کړی

ځات مُلا سپین ږیری — قصه دږنه جوړه کړی

لکه غوا خر څه لیلیٰ — په شړنګا شرنګ ورکوی

دے دَ له توب له برېتو — د پښتو رنګ ورکوی

بیا لاړشی کټ کښې د کور — نو تونه او شماری

که زر پر دوکښې پټ شی — دَ له منګاره بنګاری

او دګلاب هسے لوړ — که دَسپی کوړ له لاړه

خیر دَچه ته موړ شوے — که هغه خوړ له لاړه!

اے مصوره دَخیشت — اے دخوائے الله

اورے سلګئ دَنادے — پټه برستن کښې ژړا

که وی خِنزیر سره مال — ګل او جانان به اخلی

ستا شهیان فقیران — تش بیابان به اخلی

دا دله کان شو مونږ — که ستا قانون دے دا

دا زه چه ویمَ پښتو ده (*) — او که جنون دے دا

اے مصوره دَخیشت

اے دخوائے خدایا!

(*) ویم: وایم

# اسپتال

ستا د جهان کښې خدایا!

یو سور غضب د خوارې

مریو په زړو دے خرڅ — د دوی رسول سامرې

که وی د چا موټر — دره لړ لوټے او ټکلے

د هغه پلاو نیکه هم — شي ستانه سنه کټلے

پورته به پوزه کړے دے — ډک د غرور شاخیلے

داغل لومبړ به غالي — ټپرے به ناست د غلي

زړونه زور شو جوړ

شو ستا د ملک بادشاه

که نے وی د غه رفتار

ورانه دې واله (*) دنیا

یا نے که سمه جوړه — او یا نے وړانه کړه

یا دې دا خپل عاشقان — ورک د دنیا نه کړه

د دوی یوه سودا ده — زمونږه نور غمونه

(*) واله: واحله.

## خوښ دې او بنیار وی مال

## دَ لیونو سلونه

ستا جماتونو کښ نن — دَ زړو سخی (*) دی ولاړ

په ممبرو نو ورته — خرمن شوی سپی دی ولاړ

ستا په نامه مولا — بل ته سجدے کوی

تا ته ئے لاس نیولے — بل ته اسرے کوی

ستا عاشقان مولا — اور کښ ترلی دی ټول

ستا غریبان بادشاه — په ژوندون مړی دی ټول

دغه دُعا قبوله مے کے جانانه

یائے که سمه جوړه او یا ئې وړانه که

---

(*) سخی: خرسی .

# شهید ډاکټر صاحب

(د مرګ په اووم کال) (*)

د بهرام بابا بچیه ستا په وینه کښې نور توب و
په ځیګر کښې د قام وینه یو سور او دیولیونتوب و
وا چه پړې تالو ګې له د پښتون د غیرت خوب و
هم بابا وې هم اشنا وې عجیبه د سړیتوب و
زړ ځلمي به تر قربان که به د امست د بابا توب و
پاک زړګې د ماشوم وتا لرنه د پښتله چلونه
ننګ. پښتو. تورې. غیرت وکا کا ستا د باغ ګلونه
د هرچا بد به ښل تا. زړه د پایاب د د رحمت و
په سورو اور کښې به خندل تا. دومره مست د شجاعت و
بادشاهي او ملنګي کښې. هغه خوي هغه خصلت و
تخت غوړه تا کښې رانه وست. او ایرې دې ته دولت و
زور. زور نه دې. اور دې اور دې. سوزي دې زړونه ملکونه
تا دا زور د خان غلام که. سپې کول د خدائي تونه
چه به زړه د مخامخ شوم. لیونې او پریشانه
په خیال خو دې په خپل احساس او په خپل ژوند بانډې ستومانه

---

(*) ډاکټر خان صاحب د باچا خان مشر ورور نوم یې عبدالجبار و (۱۸۸۳ - ۱۹۵۸ع)

ستا شنے سترگے به مستے شو ځکه وے پهلوانه
بچے هیڅ کښې قرار نشته، دخپل دهر دخپله خانه
دیو اوره بل ته دا نکے، سمندر ته د طوفانه
بچے ستا سره کښې جوهر دی، ته ډیر جوړ یے دَ ځانه
که هزار به دې زړل زړه، پښتو به دې زمانه
ماته تل مستے کاکاوے، مینه ناک او مهربانه
نشته نه به راپیدا شی، پښتنو کښې دا سے ترونه
کاش چه ته دلته کښې ناست وے ما نکولول دِ قدمونه
خوتالوے دهر باره یو زړل دخپل سوی زړه غمونه
دَ وطن د ننګ جنګونه، د پښتون د شان خوبونه
او چه کله را په یاد شے، سترگے ناوینه م ژاړی
خو بنده زړے د ارمان دے، تل ژړګ شے سو جانان غواړی
که زه ژارم ستا بچے یم، تول خواران دی پسے ژاړی
ستا انصاف او ننګ به ستائی، پښتون چرته چه ولاړی
کاکا زه به دِ خه وایم، دا خو ولی به تاریخونه
تا پخپله وینه ډک کړل، د پښتون ننګ ته جامونه
ستا دَ پاکے وینے څاڅکی، سره کاونه، سره اورونه
دَ هر یو پښتون په زړه کښې دے یو او دوه هی تو پونه
مار اوری تا له نه دی دا مبیلو امیلونه
د جنت بلبلان څه کی د دُنیا دَ باغ ګلونه

# پروت یمه یوازې

پروت یمه یوازې، تور غمونه رانه تاو دي
هسې خوځا هره، سره کلونه رانه تاو دي

کور نه دې جنت دې پکښې زر قسمه کلونه
هر خواته چه گورې په رنګونو کښې رنګونه دي

هره دوکي قالین کښې د ایران د تلې شان قصه
هغه شان تازه دا د دارا د باغ کلونه

زه په دې کښې ژارم، آزارونه رانه تاو دي
پروت یمه یوازې، تور غمونه رانه تاو دي

لور م خاندان، د محمد نوجدي خانان
پلار م شین زمري، د پښتنو یاد په جهان

پاک ښکلې اولاد لکه کلونه د ایران
مورې دا سې نرې، پښتانه وړه تحیران

زه په دې کښې سوزېمه، اورونه رانه تاو دي
پروت یمه یوازې، تور غمونه رانه تاو دي

پاکه لویه خدایا . دا احسان دے که سزا ده
ژاړمه ګلونو کښې دا څه برخه زما ده
عیش دې راله زهر که آرام راله بلا ده
روڼ د تیښتې نشته . تیښته لا توره بلا ده
داسې د قسمت سره زنځیرونه رانه تاو دي
پروت یم په یوازې، تور غمونه رانه تاو دي
ولې دې زه جوړ لکه مشال کړم . ولې دې
هله شي رڼا چه زه په سر لمبې وي بلې
وژنم که دا اور، ګلزار او حسن ښیخ لے
اور کښې مې ګله بدل دي ، خدا نیکو ستا د کور مزے
چار چاپېره تور د تیرو غرونه رانه تاو دي
داسې په سنګاره خو سره ګلونه رانه تاو دي
زه د خپل زړه خان آدم یم ځکه دې پیدا کړمه
زه که سل ګیلې کوم که سل ځله ژړا کړمه
یو ښاغلکی د حُسن له به ټول ژوندون تالا کړمه
هره ساه که اور کړې زه به لا ډیره رڼا کړمه
یا به یو لیدلے خوب د هوش کښې را رښتیا کړمه
یا به ستا په در . دا اوریت احساس تالا ژوندیز دمه
بل څوک پے ستي کړه . زه ایره شوم نه بلیږمه

# ړاندت

چې نه خوندلري نه جوش، نه سرود او نه خمار

تش خو نه اغښتلي وي، د جنون او د دِلدار

تش بې خوندهٔ کړو به دې، ډيرانونه د تنظيم

که هر جام کښې د غم شې وي، جم کړم ځان له افيم

چې هر تک نه شماروړي ځي ګټې کړې هر تال

هر يو خيال وړي تپېند کونه، نه ډلکي نه تګه چال

څه ضرور وو کچې خرد دې، د عربو په سيال پرېښود

د شاعر د خيال ليلىٰ له، دِ په ستړګه کښې خال کېښود

دې وينانه خو چپ شنه کړې، ښکاريږي د شنه او شنيا

ولې پوښې دِ که جهان چې، ستا خمار وو ګاڼ خار

شنه تکوه شه غږ وه ښې، تا ته ښکاري چې ښکار

خوګاښې کښه ماته، او بې سره د هر تار

او والله که زه پې پوهې شوم

چې ړاندت دې که ستار

# حُسین

دا قیامت دے که معراج دے او که ورځ د کربلا؟
دی دا اشکو کښې سرې وینې که ګلونه دَ لاله؟
سو خمار ئې هر وکښې کله دے ترینه ډکه ده پیالا (*)
څه په جوش ورته روان دے د مینو سربالا
وے خپل عاشق ته اچې د سکروټو کړ مالا
چا ته وے ګلاب بچې دِ درنه غوارم حلاله
چا ته اور صلیب او دار کښې هم خلاص شم وصال
چا ته سر چا ته ګلونه، ژوند حسن او کمال
ښن بادشاه د عاشقانو، در روان دَ اے جانانه
شان د مینے درته ښائی، توان دَ د خاورے بے توانه
تول جهان تیاره کښې رپی، یو ښخرے خی روښانه
کوره سترګے خلیږی، په څه نوی نوره ستانه
ستا منصور ورته په سپخیږی، ستا عیسیٰ ورته حیرانه
دا دَ ده دَ دره لمبے دی، که د نور سترګی روښانه

(*) پیالا: پیاله۔

یو ګلاب خان له روان دی. تک تور سوی بیابان کښې

یو سپینه شمع خاندي، دیو تهر په طوفان کښې

ولې کم خواته روان یې! اې حُسینه ولې

کربلا نه ده بلا ده، په دې شګو کښې څه کوړې

ولې غم دې لاخیشته کړې، پستې ښکلې سترګې تورې

زور او زر، اقبال او بخت دې مې ماده ئې سوړې

یزید خان دې د جهان نن، انسانان وږي او کمزورې

د انسانان د شان مثال ښځې دې څرخ شوي زرک غلام ته؟

د سبا دستوري تورې ښځې دې د ژمي تورې ما بنام ته؟

بیا مه ګوره حسینه، نن ستا خدای دې ستا جانان

نه ما دکې نه پرېږدې ستا دې وخت د امتحان

ستا اختیار او تقدیر یو شو په دې ورځ په دې مکان

ستا د مینې مستي ګورې، زور دې ګوري د ایمان

اې د سرو ګلابو خانګې، نن ما بنام دې د خزان

د کافر ښکلې ترې، ستا د وینو په ارمان

څه ورځه زما جانانه، ساقي لرې میخانه کړه!

د سور اور او سور خمار نه، تالې ډکه پیمانه کړه!

اې زما غمګینه یاره، غم د مینې دې حصه

سور دَ ساز خیشت اخمار دے، دَ یقین مو تلوسه
چا چه مو نتے دِ جانان خپل په آرام په دلاسه
نوم نشان ئے مړکي روک کړل، وخت ئے روک کړو قصه
چه دَ سر سره ئے داؤ کړي مستي حُسن ارمانونه
سُرور زر قسمه مستي شي، خمار زر رنګه نشه
ګوره ګوره اے حُسینه، ګوره دغه دے عیسیٰ
دغه مست ملنګ منصور، او ابراهیمؑ د ربّ آشنا
یو په دار یو د اور میغ کښ، حُسن ولید دَ دِلبر
بے ګناه یو په صلیب شو، دا زغو تاج ئے په سر
ستا د یاره اے حُسینه، دغه سپین تیغ د شمر
هم ایمان دے هم نړتوب دے، هم قسمت دے هم باور
آ دَ مینے بل مثاله، رڼا راغله دَ سحر
دا د قهر طوفان راغے، که یزید سره لښکر

---

ګوره ګوره پاکه ربه، عجیبه میدان د جنګ دے
یو خواه زور د زور تورے صفونه، بل خواه تش حسین ننګ دے
یو خواه زور، غرور او حرص، قت قت په او ښنګ ښنګ دے
بل خوا یو مئین ایمان دے، مستانه او په غورځنګ دے
ربه او ګوره فرعون نن بیا موسیٰ سره په جنګ دے

عجیبه شین زمرګ دے، هم بادشاه د هم ملنګ دے
یو خوا سترګې دی د کانړو، هم ضمیر خوړلے زنګ دے
بل خوا وروکے خوار تو دے، هم د تندې په سا تنګ دے
دم یو نظر کښې کوره، نرتوب څه چه لیونتوب دے
د آدم د شان قیصه ده، کلک یقین د سړیتوب دے
تول جهان توره تیاره ده، دوئی د نور لیدلے خوب دے
جنګ په تاج کې نه په تخت، جنګ په حق د سړیتوب دے

---

دلمغرور فرعون ناست دے، که یو مست بیر حیوان
یخ بے رحمه چمچمار، چه به شوی ویران
مړی د تندے دمی لتے، روکی روکی ماشومان
چار چاپیره ئے ولاړ دی قطار ونه لښکریان
یو یو ګل د تندے رېژی، د رسول د ګلستان
او یزید ولاړ دے اوری، داسلګئ او هاسوان
دا بلا د کربلا وه نیم لیوه او نیم شیطان
په دنیا کښې دی تیر شوی، ډیر بے رحمه بلاګان
داسې ظالم نه دے شوے، نه به اوشی په جهان
د چینے په غاړه مړه شو، تول د تندے ماشومان

آخر چغه کړه حسینؑ، نور بچې زه د حیدرؓ یم
څه که نن یم اوږې تږې، زه په اصل شیر بیر یم
راشه او ګوره فرعونه د حیدرؓ د وینې اور
لوږه راؤ د انګه میدان ته، چه ښکاره کړو سره زړه
خونړیو ته ښانه پټ شو، چار چاپیره جنګ شروع شو
کربلا په وینو رنګ شوه، بیابان ډک د نارو شو
دا د لسو او د زرو، جنګ خونړی وو قتل عام وو
په لکها په زرو خرڅ، د خپل حرم یو غلام وو
د حسینؓ ملګری وارو، په ترتیب کښې حیدري وو
خو سیلاب د توره ډوب کړه، که بس لس حُله زمري وو

* — *

سترګې تږې خوږې یواځې حسینؓ او کتل آسمان ته
وو علیؓ مسکې ولاړ، نه کتل ښکته میدان ته
وې اې حسینه زمونږ وینه تل د خدای الله بخښلې
ستا نیکه او بابا دواړو خو خوشحاله بیولې
او ربس آورد کې بچیه، چه پاکیږي بې فولاد
د شهید وینه مستیږي، تل په توره د جلاد
ټول جهان تیر وکښې کیږو، خپل غیرت ایمان میړو
چه ښنګ د بل بندشې، ډیر نسلونه کړي برباد

زور د زهرو شراب دی ، د سړي نه ځان خطا کړي

د غرور ماڼۍ وي دنګه ، خو کچه یې وي بنیاد

د آدم نو سانو کښې نه بادشاه شته نه غلام

خپله خیټه سړي سپي کړي ، سړیتوب یې شي برباد

بل په مکر په فریب ، په دهوکه په چل ولونو

نیم لوږه نیم زمرکي وي ، په خپل علم کښې استاد

رحم روک شي ، ظلم ډېر شي ، سړیتوب کې سو هیر شي

یو سود او تر نه چاپېر شي ، هر څوک خپل عذاب کښې ګیر شي

قانون هم شي ، زور نادر شي ، نو تالا کیده دلیر شي

بې غیرته غیرتمن شي ، سپي غږ هیر کړي بېر شیر شي

زر شي زور د هر چا ځان شي ، خوار غریب په ژوند ستومان شي

بله خنزیر د هر چا پلار شي ، که خنزیر سره مال ډېر شي

وزیر غل ، امیر ډاکو شي ، ایماندار په سینه لاهو شي

روغ به مړی یا به غل کېږي ، چې تول غله ترنه چاپېر شي

تول وطن یو تور ځنګل شي ، یو ډبل په غوسه پاڅي

ځناور تر اماڼ غواړي ، چې انسان په کمه تیر شي

علم چل شي ، مذهب داغ شي ، رنګ حلال لو کښې حرام شي

هر سبا لکه ماښام شي ، ژوند به تور آفت کښې ګیر شي

دغه وخت کښې د خدائے رحم ، او رحمت په جوش کښې راشي
چرته غلے دچا کور کښې ، یو حسین پکښې پیدا شي
چې کې منه کلک پهلوان شي ، ورته جوړه کربلا شي
مرګ له نوی معنیٰ ورکړي ، ژوند کښې نوی رڼا راشي
آخر چرته په سپرلي کښې ، پے باران او برقا راشي
ناګهانه وچ صحراتول ، سره ګلونه د لاله شي
څه وړه څه وړه حسینه ، په خپل بخت شکر ګذاره شه
ستا شمر سره نیته ده ، سپیلنے د مخ د یاره شه
که رښتیا پے ته مئین ئے ، په خندا ورته تیاره شه
اے په غم سوی کلابه ، وریشه خمله بے قراره شه
حسین اووے مرحبا ، دا اړزانه ده سودا
کاش چې وے م په تنا ، قطع سرونه په زرها
او یو یو ورکولے ما ، په زر قسمه کربلا
دا دے د رغلم بابا ، لا اِلٰه اِلّا الله :
اے بادشاه دیزیدانو ، اے مالکه د جهان
ستا تقدیر مے یو اور دے ، ځي په مخه کړے روان
کله وسیزې بے ر جے ، سپین ګلونه ماشومان
کله تاج د سرو په سر کړي ، ګیله سترګي شرمښان

دَیزید په لوئے محل کښې ، د شرابو رود روان

د رسول بچی دِ مره کړه ، او چې شونډې په میلان

دَیزید په سوړ پالنګ کښې ، په ژړوندون حورې غلمان

دحُسینؑ جانان مړ کړے دے ، او پالنګ ئې ریګستان

ظُلم ظُلم د ومره ظالم ، وران دِ نه کړو پے جهان

دحسینؑ په زنګدن کښې ، دیو کوټ او بوا رمان

امتحان دِ کو دَ مینے ، دحُسینؑ څه امتحان

ولے زړے دَ حیلےنه و ، شیر ببر مرد میلان

مکوه مکوه اے اجله دا سر نه دے دَ وژلو

دآدم شان او سینګار دے . تا پے اور اولګولو

ځُنجے خاوره ، دا سے مسته د زهرې په تنا ځلینې

ستر سرے نے دا سے اورکئ لښکرونه تے تبنتینې

یو مثال د حریت دے . د خپل زړه په زور ربلینې

پټ دَ زړه په تار خانو کښې یو سرور دے چه غزیږي

حُسین او کتل چاپیره . اور شو ژوندون او ر شو اور

دے بے حِسه تور ملحول کښې هر ساه شرم پیغور

په دے ظلم به دِ اور کښې یو ساعت ژوندون حرام دے

دا دے د رهلم مرکیه ، زور او صبر مِ تمام دے

کربلا ذره ذره ستا ، ونې به چغې تر قیامته

چه انسان به زور آوره په هیڅ شان سر نه کړي ښکته

غلامي نه هر څه ښه دي ، دا چه تیر شو او تیریږي

ربه داسې زمانه ده ژوند د مرګ په بیعه کیږي

په خپل ژوند کښ په هر چا به کربلا یوه جوړیږي

چه څوک ښې د جانان کور ته په ډاګه به تیریږي

دا یو ستړې غمګین سړې لوګې کومه نه له تانه

دا روښتې مراوې سور ګل د حیاته د ګلستانه

---

سر دې ورکړه لکه نر ، شیر بچې د شیر ببر

نه د غیرت دې څوک ثاني شته نه د زور برابر

اے بادشاه د شهیدانو ، نښه خانه د نرانو

ستا مرګ هغه یاد تازه که چه هیر کړي هر انسانو

ستا د ژوند او د مرګ تول ، ما ته او ښو کربلا کښ

څه رنګین سرود دې واچو لا اله الا الله کښ

ځکه کله نه او س هم د ښپې ژړا مه

ستا د غیرت او نور کمال بیا په دنیا غواړمه

کوم د ته منت دعا ، اے حسینه راشه

هر قدم شو کربلا ، اے حسینه راشه

ولاړ ومه په اور کښې ما وې اور زما قسمت
لمبې د قسمت نه وې، وې لمبې زما د نیت

نه ګل نه دلربا منم، نه حُسن نه بهار
یو ستا د سترګو خیال منم او ستا د شونډو وست

نه بخت او نه کمال منم، نه توره نه جلال
یو ستا د خندا راج منم، بې تاج بې سلطنت

نه چل او نه تدبیر منم، نه عقل نه تقدیر
یو زیړ د سپرلي ګل منم، ضامن د یار د بت

# سپوږمۍ

| | |
|---|---|
| اے لیونیه ساقي | دلیونو د شراب |
| ستا جا دو ګره رنا | د خمارونو دریاب |
| نن م به ستړګو کښې ستا | سورې دَ غم ولیدل |
| دارمانونو لړے | خاموش ماتم ولیدل |
| یاده که هیره دِ ده | خُما خواني لیونے |
| چه تا به سړه لمبه کړه | نه ما نشه دخوانے |
| ستا پلوشو به رانه | آرام او خوب پټ که |
| یو بے قراره ارمان | کښې به م هوش ټوک ټوک که |
| چه را ښکاره به شوے ته | لکه مسکۍ محبوبه |
| خما هر رګ به ډکه | یو دَ جنون لمبه |
| بس یو آرمان یو درد | سوز او خمار به شومه |
| هر سر کښې اور او ژړا | داسے ستار به شومه |
| یا به دِ داسے مست کړم | یو سور انګار به شومه |
| یا به دِ راورو امید | یو سپین ګلزار به شومه |

خونن خفه غونکے ئے      زیره حیرانه شانے
ستړکے دِمراوے مراوے      اوپریشانه شانے
بیتول جهان دِکه خور      مراوے غمگین ایمان
لکه بے وسه مالیار      په تور ماښام دخزان
نن دِ رنا کښ هغه      رنګ او سرور نشته
هغه مستی دخوانئ      دخیشت غرور نشته
ستړکے دِمراوے مراوے      خفه روانه وے
لکه زما دَ زړه      ستړے ستومانه وے
هغه جادو د خه شو      هغه شراب خه شو
هغه د اور لمبے      او سره ګلاب خه شو
زما رنګینه ځوانی      خوروخت په غلا یوړه
خمار ځوانے سړلاړ      مستی سودا یوړه
ما ځان با چا ګڼلو      دَبل غلام اوختم
مایو دریاب ګڼه ځان      دَخاورو جام اوختم
خوستا جادو ګره رنا      دخمارونو دریاب
خه شو ستا دِ ک خمونه      دلیونتوب دَشراب
بس هیڅ جواب نه کے      کم خواته ځے زمانه
ستړکے مسکے مسکے      مراوے خفه حیرانه

# نوے بلا

کله کله را پیدا — شی یو دا رنگے بلا

ژبه سبکلے او پسته — سړے ډک دی د رڼا

هر یو سوال کښې ئے معنی — هر جواب ئے فلسفه

هر دلیل ئے ښه پوره — پوئے په هره مسئله

فکر تیز او ښه روښان — علم خور لکه آسمان

د ړوند په عقل هر بیان — د منطق په تول پوره

دا په شکل فرشته — ده بلا توره بلا

زړه کښې قهر او تیاره — باهر[1] سپینه تجلے

د ده هر خیشت او نیت — یا ورانے کړی یا علت

دا سکرو تکه[2] د نفرت — سوز ولو له پیدا

د ده هر زور د کمال — هر لطیف او مهین خیال

بس یو جال او یو جنجال — ستا د خود او هوش پرکه

د ده د اسبکاے گفتار — دے یو دام د منګلی تار

دلو مېږ هسے منګ — راګیری دې په رضا

---

(۱) باهر: بهر۔ (۲) سکرو تکه: سکروټه۔

لونے غازی مست په اسلام | لیونے په ننګ د قام
تاجوری د خان غلام | یا په زور یا په دهوکه
په هر چل په هره لار | دکمبکاری او ته بنګے
دغه سترګے د ښلار | ستا د زړه د کینې اسره
سپین محبت کښې د جمات | دی پراته لات او منات
دا په شکل آدم ذات | په ځان وینه اژدها
دده دا شیرین ګفتار | کفر کفر او انکار
پروتے زړه ته دے زنار | دده هوش توره لمبه
دغه علم د جهان | ورته ښودلے شیطان
د ده دا رنګین بیان | اړولے بسم الله
دغه ښکلے سپین صورت | مقبره ده د نفرت
دغه پند او نصیحت | دی د زهرو پیاسه
دا دلال دے د تیارو | د سکرو تکو د سکارو
دغه سپینو منارو کښې | او ردونه دی زرها
دا په شکل فرشته | ده بلا توره بلا

هم آفت دے هم وبا
غنی خدائے دِ تے ساته

# دغنۍ تپوس

غوټئ ماشومه کوکۍ    دکه دخیښت سینګاره

الله ته پورته کړله    خفه او بې قراره

وې اې دګلونو خدایه    اورې که نا اورې

ولې کړې ما ګلاب    او ګلاب خاورې

ما بنام د باغ مالکه    لیلٰی په سیل راغله

وې واه دا زیړه غوټئ    پریکه ویښتوله زما

ما بنام وُ ساز او محفل    تول دخوانئ غوبل

یوازې ناست وُ غنی    غمګین غمګین ئې کتل

لیلی ئې خوا له لاړه    وې سترګې ږغه کوي

وازې دي ماته اشنا    بل خواه، بل څه ګوري

غنی دغمه ړکې    سترګې ور واړولې

هم هغه سوال ئې اوکه    چه سهار(+) غوټئ وکړے

سترګې روښانه لیلی    غاښکئ غونډ ے شوه

وې دَدَ سوالونو جواب    چرته مُنټئ(*) دے چا

---

(+) سهار: سحر، سهار. (*) مُنټے: مونږلی.

جانانه بس دے دا  چه ښته دخیشت پړ نیا

دعقل تور ځنګل کښ  نه ښته ګلاب نه رڼا

ستاد زرها سوالونو  رنګین جواب زه یم

چه به تا مستے جوړکه  هغه ګلاب زه یم

د دے وړے جهان  دالا جواب سوالونه

بس د رب شکر کوه  او ښکلوه ګلونه

شکر او باسه چه چا  خیشت او ځوانی کړو جوړه

زرها شکرونه په دے  چه ئے فانی کړه جوړه

د زرو کالو لیلیٰ  او وسل کلیز جانان

دځوانے خیشت د دغه  چه ئے خلاصین ی ستان

چه مستی خیشت شی خلاص  شکر چه ښته مرګونه

شکر چه خاد ځوانی  تو کوی زیر ګلونه

د وړے وړے تپوس  ئے د مالیار او که

زه دیو سات سیلانئے  پو ئے مسکے شه یاره

جانانه کی(*) ځوانے کښ  خوند د مستئے او رونه

دے فلسفوله د ښته  داپائے تول عمرونه

راشه د سره شوند وکښ  سوز او سازونه دی

عجب رنګین خماری  دجوند(+) رازونه دی

(*) کی = کوی. (+) جوند = ژوند.

# حساب کتاب

په ژړا ژړا مې عمر په سجدو مونځونو تیر که

نتیجه ئې بس مرګي يو . تور لحد را ته چاپیر که

د قسمت او د تقدیر پخه قانون لا ړه کوډې شته ؟

د ځوانئے اور ته مې ولے ، بيا وے او سوزېدے ولے ؟

لاس او خپے مې دی تړلے ، او وے شا به کله شکله شه

مړ انسان دے دا اتڼ ته ، ځنځیرونو کښې بللے

د مسکو سترګو جانانه لړ د خپو مې که دا پړے

بيا مستي د خادړے کوړه ، او توپونه د آدم

کله شرنګ د خواخوا کښې ، کله زیرو او کله بم

د تقدیر کړئ کسسته ، بیا زما کله اته کوړه

ستا د عرش په منارکښې . لیونئے خندا ته کوړه

چه زه مست شم په هوا شم ، اوړشم تنده شم ، رڼا شم

چه يو ساز مست او سرشار شم ، نو ړشم پرښتم ، پخلا شم

روښان تور د مرګي سوړے ، برنډ سترګے تکے تورے

یو نظر راته را واړئ . یو نظر کښې روک تالا شم
دنیا نور مستي لا هوشي . مُټې خاوره د صحرا شم

اے زما د زړه د نور . د دنیا او د خیال رتبه
د ځوانئ د سرور نښکونو . د مستئ او جلال رتبه

اے چه زه جوړ تش د خاورے بس د خاورې ومه سیال
ولے تا راکړه سازونه . او ښکلونه . او جمال

دا انصاف دے مُټې خاورې . د خپل تخت پایوله یوسے
بیلئے د روزنمکے له راولے . هسې کار بنایست تے یوسے

دلیلي نه بنایست واخلے ځوان بوده اکړے بوده خاورے
نور دیر بنه دِ را روان دی . د مُلا هغه چه واورے

مستي خیشت کمال مِ واخلے خپل یو تو دِ سینه پړکښې بند دے
زه دِ لوټ تالا کړم دلته . ته به تله کښې دِ څه بږدے

د ګلاب په شان ځواني دِ . راله خاورے کړه تباه کړه
تر مغے به مِ نجور کړے چه مرګ مِ واویلا کړه

دا الږ ژوند یوتے احساس د غمي مرګي له غلے غلے
چه آخر به رانه جوړ کړے . یو تو یکے شان د غزلے

حساب ؟ ستا به څه حساب کړي . جناب واړه وسپړه رو کړه دِ
لوټ تالا . برباد دِ زه کړم . خو کمزورے دله پړ دے

# دَ زړے خال

په سپینو کوتو ایرے کړے پوره ته
په ښکلو سترګو په کښې تلاش کړے
لا لونه کوړے ته په ډیران کښې
لیلیٰ دا ته ئے دا چه مجنون دے
چه دے مړ باغ کښې ګلونه کوړے
دا ستا مستی دَه، او ستا جنون دے
زه؟ زه یم څه، ستا تخیل یم
ستا خوبونه، ستا ارمان یم
بے خودی زه ستا دَهوش یم
ستا چشمے له زه طوفان یم
چه ستا زړه مینه په نور شو
زه شوم شمع زه مشال شوم
چه تا ځان سره له وړکه
نو زه ستا د زړے خال شوم

چه ستا خود د ساز لیوال شو

زه سرود شوم زه بلال شوم

نه چه طمع د سبا شوې

زه سبا شوم زه هلال شوم

نه خفه چه د ایرو شوې

زه یو مست او د روک جلال شوم

چه تلځان په عشق کښې ډوب که

زه مستي شوم او وصال شوم

نه چه ورته د کمال شوې

زه همه کمال کمال شوم

چه تا ایره(+) د تیغ وکړه

زه قلا شوم زه ډ(٭)مال شوم

چه ته ورته د دولت شوې

زه الماس شوم زه لال شوم

چه ته ورته د مستۍ شوې

زه منصور شوم زه بلال شوم

چه تا نیت د کتې وکه

کله دام شوم کله جال شوم

---

(٭) په ډال ، دال . (+) یره ، دیره

چه تاواغیستم جانانه

زه بنا نُست شوم زه کمال شوم

چه تاوُلیدم دلبره

زه هلال شوم زه مثال شوم

چه ستا زنه په کم لوړه

بس زه ستا دَ زنے خال شوم

# د تیارو غلام

ولې ماله دِ نور که په خوا د اوُر
د شغلو په بستر ولې خوب راځي

ولې ماله په جنګ کښې خوانې مستي
په آرام کښې فنا بلهاتوب راځي

ولې ما ته دلړو په سورې کښې
د جبلو تولان خائست نمایان شولو

ولې ما ته هر ګل مستانه او مست
په مابنام، په مابنام د ځان اشنولو

ولې شور د وجود زما ساز شولو
ولې ما ته ارمان خپل ایاز شولو

ولې ما ته د ژوند همه نور او رنګ
یا شکرې یا شاهین یا شهباز شولو

ولې ماله د ژوند ګل سوب ضرور
نه نیاز شولو نه انداز شولو

ولې ما ته خائست د هر سُر او تال
د غمونو دردونو آواز شولو

ولې ماله دِ نور که په خوا د اور
ولې ولې شو سپین مرګ د تورې

ولې ژوند بس پیغام او مطلب د ګور
زما سور ګلاب شو غلام د اور

ولې ماله همه خوشحالي د ژوند
یو تنګ تورې بې مطلبه تصویر شولو

تش په خان په جهان پسې ژړمه
زما ساز هم مرګ هم ویر شولو

کمزوري د وجود او خیسکر زما
زما خود شو قسمت شو تقدیر شولو

او زما د تیارو تاریکو غلام
زما خان شو، امام شو او پیر شولو

زما مینه دعوه د درېځ غوښتوه      زما حُسن لیدل د رانده وشولو

زما زړه شو غلام د وجود نړها      نظر ونه بچې د لیدلو شو

توږې لړې، او لړې او کړ خوب      نه اُمید شولو نه ئې راز شولو

زما ژوند، یو سلګۍ د شکست شوله      چه نه سوز شولو او نه ساز شولو

خپل دنیا ئې ژوندون پسې ژارمه      زما ژوند هم مرګ هم ئې ویر شولو

چه د عقل نظام یو برق وکه      هغه هم د تیرو یو تصویر شولو

ځکه ماله هر تال او سره ورپسان      د غمونو دردونو یو راز شولو

ځکه ماله دِ نور که په خوا د اور      ځکه ورځ م د شپې دردوَلي آواز شولو

د ژوند هره شغله، شو لمبه د اور      هر اُمید، ارمان، یو دهوکه د ځان

زه غلام د تیارې په پنجره کښې پروت      که یکې دام(*) چه نو یم د کل جهان

زه چینځې په ویران کښې غنزیږمه      رنګ سترګې م رنګ د بهار نه وینې

زما ونه کښې او رګې خاورد د ویران      د یار سترګو کښې هراړکي خمار نه وینې

زه لوئې شوګې صحرا او تیارو کښې یم      دغه شکو کښې ستوری هلاک م دی؟

زه یو تور او او بنیار شان کونکت یمه      شمع څرګ دې سپین دِ مثال کم دی؟

دا اُمید، د اخیشت یو دهوکې دخان      ژوند تیاره ده او مرګ سمندر، دِ تور

زما سر کښې سپوږمۍ او کلونه شته

خو هر رنګ دِ تور، لکه کور، کور

۱۹۶۵ء

---

(*) دام: دهم.

# یورپ

دَ مغرب دَ سوی زړه نه یوه سوے کړیکه وځی
جنګ دے دا مے درد وے اوس هم رپی اوس هم سوزی

ماشومان ګلونه ښکلی
امیدونه نیاز ولی

د سبا خوبونه خاورے
پړونی سازونه غلی

دَ یو بم په سُور انګارکښ ټول ذره ذره هیره شی
دا تور تم چه په چا تیر شی وروسته ټول جهان تیاره شی

ژوند یو ټوقه بے مطلبه
رګ دَ درد دَ غضبه

څه ثنا به دَ رَبّ واوُرے
په سرو تیلو کښ دَ کبه

دا راندهٔ په ښکو ګوری ،لمبو سوے ئے نظر دے
دوئ بینا وُته راندهٔ وی ۔ او چغر پیغمبر دے

هر ماښام مغرب راوړي، شپه راځي د ده د کوره
د مشرق رنګینې خاورې، تا نه تل خښتې نمرې
پاڅه پاڅه راپیدا که یا یو بده یا مسیحان
کنې لاړه تیاره ویره، دا رڼا ده شمله دُنیا نن
ورته او وایه چه مرګ بس د ژوندون د دلیل تول دې
د ژوند سره ګلاب بې بېخ دی، مرګ که تور د ازغو شپول دې
که مرګ نه وې ژوندون به نه وو، هر ماښوم به ډې پوهیږې
بند ځکه په ورځ پوه شي، چه ماښام کښې تیاره کیږي
انسان نه ده تشه خاوره، چه په خاوره کښې مټي خاورې
ده کښې ساز یو ابدي دې، که لږ چپ شې ته به یې واورې
ده کښې سوز ده کښې مستي ده، ده کښې مینه او خمار دې
دا به کم لحد کښې ښخ ته، ده له کم قبر تیار دې
اې غلامه ځنځیر د تیاره کښې پروت، خان که هیر لې چا په خوا او کوره
د جانان د ښایست او د مینې نور، په هر خوا به سېر خوا او کوره
هره دانه کښې ژوند لا ژوند اله ژوند، هر ګلاب کښې دریاب د سرو دې
بدلیدل د ژوندون دوام ده لاره، کوره هره غوټۍ کوم لحوي دې

۱۹۶۵ع

# اے زما وطنه

اے زما وطنه د لالونو خزانې زما — ستا مړه دکښې د تورې نښانې زما

ستا سر چې وی تیت نو زړه به شان و شوکت څه کړمه

ته چې خوار و زار یې زړه به مال او دولت څه کړمه

ته چې روان ویجاړ یې زړه به خواب او راحت څه کړمه

مستۍ به د خاورو کړم په وینه مستانې زما — اے زما وطنه د لالونو خزانې زما

عقل مې ایر شه ستا د پاره د فکرونو نه

سترګې مې قربان شه ستا د پاره د سوچونو نه

زار شمه قربان شم ستا د خاورې د کورونو نه

ستا زړه کښې پرتې دی تورې تلې نښانې زما — اے زما وطنه د لالونو خزانې زما

یا به دې زه سیال کړمه وطنه د جهان

یا به ستا په خپو کښې تورې خاورې ګرځم خیل ځان

ځان به درې ورے کړم خو تا به کړم ودان

نو زمه پښتونیم تا ته یاد افسانې زما — اے زما وطنه د لالونو خزانې زما

# جنّت او دُنیا

چه مستي وي او ځواني وي او جانان وي او ډک جام
دېره کلونه، لږ یاران، او غمګین غونډې ما ښام

عشق څه او روي او څه نور وي زړه لیبي لکه تنوري
په دې ژوند به زه ور زار کړم جنتونه ستا تمام

خود اکثه په دې وګړي چې هیڅ رنګ له قرار نشته
هر ساعت. هر رنګ د ژوند. ستا دوخت دې کس غلام

او جنت کښې ملا وائي وخت به وي زما غلام
د کچه روک شي او زه شته شم. تول به وران م شي تمام

چه زه تول غم زړه لېږم. نو لمې توب به یو عذاب شي
ځکه او س را باندې ګران دي، چه یې خیشت شي زر تمام

تل سپوږمۍ د ځوار لسمې، تل جانان د شپا په سمې
تل ځواني. سیند د شرابو، دا دوزخ دې که انعام

دې دنیا پسې به ژارم. دا تیاره هلال به غوارم
هره ورځ به یادومه. نرسې لره د ما ښام

تمنګ د حورو وفادارو . بې وفا جانان به غوارم

ستا آدم په ذات ښکاري دې . د ښکار خوند کوي هر کام

د مستۍ د سیند په غاړه ، ثوابي روژې به نیسم

اسویلي به کوم یادوم به د ساقي نیمګړې جام

هر څیز چې ابدي شي ، یو آفت شي یو عذاب شي

بس یو تا سره مزه کا دا ازل ، ابد ، دوام

بند نوې رنګ محل کښې نوې نوې جانان غواړي

بیابان کښې سره ګلونه . تورې شپې چراغان غواړي

تل تیاره کښې دې روکیږي . تل رڼا کښې هم ړندیږي

دې بچې د تغیر دې . یو حالت کښې نه تمنګیږي

که ده ستا جنت له یوسې . دا فطرت او دا وجود

یو څو ورځو کښې به سوځي . په سرو سترګو به ژړیږي

اې د لوې فضل مالکه ، ماله دا دنیا جنت که

فارمولې ده آسانه . د درې توکونه جوړیږي

لکه ویلي م دې سر کښې ، بس جانان خواني او جام

چې زما لیونې سر پې کله کله مشغولیږي

او هغه بل د مرګه پس م ملاجان سپي خیرات که

تش د حورو په خوبونو که د خوار ګذاره کیږي

ماله دلته یوه راکه غونډه ، مسته تکه سپینه

مینه ناکه ، سپینه شمع ، چه لمبې وهي بلیږي

شل رنګونه نے نظر کښې ، شل مزاج په ځیګر کښې

دَ سپرلي هسې خوبونه ، کله نمر کله وریږي

یو ځرمنه کښې دننه ، یو حرم دَ جینکو دی

کله مسته او سرشاره ، کله غلې تشې شرمیږي

او زما دے سترګي زړه کښې شل رنګونه او لمبه کړي

چه دَ اور هسې سوزیږي ، دلبتو هسې کډیږي

چه په یو بے تاب نظر مِ دا مستې دا نشه کړي

میخانے ورته حیرانے او ساقي ورته پسخیږي

دمغے زړو بدل کښې ماله دلته یوه راکه

دَ ابد تو له خواني مِ ، د خوځکالو مشغلا[1] که

که دانه کړئ اے جانانه ، سرے خوردِ سبا که

نه مِ هغلته پکار دي ، نه مِ دلته کښې یادیږي

غټے غټے ، سپینے سپینے ، چه نه سوال نه منت غواړي

ارتے بیرتے ، او اوږدے سترګے ، په غځملو به لغړیږي

رَبّه ! اے جانانه رَبّه ! دغه یو سوال خو منظور که

کني لاړ غني دِ مر شو ، ور پسے نے جنبے[2] کیږي

---

(۱) مشغلا = مشغولا. (۲) جنبے : زړی.

# مینه او حسن

ستوري ته اسمان کښې یوه ورځ ووے ملال
خدائے آدم له مینه ورکړه مونږ له تش جمال

زه به په خندا ورکړم دا خپل ښائست د کمال
ماله که یو څاڅکے مینه راکړې خوږ په سوال

مینه حقیقت حسن سایه د حقیقت ده
حسن له زوال شته مینه نه لري زوال

# ریدی ګل

یوه ورځے یو صحرا کښې په ښکار وتے ووم روان
یو ګلاب مِ ولاړ ولید، پړقیده خیشته خندان

زه خفه ئے خواله لاړم، ما وے، اه! زما په شان
ته هم ګل ئے بدنصیبه، روک د زلفو د جانان

نه د جانانو سینے کوتے، نه مخ له به دِ یو سی
نه به ښکل دِ کړی سرے شونډے دیارانو نازک لبان

هغه غلے شان مسکے شو، وے خندان مه کوه خفګان
زه به د صحراو نګریم، د ایران په ګلستان

دلته زه یوا و یکتا یم، هلته ډیر زما په شان
چار چاپیره سپیرے خاورے، زه یواز یم روښان

دلته دے تور ریګستان کښې زه د رنګ او نور لمبه یم
د غاښت چپه نغمه یم، کرشمه د لامکان

ستا په باغ کښې به زرګونو، دی ګلاب زما په شان
یو بے نومه سورے رباب کښې یو بے نوم څاڅکے روان

ته دِ هم په خپل صحرا کښې خفه مه شے زما د روره
آخر اِبه شی دید له دِ خوګ سوے غنی خان

# دُنیا

دا په خپل خود کښې دے دنیا ته کتل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده
دلته شل قسمه دهوسان(*) ګرځي
ډنګ د شهباز کښې تپوسان ګرځي

کیږدو بریت د ببر شیرو ایښې
غږ مباکوي لکه شیران ګرځي
څوک دغه بے خوار لګه ګزنګ کښې
آدم خواره او شرمښان ګرځي

یوغت پښکے، سپینه مسا آپلا مس کښې
په اوږ د زیره کښې شیطان ګرځي
زړه خو سینه کښې د پټ، پټ پروت دي
نقشه ئے سترګو کښې روښانه نه ده

دا په خپل خود کښې دے دنیا ته کتل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده

(*) دهوسان د دیوسان.

یو خوا ته کند کښې د ملنګ سامری
دَ فقیر نوم نے سپک بد نام کړلو
دے ملک کښې دا سے وخت تیر شوے
بادشاه به سوال د خپل غلام کړلو

فقیری هیڅ جامه لباس نه لري
بادشاهي توري تیے او الماس نه لري
دا خو یو نور د زړه په زړه کښې بل وي
دَ روح مستي ده. نه لباس نه چل وي

دغه بوبل چه جونکے چا نه شو
منکاری دے خورے تا ته دام کړلو
دا چه هو مولکه کید ر کوي
دا ذکر نه دے تا ته خان یادَ وي

یزید دَ ناست په چغو چغو تا ته
په کربلا کښې شهید ان یاد وي
که یو که لس وُ مابه منولے وُ تول
دغه شمار خو بنه آسانه ده

دا قسمه، قسمه پیژندل منتریان
ګرانه ده ګرانه، ډیره ګرانه ده

او ګوره دغه دے یو صیب ږاغ
برېت ئے جنډ الکه قیصر نیولے
سترګے یې خړ دی دَ شاهین غوندے
خومره مغرور ئے دَ سر نیولے

دَ دیر شو زرو په موټرکښ ناست
خومره دولے ئے ډرائیور نیولے
سُوټ ئے دَ زرو روپو لاندے نه دے
شمله ئے نیغه ده په سر نیولے

دالنډے سپے دے دګیدړ بچے
هر دله توب ته ئے تیټ سر نیولے
نه دے په لوړ نه دے په ښځه حیران
لوړے ښکاریږی مینه ارزانه ده

دا قیصر شکله دلالان پیژندل
ګرانه ده ګرانه، ډیره ګرانه ده
دغه دے یوچه شمله نیغه لری
ګرے خبرے په لاسونو کوی
دوه غلچکی ورپسے روستو روان
بڅے خبرے دَخونو کوی

څه معجزه او بزدکوټ تک تور
دَ مولانا تور، د قبا ښکاري
سپین ئې پرتوک تورو بوټانو سره
ښیښته سپین ستوری دسبا ښکاري

دادِ بنهیا[1] اتڼ[2] ئې او ښکې ده
د پلار د ښکه نوم او عزّت خرخوي
ماخرخي، ماخرخي، آشنا خرخي
چه څه تې غوارې په دولت خرخوي

دغه رونړ غز ، دغه بت شوی شمله
په تش د دکان کښې شان شوکت خرخوي
څه چه ته غوارې، ښه داده په ورځ
دَده سودا تول ارزانه ده

دغه چه سپین لکه کلونه ناست دي
دا دَ رنا ورځې د اکوان[3] ګې تول
ژبې ئې تیزې، چلولي ستر ګې
نیم ازمري، نیم لومبړان دي تول

څه ښکلې ښکلې مخونه او ښیار
بلا دخبرو سپین قارغان دي تول

---

(۱) بنهیا: نیل ، ماګکهر ورکه . (۲) اتڼ: دوکان . (۳) وړاکی: داړه مار ، داړه اچوونکي

دوی په خوږه خوږه کښې مار وکوی
دا نسبي پاخه ښکاریان دي تول
پښتنې څه دولې قبا پرته ده
مسکو لبانو کښې بلا پرته ده

کرخې دنیا کښې په لکهاو تکان
هر یو دځان له یو ښه اوږد داستان
که زه تول عمر کښینم، خلاص به نه کړم
دا تعارف دَ دے قلم په بیان

خو په انجیل کښې دي عیسیٰ لیکلی
دے دَ بنده دلید ویو امکان
ستر ګې کړ ګنې دي، دَ روح رنګ ښائي
ستر ګو ته ستر ګې همیشه ښائي خان

دُعا کوه، وے خدایا لاوُم (*) نه کړي
خو په دنیا دَ دَهوسُے دے طوفان

چه سمه دمه ده نو کرانه ده
او چه آسانه ده نو ورانه ده

---

(*) لاڑ: لاهو.

# چه آدم

# خاورو کښې کښېني

سر يتوب چه لوړ او چت شي ليونتوب شي
چه خودي د خودۀ وځي نو خمار شي

چه فولاد د وينې موږ په مينه مست شي
نو حيران او پريشان تار د ستار شي

چه ترے عشق او جانان دواړه وخت فنا کړي
هله پوئے سړے په شان دخان او يار شي

چه آدم خاورو کښې کښېني څه زرغون کړي
منجيله چه په دولت شي نو بنا مار شي

ماته حورے غلمان مه څنډوه بس دے
په والله که بے له تا م په چا ګار شي

دا چه نن پکښې زۀ مست او مغرور ګرځم
سبا خدائے خبر د چا به دا ګلزار شي

ستا د مرګه نه يريږمه پښتون يم
خوږم تش جمله دون او خوشې مرګ ته قار شي

زړه کښې دوب دَ وسوسو درياب بهيږي
جوړ به کله د اُميد رنګين آبشار شي

داخپل زړه ستا بې پروا نظر ته ګوري
کله کله په ژړا خکه شاه تار شي

ساز ژړا ده که مستي ده نه پوهيږم
مرآواز کښې کله سوز کله چغار شي

# قِسمت

ملاجان وائی ازل کښې تا لیکلې هر یو کار دے
یو له ستر کو کښې شفق دے بل له مسے کلیغار دے
ستا تقدیر هر لمحه کښې ده یو وینته واکدار دے
یو له کل یو له ډلدار دے یو له اور یو له انګار دے

یو به تول عمر نالان وی، او بل تن به پریشان وی
یو نیاز بین به په بخملو بل به پروت په بیابان وی
یو به تږے د سپی غپار کا، بل خوړل به لکه مار که
یو به ښکلے ښاپیرے وی، بل به بادوی تورابان وی (*)

مُلاجان وائی اے ربه! د هر خون ته ذمه وار نے
دا تول ظلم تا لیکلے، ستا ذکو تو دا آزار دے
دا بے رحمه افتونه، دا بے خایه رحمتونه
د حسین په مرګے توره، او یزید د ملک سردار دے
ملاجان وائی تا اینبے په آسمان کښې یو کتاب دے
چه هغے کښې تا لیکلے هر آدم له هر یو کار دے

---

(*) نراباں ریژچه د شهزاده بهرام په خوا لکلو ګی قصے کی یاد شوی دی.

نو چه دا سې انتظام دے اے زما منصفه خدایه
مانه څه له کے تپوس، نه م واک نه م اختیار دے
ما کښې دو مره طاقت کم دے چه ستا لیک دَ ابد وړاندې کړم
نه دَ زړو زورو خانانو زه بے وسه خوار غلام
که زه خاندم که زه ژاړم، ستا یو تکے نه بدلیږي
دا بتان دي ستا دکوتو. دا کفر ونه ستا الهام
دا حساب کتاب به څنګ وي. دا تپوس جواب دَ څه شي
هر کلاس چه دِ ما څخه کلے ستا دکوتو وو اکرام
مُلاجان وائي ساقي هم دَ تقدیر دکوتو جوړ دے
مُلاجان وائي دا خیشت هم تا جوړ کړے دَ تمام
نو چه زه دَ ساقي ستر کو ستا دَ کوره خان له بو تلم
ما کړه سپینه را وچته به آسمان ما ته کلغام
چا ته تشکیل کړمه به دام کښې دَ سرور او دَ رڼا
چا کړه جام کښې راته کله، په شرابو کښې خندا
او مغه راته روښانه سپینه شمع بلیدله
زه جلبل لکه پتنګ شوم. دَ دے شمع په لمبه
دا به ته په کوم قانون کښې را کوے ماله سزا
تا آسمان کښې بره لیک کړه، او ما او کړه په دنیا

چه اختیار نه وي جانانه څه ګناه د چا ګناه
راته ښکاري ملاجانه چې ته ستا دې خطا
که قانون وي که رواج وي که منطق که فلسفه
دا ګناه خو اے تقدیره ستا له ستا راوخته
که اختیار وي ګنهګار یم، که اختیار نه ګناه کم دي
دا خولاس د بړي کار دې ته په هر څه کښ تکړه
وایا وایا ملاجانه که اختیار راځي قسمت ځي
د قسمت سره دې واړه آرامونه او راحت ځي
د تنګي لیکلي روک شي، بس سړے د خان مالک شي
که په باغ کښ د آرام ځي. که په لار د مصیبت ځي
بیا کیدے شي حسابونه د جزا د ثوابونو
چه سړے په ښه په بد ه په خپل وس په طبیعت ځي
خو قصه چه د قسمت شي، ملاجانه زه بړے شوم
تل به ځم په هغه لاره چه په کمه م قسمت ځي
زه موټر، هغه ډرائیور دے ځم په کمه چه م بیائي
که جات که میخانه وي که په سمه په صحرائي
که موټر کند و کښ پریوزي، نو ګناه د موټر نه ده
دا چه هر قسمه سزائي د ډرائیور سره ښه ښائي

که ګناه ده که ثواب دے، زه به دواړو کښں بے وسه

مُلاجانه دا کتاب دِ خوښه بړغے ژبے وائی

زه بے وسه ګناه اوکړم، بل بے وسه ثواب اوکړی

په دِ دواړو کښں به کم یو قسمت سور دوزخ له بیائی

ژها بو تله خو سړو په جفا ده دغه بل کښں لا ځائے شته دِ

دے جهان کښں خوښه عمر سنبه تیر کړے په خندائی

مادیو بے واکه اوره بیائے بل بے واکه اوهته

بیا دا سا خویو غضب دے، که دا بعیه ددے سائی

ستا کتاب به دے کښں څه وی لزوم پوئے که ملاجانه

یا خو راشه کوده شروع که قلاره کښینه د آسمانه

یا خو تله مله نه ده، د جهات کړه دینګړے ده

یا خو تا څه اکوبکو ایجاد کړی دی د ځلنه

وران او سم د بل د لاس دی که ده وران که ودانه

اور او ددد او منا ماران به چا پیره وی زمانه

# مرګ

ماتم وُ د خانانو د میاګانو ډک کمونه
پخې پخې خبرې وې او کلک نې دَ دلیلونه
ټولو په نظر کښې یوه لړه یوه ارمان وو
روک شوې ترې منطق کښې وُ د حسن امیدونه
دَ مرګه یریدل دا سې چې ژوندُو ورته اوده
غرې دُپلا ونو ښکاریدې ورته قبرونه

دَ ټولو سترګې وازې، لکه اسپې تړیدلې
نه خفه خبرې او پاسته نې آوازونه
چې زۀ شوم ورښکاره یو یادم بل یا تۀ لګیا
لا لۀ دیره مړ شم چې دَ مرګ مخ راښکاره شی

چې فکر یې ور سا نۀ شی زړۀ م ولویږي خوریږی
د ژوند هر یو امید م د هیرو ذرۀ ذرۀ شی
یو تور غوندې ښامار وازۀ خُلۀ ناست خوری عالمونه
هر چاته چې شوې په هر چا د دۀ حمله شی

نه خوان کوري نه زوړ د قصر او ور دې هم څه سېزي
که فکر ورته وکړې ژوندیو ته مسخره شي

او ته هم بې رحمه. ته چې نه ده سره لمبه ډ
دا څه مطلب د ژوند شو چې ئې خاورې خاتمه شي

وې وایه لا له وایه څه به پته خوم یوې که
په کم هنر به جوړه د ژوند ورانه ما شوه شي

که تا پکښې څه خوند مطلب لیدلی وي نو وایه
زمونږ په خیال خو ژوند یو د دې ونو د کاروان

گوتم بودا رښتیا وې.. چې پیدا سو نو تباشوې
دا داسې جوارئ ده. هم یو داو دی تاوان

یا لس کاله یا شل سږې په اورافت کښې تیر کړي
آخر ئې چرته تور و تار خانو ته کړي روان

د هغه خا خبرې قیاسونه دي دعوې دي
په عقل چې ئې کوړې خرافات هم یو بیان

لږ عیش. لږ ځواني. مال محبوبه. بس دغه وایه
بس یو خیام خبره نوره رانده دي شاعران

زما په خوا کښې ناست یو لیونی و په خندا شو
وې واوره دا خبرې د باچا د دسترخان

وے دا ژبه دېره یانو، دَ دې خاے دَ بیابان

دانشته په کتاب کښې دَ منطق اودَ امکان

نو ټول ترینه راتاؤ شو ښه خیشته او بسیار مخونه

په سترګو کښې تېر وے خو تندې دُور روښانه.

وګوره لیونیه خلق وئی ته مرګ ته خاندے

دا دې ګښې دَ خندلو څه خبره ده آشنا

لږ مونږ هم خبر که کنه، یار چه په آرام شو

که تا چرته کښې پته وی مونږ لے مامله

منګه
هغه پاڅید په سپین دیوال ئے سپینه کرښه را

وے خان دَ غه جواب دې در ښتے دَ مرګ او سا

هغوی خپشے کړے پاڅے وے "والله که مونږ څه پوهېږو"

په سپین دیوال سپین خط چرته لیدے شی بابا

هغه وګه مرګے نو ژوند به هم دَ غسے روک وو

چه عقل دانسان کی بس دَ فرق انداز

چه سوړ او تیاره نه وی د رڼا نشی لید لے

در وند نظر کښې تل وی یا تیاره او یا رڼا

چه دواړه پکښې راشی رنګ ځانګښت حُسن ترے جوړ شی

که مرګ نه وے، دُنیا کښې خوک به څه پوهیده په سا ؟

تول حُسن د جهانو د مرګ د تورو سترګو نور دے
دا ده په تور جهان کښې تول رنګونه د دنیا

که مرګ نه وُ، ژوند به نه وُ، که بڼ وُ سبنه به څه وُ
که توره بلا شپه نه وے چا څه کاوُ سبا

راځه زما ګلابه، ژوند او مرګ دواړو ته خانده
په دواړو کښې یو هم نه دے د لایق ستا د ژړا

که خواه مخواه ژړا دی نخی انسانانه، خاندانه ژاړه
چه دغه په رښتیا، او که ګُلا کے دے د ژړا

یو حُسن رب ورکړے د چه ژوند له معنی ورکړی
او د غریب تے خاندنه جوړه کړے ده بلا

خزان که نه وُ، نو یو ګلاب، یوه میوه نه وه
که مرګ نه وُ جهان به یو رنګ خوب وُ په دُنیا

که نه وے سمندر نه به جهاز نه به بیړۍ وه
که نه وے بلا توب خوانی به څه کوله چا

یو زهر دی خواګانے له او مستئے له اور نا له
د ژوند چینه د خضر چه یا دیږی په دنیا

انسان د ریدی ګل دے، د ده کور د بیابان
بهار د ده خوانی ده، خو جهان و نے د خزان

که یو منے خطا شو، شی به ړوکم ګلستان

او ړک شی هغه سات دَده دهٔشو دَ احساسه

کم شے چه ورته شی قایم. دا نسم، اوجاویدان

دا ژوند کښی چه څه خوند دَمرګ جوړ که یې په ځان

که مرګ نه دَ جهاد وِن به وُ، د ړوکو ړوک جهان

# یوآن

قسمته کښېنه په آرام کښېنه — سباله ولیکه چې څه دې خوښ وي
د سپین سبا په مخ خالونه کېږده — چرته او چرته تور لا لونه کېږده
تراخه بر خورمه که تراخه دې خوښ وي

خو اوس م یار لږ مسکې شوېدې — قسمته چپ شه ژوند شه په قرار
وخته د خدای د پاره سا واخله — دغه لمحه م که د کال مقدار
سبا شو ستا خو نن که یار د واکدار

متول ژوند دِ ستا دا یو بخرې زمونږ — متول ژوند م واخله خو دا سات پرېږده
نن دِ دفتر که بند او سکې پټې — قلم دِ مات که دا سې مات پرېږده
واوره ، اوه ، واوره ، دوه خبرې زمونږ

په توره شپه کښې د غم غاغکی د رنګ — پرېږده چه رنګ یې تول جهان کړمه زه
د خزان سترګو کښې تصویر د ګلاب — د مقبرې په منځ کښې شرنګ د رباب
جند ځواني قسمت م ستا دي واخله
قسمته ماته دا یوآن پرېږده

سباله تورکه تول جهان په تېرو — خو دا لمحه ما او جانان پرېږده
بس چې نړه ولیکم د زړه په کتاب — د خزان سترګو کښې تصویر د ګلاب

# رنګ

سبه دے په رنګونو کښې زرګیه دخوانئے رنګ
مرګ او غم له ورکی دَجمدانو جاودانئے رنګ

هن هن په ممبراو محراب کښې تقبور کوی
یاد شو ملا جانانو ته دَ کوکے جمدانئے رنګ

زیړه شوه دَ شرمه دَ بیرس مسته بیبانه
وے لید چه دستر کو دخړے پاکستانئے رنګ

سرلنډے تے جوړکړی چنجړک او قولنګی تے کم
توپ چه کله وونی په بډا کښې دخوانئے رنګ

وریږے شونډے وخاندی په تش لاس شمله نیغه کی
کله چه شی یو ته غنی خان کښې دَ خانئے رنګ

داخوستا په دربار کښې قبلولوله | کله شین، کله سپین، کله تور شمه
داخوستا قدم په ارمان کښې زه | په ازغو د قالین په شان خور شمه
داخو تاته خپل خان بنکارکولو له | کله ساز کله رنګ کله اور شمه
داخوزه دَجمدانو یو آواز یمه | خکه خکه یا شرنګ شم یا شور شمه

# کړسې وړې

جنګ ؤ دسنګ کانو، چینه خوبي بې یوړه
وړانه په ورړوشي چه دَغتوشي جګړه

سره دَغونډ ئې چه دَسیلاب چپه روانه شي
کندو، ډنډ وکوکښ په نیزو خوړه کړي خړه

غم د سباکوُ به سبا، نن د نن مزه واخله
خانده خوشحالیږه، وارا کاږه غوړه زیړه

داخوبریو عشق دې چه څنبل کړي بې غرضه
هسې څوک نارې کښ چاله نه ورکوي ګړه

هله به خبرشې چه دکنډې مینځ له ورشې
ژاړې به محل کښ یادَ وې به ډیجونه کړه

بې سره سَرَدَ غني نه دې دَخرشولو سر
خکه مدام سپوره خوري نصیب کښ نشته غوړه

# تصوّر

زۀ يم ناست خان له جانان يو تصور کښې جوړومه

کله ئې ستر کې تورومه . کله ئې شونډې ښکلومه

زۀ يم ناست د غم په ښار کښې د درنا ځغرې پېيمه

خُم د رنګ کښې لا خمار شته . زۀ تې لپې ډکه ومه

د سترګو تو دِ خمار شم . څنګه ښکلي ويښ دِ وکه

زۀ يو شاڅکې خو ځيګر کښې د دريابونه ګرځومه

زړه او زور او تخت دِ داغشت . خيشت . نظر او خيال د راګه

دَ سرور په سُور طوفان کښې دِ کړو دوبه لوړې لمعه

دا يو غم دويشه پاتې چرته پټ تيار کښې ناست وُو

رو رو پټ مِ زړه له راغې لکه مار د ښکار په سمه

په ګهرځه دې رضا يم د لالونو زړو خانه
غم ځه، مرګ م هم قبول دې په خندا نے قبلومه

داخو تا اور اور کے يو دسرور ماته بښلے
ځکه زه دې تور محل کښې خپل خوبونه بلومه

خلق وائی لاړ بلها شو، غنی خپلے مستے وخوړه
زه يم ناست د يار وينستو کښې د نرګس ګلونه بدومه

مرګه نه چرته ګرځېږه زه لا نه يمه اوزګار
خم د رنګ کښې لا خمار شته زه تے لپے ډکومه

# دَسامري محل

شمع نشته دِ رڼا نشته — وجود شته خو سرور نشته
رومیدل او ترقیدل دی — لمبه نشته دِ اور نشته
عجیبه د رند و ښار دے — ستړے شته خولیدل نشته
دے کوخه کښې دَ ملیانو — ښلنکونه دی جام نشته
دا مکه دَ سامري ده — خانان ډیر دی خیام نشته
یاد اکوروُ دَ منصور — دلته خاورو کښې مستي ده
دلته هوش یو مست جنونُ — دلته مرګ خهٔ هستي ده
دلته حُسن د وحدت یو — د عاشق بت پرستي ده
عبادت دَ ستار سرُ — بندګي خه ده دوستي ده
یا خو دا تا تمام ژوند — هم آخر و هم تمام
دلته دا زما خو بونه — هم اَبدُ هم دوام
اوس دا ښار په ورانیدو دِ — جمات شته دِ امام نشته
هسے نوم شته دَ ګلونو — د باغونو سمام نشته
هاے افسوس چه جمدونِ شته دِ — سرسُرور د جمدون نشته
محل جوړ دے لیلیٰ ناسته — مجنونِ نشته مجنون نشته

دے عجب دَ رنګ جهان کښې  سپین غالب دي او تور نشته
روڼ تیدل او ترقیدل دي  لمبه نشته دِ اور نشته
عجیبه لار مِ نیولې  نه پړاو شته نه مقام
نه جنون نه بې خودي ده  عجیبه زما ماښام
نه ښائست شته نه رڼا شته  عجیبه ساقي او جام
نه خندول نه مستول کړي  دا زما ماوِ کلفام
او زما په دِ جهان کښې  دَ رڼا خوریدل نشته
سترګې شته واز لو تښې  دَ خوبونو لیدل نشته
دلته او ګوره جانانه  ستا په غم مستیدل نشته
دلته او ګوره دلبره  ستا د نور بلیدل نشته
دلته رنګ نه رنګیني شته  نه شراب شته نه خیام
دلته شړنګ او غوړنګ نشته  تور او سپور او نسکوړ جام
دلته چغې دي دَ نن  نه سبا شته نه پرون
دا محل د سامري دے  نه منصور شته نه مجنون
دلجهدون د تیرو ډک دے  دلته رنګ د خیام نشته
دلته ټول تشویش تشویش دے  اُمید مرد دے آرام نشته
دے تک تور د غم وطن کښې  اور بلیږي اور بل نشته

عجیبه دَ رندو ښار دے
سترګې شته خلیدل نشته

# کمزورے ځي په شا

چه زور په مخه وکړي سخته او دمي ډېره
ما زغه ورله کمزوري کړي خپل رقیب کاندي اوتره
ډلرے راشغله شي . توپ وچت وکړي په بره
یو تنله دځوانئ په زور دخپل طاقت نشته
کمزورے ځي په شا

کمزورے ځي په شا چه بل له او لګوي شا
کمزورے ځي په شا

وي مرور خت هم شي ته په غصه داسے په قار
په مرچا دده دق دے که وي مور او که وي خوار
بل زور خپل ورته ښکاري خاص د ښځے خلے یار
خپل زور ته اور آفت پردي ته نه لري نشه
کمزورے ځي په شا

یو تنله په خلوړي ، اور د زور ، آفت د جنګ
په ځان دے نه په بل . لیونے کړے دخپل ننګ
که ځادي که بے ځادے دبر جنګ او جنګاله جنګ
غیرت یولامشاله په خپل جهل کښ نشته
کمزورے ځي په شا

# جلال

چه زه غواړم د هيروونه مستي سره ګلونه جوړ کړم
د سرو اوښکو نه کښې شونډې، د ژړا سرونه جوړ کړم
د خزان تياره کړم ورنه، د اميد په سمندر کښې
د ګنجګونه لالونه د غلو پلونه جوړ کړم
چه دا روح م په ښکاراوښي، د رنګونو د خوبونو
که نور نه وي د تيروزه رنګيني نورونه جوړ کړم
چه د خيشت شم زه ليواله، د صحرا مره ذرو کښې
په زړه او بوستانونه، په لکها ګلونه جوړ کړم
چه زه ورته دارمان شم د سپرلي په سپين سبا کښې
بې حسابه ما بناټو، بې پايان غمونه جوړ کړم
تور او سپين زما د سترګو، کله تول کله تلل دي
شپه او ورځ زما نظر دی، ودګول دی او منزل دي
که خندا ده که ژړا ده، دا ځيګر مشغول لول دي
که وصال دې که فراق دې، خپل سره ورته کله يدل دي

چه زه مست شم د دیران سره خیشته کلونجور کړم
د سرو او سبکونه سره شوند ے دجرا سره نو جوړ کړم
چه زه نیت دکتے اوکړم د پریوتی د شکست نه
دفاغ د سترګو ګبرا و د شونډو غرور جوړ کړم
دا چه زه خان له یو تخت د رنګین بادنه ودان کړم
د غلام خواری بدله د پادشاه په رنګ سرور کړم

دا چه ته ئے اے جانانه، دا چه ستا مستی ربنا ده
دا زما مینه ارمان دے، دا زما ژړا خندا ده
د ملا خبرے خو شے، معامله ستا او زما ده
دا داستان دلوګے نه دے، دا قصه د عشق او ساز ده
دے زما سره رکبن پټ راز ستا د حسن او کمال دے
دا زما کمزورے سترګے ستا د خیشت جام وجلال دے

# دا زمونږ غوندې
# دګو کمه لاړ؟

خوش نصیبه خوش قسمته وې منصوره
خلقو جوړ که درله دار څه مزیدار
ما را وړې دې زړګي کښې له ازله
هم منصور هم سرور او هم دار
وایا وایا د رندانو بابا وایا
دا زمونږ غوندې دګو کمه لاړ؟

# زما محترم رور سردار علی خان

## (امیر جماعت اسلامی) ته

داچه ته په سجدو پریوزے اوزه دک دَ میو جام کړم
دا هم زه غوارم فرار . دا هم ته غوارے فرار
ته لټے مغجمان کښې حورے سپینے کل اندامے
زه جنت دلته لټومه . نشتم ګرلے انتظار
تا په قرض جنان ورکړه . زه ترے نغدو سودا غوارم
دلته سبه شوے په بیو پارکښې . که ماښه اوکه بیو پار
شیخه راشه میخانے ته . چه مقصد زمونږ ؤیو دے
ستا د مرګه پس قرار . زما دلته کښې قرار
نور د سوال مقام موںو د . ډیر دا خاموشه یک دے
پوارمان د دواړو زړه کښې کی جدا جدا اظهار
پتنګان دَ یوے شمعے . که بینا دے که شمکور دے
دا خوخکه ده حاجی صیب . لیونے دے دَ زړه یار

# بینوا ته خط

بینوا په هشتنغر کښ ستا یو رور دلته او سیږی (*)
بېرسړے، بېتے سترګے، پټ پټ شونډو کښ مسیږی

ستا قلم چه نولی او بنکے د هغه سترګے ډکیږی
تا چه خپل درد په ژړا کړی، هغه دلته کښ ژړیږی

دلته ناست په هشتنغر کښ ستا یو یار دے په رښتیا
په خانانو کښ یو خان خو، ستا په شان دے بینوا

خلق وائی لیونے دے عجیبه سکوی کارونه
سره او سپین دخانَ ولی چرته کوری زیږ کلونه

د شرابو جام په لاس کښ او ورده وائی حدیثونه
کله غواړی په مسجد وکښ دَ الله نه شرابونه

تول بے توله شان تلل کړی د مرګی او دَ دُنیا
وائی که سترګے د مرګ نه وے ژوند به نه لید لوچا

چه ښه روغ وی چرته جمع د به ناست پکښ حیران وی
خپل غمونو نه بے غمه، او پردو ته پریشان وی

(*) د هشتنغر یو کلی اتمانزی دی، چه دخان عبدالغنی خان ټاټوبی دی.

په غرمه کښې به پوازې چرته شړو کښې روان وي
د ملا د ذات دښمن دې، ډېر خوار به وته د مان وي

مات تو یک د منطق واخلي نسبه وُلي پرې د رسا
عجیبه ورانې خبرې ، مرچکي سره حلوا

ستا په شان دَ ده زړګي م دم خوار سره خوږېږي
په وجود کې ګرم نشته په بخرې اور سوزېږي

زړه مې دک د میو جام دی که لږ رقي نو توېږي
ته به وګوره مې اور دې په لږ تاو سره لمبه کېږي

ستا د هر ترنګ سره هنګ کې یو ستار دې بې بها
ته د نوي قندهار دې د زوړ (۱) دې باشنده

ستا د هر سُر سره ربي، یو شا تار ستا د رباب دی
نیم او سنبیار نیم لیونی دی، مراو شوي شان ګلاب دی

ازغي ډېر شو خا نشت کم شو، وائې د انقلاب دی
زه طوفان یم سمندر یم، په د ځکه ژوند حباب دی

زما خاوره کښې ډېر نور شته، تشه نه لري دا سا
زه غرور ننګ او سرور یم، سره رنګینه م ژړا

ته چه کم رنګ کښې غوږ نیسې د هم هغه رنګ کښې رنګ شې
ته چه مست په ما تن وږې، دې ګنګروشي په شرنګ شرنګ شي

---

(۱) د وادي پېښور زاړه نوم قندهار وُ. دلته یادونه بائی د خان مطلب قندهار نه، بلکه ګندهارا دی. (مولف)

ته چې غم فریاد شروع کړې د بې خوبۍ له ځنګ شي

ته چې توره کړې راپورته د یو سر نو توب په جنګ شي

بل دده په شان به کم څاڅان له رور کړې راپیدا

یارانې له داسې یار، داسې بل د زړه آشنا

ستا په زړه کښې چې کوم نور دي، ما کښې هم هغه ځلیږي

ستا د زړه چینه د رحم، دلته رورد دې چې بهیږي

ته چې ویښې کم خوبونه، زما سترګو کښې غړیږي

ته چې زانګې په کم تال، په هغې غنې ځنګیږي

بینوا په هشنغر کښې ستا یو رورد لته اوسیږي

بېرسې پېښې سترګې، خان ته خاندي اوژړیږي

کلمتنګ کله تکورشي، کله ساز کله ژړا

کډووه دوکښې لړلي، غیرتونه فلسفه

دېرخیزونه رټب ورکړي چې بنا دېږي پې دنیا

چې څه غواړي هغه نشته ستا په شان د بینوا (*)

(*) مراد د پښتو ژبې لوی لیکوال او شاعر مرحوم استاد عبدالرؤف بینوا (۱۳۹۳ هـ ش مړ) دی چې پښتو ژبې ته یې په نظم او نثر کې ډېر خدمتونه کړي دي، او څېړنې (آثار) یې هم چاپ شوي دي چې په علمي کړیو کې [illegible] منل شوي دي، استاد عبدالرؤف بینوا (خدای دې وبښي) تر څو موږ یات مستقل آثار او لیکنو سره [illegible] منلي مرتبه تر لاسه کړې ده.

# پلوشه

هوش دِ دَ علمونو نه جدا جدا روان شو
خدایږ و لیونیه جوړ سم لیونے کیږے
مرګ کښ دا ښکاره راته جمدن یو جاودان شو
زه ور پورے خاندم دنیا، ته ورته ژړیږے

# پلوشه

نن ربابي دخیال دنیا جوړه بدله ده
نوے دِ مضراب دِ نوے لاهو کښ غږیږے
هغه دِ رباب هغه پردے خو نن ئے شان دبل
دا د کلتال دِ، یاره پاخه که کیږے

# نقاب

دا چې زه ځان لیونے کړم، دا زه تنګ شمه د ځانه
شیخ بابا ته لګیا دے، مسئلے کې د عذاب

زه خو دلته په عذاب یم، د دے خپل خود او احساس
ځکه کله په سجده شم، کله او ځښمه (*) شراب

چې بے حسه شم روکیږم، چې احساس لرم سوزیږم
نه طاقت شته د سکون او نه همت د اضطراب

چې حیا پیره نظر او کړم، همه پټ او ښکاره زه یم
دا شراب دے ما جوړ کړے، ما جوړ کړے دا محراب

مذهب څه دے څو رسمونه، مسئلے او منطقونه
او د هغې سوال جواب دے چې نشته د جواب

---

(*) وڅکم، وچښم.

جانان تش د عاشق مینه، د خپل زړه وینه څښل دی

چه د یرو ږے شو مجنون، ځانئے کړ ځان له کباب

رباب څه شے د مرګله ورے او د توت او چه تنه ده

خو چه سوز د آدم راشی مله هنګ وکړی رباب

کله نو کله ر ناشی، کله غم شی او ژړا شی

دا ځیګر دَ ربابی دَے، چه هم جام شی هم شراب

خو دا زړه م راته وائی، دا مله وکی م کو نیږی

چه آخر به څوک اوچت کړی دَ جانان دَ مخ نقاب

# اختر

غنی او خوږ داسې غم ‏ ‏ ‏ نه دارو لری نه دم
کل جهان د ستړی ستړی ‏ ‏ ‏ نښتنه ستړی د صنم
خلق وئی اختر اختر دے ‏ ‏ ‏ ما ته ښکاری محترم
چار چاپیره ساز او شرنګ دے ‏ ‏ ‏ ماله سوز ښها او غم
چه جهلوون په کمید وشو ‏ ‏ ‏ شو هر خیز و هر سره کم
د شهوت نه وحشت لاړ ‏ ‏ ‏ د نیکئ سرور شو کم
د ګناه نه مزه لاړه ‏ ‏ ‏ پیکه خوله شوه د صنم
نه په بام د لیلی مست شوم ‏ ‏ ‏ نه سایه کښې د حرم

خلق وائی اختر اختر دے
ما ته ښکاری محرم

❖

اختر خو سترګے دوه د دلبر وی ‏ ‏ ‏ مسکے مسکے شان پکښې نظر وی
ایمان چه زړه یو ړک د درنا وی ‏ ‏ ‏ مرحبا کعبه وی مرحبا کوثر وی

خوار دَ شعر همه احساس دَی | چه خیکر تش وی تش دَ اترو ی
حُسن خو ستر کوکښ دَ عاشق وی | رنا دَ دوی رونبان دِ لبرو ی
رنګین کلونه، شکے صحرا شی | تش دَ رنګو نو چه دَ چا سره وی
جمدون یواورشی تور بلا شی | چه بے سره نے ما نه ګری
جانان په خنک کښ خمار په سترګو | دوصال مهر ختے اختر اختروی
خونه دِ دلدار ښته او نه خمار ښته | دَ دا سے زونډ به بنه سفر وی
لار بدا شو جور غنی خانه | دکوائے ما او دِ آخر قرار شو

دَ رنګینئ وار دِ لا ډلو تیر شو
تره سامان دِ اوس به سفروی
زه نه یریږم دَ سفرونو
دَ جمدون هره لمحه سفر وی
خوږ به دی م دا شوم قسمت خپل
چه یا سبا دی یا ما نه بیګروی
ځوانی مستی م چه کم خوا لاړه
وربیسے خدا یږ دهم هاتخمه
لاره دَ علم دی که دَ تورتره دی
که تورغمونه که سور سفروی

# تپوس که جواب

وایا وایا ملا جانه     ژوند تپوس دے که جواب
ژوند وصال دے که جنون دے     که آرام که اضطراب
ژوند امام دے که غلام دے     که ممبر دے که محراب
که یو مست غونډے جهان کښے     رنګین خوب دے د سراب

که لمحه د نور کمل دی
د دے تور تاریک جهانه
ژوند تپوس دے که جواب دے
وایا وایا ملا جانه

ژوند فرعون دے او غرور دے     که جنون دے او سرور دے
د نمرود د زر و تخت دے     که رنګین مرګ د منصور دے
د احسین مسکے مسکے دے     که یزید مست په غرور دے

د ابهار دے، که ګلاب دے، لږ پټ شو د خزانه
ژوند تپوس دے که جواب دے، وایا وایا ملا جانه

ژوند یو مست د میو جام دے     که یو مات د غم کچکول

لیونۍ د خیام دے | که اوبنیا ږغ د بلبل
یو رنګین باغ د ګلونو | که د اوږد ازغو شپول

که یو تیښته او فرار دے
تښتیدلي دي له خپل ځانه
ژوند تپوس دے که جواب دے
وایا وایا ملا جانه

ژوند یو خیشت دے چه خوریږي | که جمال چه خاورے کیږي
داسا زخپل مرګ ته ګوري ساندے (*) | که یو اوږد دے چه بلیږي
د دے تلو، مقام، دمه شته | که دمه نه سا تښتیږي
منګوټي که د ارت دي | څه دکیږي څه تشیږي

که یو نور دے چه خوریږي
ناخبره د خپل شانه
ژوند تپوس دے که جواب دے
وایا وایا ملا جانه

---

(*) ساندے: دمري سنا یینے.

# تلے مرګ

به لګما کاله اوده وي — يو ساعت له را بيدار شي
خو لګما به نور او ده وي — چه روان د مرګ په لار شي
شا ته تور يو سمندر دے — مخکښې لا تورې بلا ده
مينځ کښې يو د شبنم څاڅکے — په غوړځنګ لکه آبشار شي
د آدم زړه د کټور دے — د ده تورې دريابي ده
دے تلو دا سے راتلو کښې — دے خوږ شي خمار شي
وو پکار چه ساعت ګړند — په ژړا ژړا تير وے
که دے ډير په ليلیٰ مست شي — خو آخر به د مرګ يار شي
نه په تلي مرګ ستومان يم — نه راتلو نګي نه يم
زه به تل د غمے خاندم — که په اور شي که په دار شي

پاتې پاتې د قيصې شوې — د دوزخ د حسابونو

دغه شي د ملاجان دې — زه خو ستا د سينې يار

او که وې چه سوزم، سوزم — عشق کښې نشته انکار نه

زه خو شيخ ملا خو نه يم — چه نه کار کوم نه انکار

خو د سولو دېره نه يم — ساهو خانګه د شاتوت يم

رانه جوړ که يو رنګين — او او نکين غوندې ستار

که يو تنګ دی که زر تنګه — سبه په سر کښې به غږيږم

يو قطره ستا د درياب — يو ښکلا وستا د خمار

اې زما دستر کو توره — دا يوه خبره کښې واوره

دلته سوې يمه ډېره — نور د مې پرېږده په قلار

# لټون

غرمه د اورې
لکه شپه د ژمې
يو خاموشي
او قلاره خوره ده
د کور کور کوکو
او چپ چاپ عالم هو
وخت خپه ناست دے
په رکاب سور دے
دُنيا دِ خپل زرگى ته غوږ نيولے
د مرګ او ژوند حساب کتاب اورى
فضا کښې کله يو مسکے تو ب شان دِ
لکه په خوب کښې ځوک رباب اورى
او زه يو ځان يم
په خيالونو کښې ډوب

دَ خپل ارمان

تلاش کښې ګرځمه

یو روک

مجبوره

مسافر

یم روان

په مزکه پروت

په آسمان ګرځمه

ما دِ هم خپل زړګی ته غوږ نیولے

دړوند څه وجه څه نساب لټوم

درد له او مرګ له څه سوب(*) ګورم

ابد کښې خپل د هوش حساب لټوم

دَ ولے ولے

په درياب کښې روک

جام کښې شراب

او په شرابو کښې

په سُور کتاب کښې

د جمات د تاخ

(*) سوب: سبب ·

زه مرګ اوړوندله
یوتږ ون ګودم
چپه چپیا
او خاموشۍ
کښې زه
شرنګ دستار
دتال مضمون ګودم
چاپیره رنګ کښې
شنو کمترو کښې
خان له جواب دچل جمدون ګودم
زه لیونے یم، لیونے یم، دښتیا
په میخانه کښې افلاطون ګودم
خان ته چه ستر ګے مے راواړولے
بس
مرګ
او نیش
وږ یمه
زه لیونے یم، لیونے یم دښتیا

دمرګ په سترګو کښې جمدون ګورم

غمه دَ اورې

لکه شپه دَ ژمې

يو خاموشي

يو قلار ے خورد ے

چرته کښې لر ے

يو بڅر ے

دَ نور

ستور ے ؟

که لر ے د صحرا اورد ے

ما ته ورو کو

پلوشو

کښې وائی

که غر د لوئے

په سر ئے لار خوشته

څه ؟

که جمدون

يو روک

ساعت دِ
دهوش
یو
ابدی
دَ ده، دلدار خوشته
زړګیه، ځان تنګے که ما تنګے
خنکه ځان خلاص د هر جنجاله کړے
زړګیه، اے ته زړګیه زما
ځان کښ مشغول او ما خوشحاله کړے
خوستا نه منم
غرقیږمه
سم، په رښتیا
لیونے کیږمه
د اضطراب په تور دریاب کښ زه
اوس سرسری یم بیا ډوبیږمه
په تورو ویرو کښ ګرځیږمه
دلته په خپل اور کښ سوزیږمه
په جمدون تورے خاورے کیږمه

په خپلو وینو کښې ډوبېږمه

غـرمه دَ اوړې

لکه شـپه دَ ژمي

یو خاموشي یو تلا رے خور دے

چرته کښې لرے

یو بخـرے دَ نور

ستورے، که لرے د صحرا اور دے

ماته وړوکو پلوشو کښې وائی

که غر دِ لوئے په سرے لار خوشته

څه که جمله یو ګړۍ ساعت دِ دَمو ش

یو ابدی دَ ده دلدار خوشته

# کاروان

يو نيم ژوند د مستۍ دی، يو سرور دی چه شرنګيږی
پردے تولے په خپل ځا وی، پاکے شے په سُر غږيږی
هر يو تار ئے مست بورا دی، چه کلونو کښې بو ښکيږی
هر يو تال ئے جنت په تول کښې، زير و بم پکښې ګډيږی
خوشحالے په چور لکونو، په شاډولو(*) پکښې ډانګې
يو هوش مست په خپل سرور کښې، د خمار په تاله ئے ځانګې
يو نيم ژوند خوږ او بے نوره، ګډ په شلو خپو(**) روان دی
هر قدم ئے يو تيندک دی، تور په غم ئے کل جهان دی
هر آواز ئے د درد چغه، په خپل اور کښې بنديوان دی
د آرام په ارمان سوے، لکه غړځته ميدان دی
د غمونو سيلابونو کښې روان يو ګنګهر دی
په جهلو دوزخ کښې پروت، نيم ژوندے دی او نيم مړ دی
يو بل ژوند د شمعے ژوند دی، لا به مړی لا به سوزيږی
هله نور او رڼا راشي، چه په سر ئے اور بليږی

(*) شاډوله، يو ډول ملي نڅا ده. (**) خپو: پښو.

ے یو اوږدی سوز و ل ګړی ، لاس د زړه په سوزیږی
بل د ښمن د بل غلام وی ، ځان سوزی بل ته ځلیږی
نه نور دَ ده انعام دے ، دَ قسمت ګوتو ور کړے
نه اور د ده جمدون دے ، چه جمدون دے لګولے
ومره قسمه دَ ژوندون دی ، خو بچی چه د آدم دے
وک په یو ځائے کښې لږ لو دی ، څوک په بل ځائے کښې لږ کم دے
ډ کاروان کښې قتول روان دے ، که رانده دی او که سم دی
وک په چغو څوک مسکی دی ، څوک خمار کښې څوک په غم دی
فله یوه روانه ، یوه لار ، یو ے منزل دے
تر مخکښې څوک روان دے ، سپین مشال دے او ر پر بل دے

## نه کیږي

چه په خاځکي کښې مستي د دریاب راشي
لکه ویر کښې سُر او رنګ د رباب راشي
صحرا لاړه شي سمندر کړه خندا له
او چینې سره یارے له سراب راشي

لکه غم د خوشحالئے کړه میلمه شي
یا په مرګ قبر باندې وله شباب راشي
لکه خوند له د ایمان د اوربے ستر کو
په جمات کښې بګل، ساقي، او شراب راشي

لکه اوره، اور زړګے په نمر منین شي
او دغر زور او پښتے له حباب راشي
دا زما او ستا یاري د دے عجبه
په شبنم کښې چه طوفان او سیلاب راشي

# راکه ساقي راکه

راکه ساقي راکه، شراب نا(+) اوړم په کار دے
زړه م تورے خاورے هام(*) تاو رانه انګار دے
پرېږده چه ئے وچوم، دا زړه نه دے یو سزا ده
ساز سرور نے رک شو، بس یو تهر بے قرار دے
ده به زه ګرځولم، مینولمه، مستولمه
اوس م وینه څکي، بس تش یو دېره دے یو آزار دے
میړنے ګډا شوه، اوس نه تال دے نه شرنګار دے
راکه ساقي، راکه، شراب نا اوړم په کار دے
نشته هغه زوره سرور ساقي ستا په شرابو کښ
باغ نه حسن لاړ، رنګونه کم شو په ګلابو کښ
واچوه سرور اوړ د جام کښ راکه چه مستي شمه
مست لېونے نه شوم هسے شمار شوم په خرابو کښ
دا د څه جمدل دے چه م هوش پکښ په دار دے
راکه ساقي راکه شراب نا اوړم په کار دے
بهار راغے، بهار لاړه، زما زړه سوے ګلزار وو
یو تباه تالا ګلشن وو، په خپل اور کښ ګرفتار وو

(+) نا: نه (*) باهر: بهر — دباندے

یو بې کوره، بې آرامه، سرګردانه مسافر دم
نه زړه یار جانان د چادم، نه ملګرته دلدار دوږ
جمدن تش د جمدن دردوو، هغه ښکلي جانان ندوږ
هر نظر چې دسترګو، نوي رنګ نوي خمار دوږ
زړه م توره ادیره ده، د تیارو تاریکو ښار دې
راګه راګه ساقي راګه، شراب نا، اور م پکار دې
یو بې حسه، دوب قرار دې د مرګي ښکلي مکان
که ساوړني، اور م وړني. د تیارو دغه جهان
تور د سترګو کښې نشتې چرته یو د اور بڅرې
یو بې خوده چپ قرار دې، د ده کور د لامکان
نه دا سوز، نه دا تالاش شته، بې جانانه فراق نه
ابدي وصال، وصال دې. مرګ دې داسې ښه جانان
د ده کور توري لرې د غمځلونه سپېتنې دي
تور لاسو کښې نه رحم په غریب سوي انسان
د ده ملک کښې دوب آرام دې، یو بې خوبه د خوب دې
روک جمدن، روکې احساس، یا صلیب لیونتوب دې
راوړه. راوړه چې فنا شم، زړه د ژوند م بې زار دې
راګه، راګه ساقي راګه، شراب نا. اور م پکار دې

# دیوداسی

په کوکوړے کوګوشتکے، تو رانغے په تنانه
پچپو چپو مستی به دَ نسیم چپو راوړه
سحر راغے لکه زیړے، دَ خندا او دَ رڼا
غُنچے تولوړے مسکا کښې، نن نسیم کښې نشه

وخت یو بل پراو پوره کړه، یوه بله شپه په تلو شوه
چاکړه تیره دَ چا غیږ کښې، په چا تیره په سلګو شوه
ملم تیز کړه په ناستے، د رنګونو په جهان کښې
هوش او رنګ به مے یو ځاے کړل، جوړ دَ ول مے تصویرونه

د زړه غم به مے ورخور کړه، د چا نکلے په احساس کښې
مړاوے مړاوے نظر شو، سوی سوی نښان ړنګونه
که تصویر ئے لیلیٰ جوړ کړم، دَ شیرین که د منصور
دے هم پو سترګو کښې نږیم، زما درد، زما خوبونه

تور او سور دوه رنګه واخلم، دے چنګیز[1] یا تیمور[2] جوړ کړم
دَ دوئ سترګو کښې دا قهر، زما اوږمي توپونه

---

(۱) چنګیزخان (۱۱۶۲-۱۲۲۷ ع) ، (۲) تیمور (۱۳۳۵-۱۴۰۴ ع)

دَ دې رنګينو ليونتوب لوړتيا، يو پرې راغلې عجيب کينه
نه ليلى وه، نه مشغوله وه، نه هيرا وه نه شيرينه (*)

خيشت ئې نه وو، يو ارمان وو، چې شاعر خوب کښې ليدلې
مراد ئې سترګو کښې عم وو، خمارې دَچا په مينه
هر نظر هر حرکت کښې، ليونې دخوائې تال وو
تول وجود دې يو سرور وو، يو رنګينه ځوانه مينه

ما نه وې اې معصومې، ما نه او کړې زړه څه يم
يو خوار او دُبت ريبنتيا، دَ کمينونه کمينه
ما و نه دحُسن لوړې، نه رنګينه شهزادګئې
ستا په يو سوي نظر به، زر تختونه شي قربان

ما ګوا اې دَغم ميني، نه دَکلو ښايسته
دخوا په ستړو کښې، دا رنګونه دخزان
ستا داسونګې، سوګنه دي، ارمانونه دي مستي دي
ږونه ميخانه، ستا هر ځنګلې کښې طوفان

دَ نازک نيازبين جهان کښې دوه مره تور او درانه غږونه
اَدَ سپړه ګلابو ځانګړې، ستا خو لړي دې خزان
تورې شلې پرې دې پرېږده، دا پرېږده دغم کړه لړې
چې خندا راشي ګلشن ته، چې روښانه شي جهان

(*) د ليلى مجنون، دشيخ، د هيرا رانجها او فرهاد و شيرين د قصې مينې.

بت ته نه ئې د بت وينزه، ستا په سترګو کښې رڼا ده
نه ساقي ئې نه شراب ئې، نه خمار ئې نه جانان

دومره خيشت آزديږه نه، دومره مينه بې جانانه
ستا غاښت چه ليدې نشي، نور روند شو دې جهان

وفا، مينه او ارمان، لکه نور تا کښې ځليږي
يو غمګين ارمان پټ کړې، ستا د شونډو رنګين ارمان

راځه خوا کښې زما کښينه، زه هم ستا د ارمان روديم
ته هم ګل د بيابان ئې، زه هم ګل د بيابان

زه هم ژوند مې خوږ کړے، درد ولے، ژړولے
ورته مينه دواړه ژاړي، غواړي مينې له جانان

ما ته ئې اوګل مسکے شوه. سترګې ئې ډ شوې له اوښکو
تورتمه د ژوندانه راغونډه کړه، ځان له غلې شوه روانه

خپل اميد او خپل ارمان ئې ورته ستوري د کاروان شو
دسرو ګلو په تلاش کښې، په صحرا کښې سرګردانه

د رقاصې په قدم کښې، د ګل ښائستې په انداز کښې
يو دنيا د سوز او حسن، هوش کښې ژر که شو زما نه

راته ئې زړه کښې يو بل درد، يو رنګين شان ارمان پريښود
يو زرين د نور نښتر کې د نور رونو د جهانه

# منم

ولاړ ومه په اور کښې ملوے اور زما قسمت
لمبې قسمت نه وے وے لمبے زما د میّت

نه بخت او نه کمال منم نه توره نه جلال
یو ستا د سترګو خیال منم او ستا د شونډو وست

نه ګل نه دلربا منم نه حُسن نه بهار
یو ستا د خندا راج منم بے تاج بے سلطنت

نه چل او نه تدبیر منم نه عقل نه تقدیر
یو زیړ د سپرلي ګل منم ضامن د یار د بت

# ګلونه د ورخاري

ګلونه د ورخاري — درنګ ښاغلي ولاړي

سحر په خند آمیر کړي — ما بنام تول وی ځخه مراوي

ګلونه د ورخاړي

اغښتي(۵) ئې سل رنګه — خندېږي ښکلي په ښنګه

سحر ځواني مشرنګه — او ما بنام ولاړ وي ژاړي

ګلونه د ورخاړي

ځواني د يو سحر ده — چه ورن ديوے وهځے

بيا هم مانه نزان دي — چه هر سحر خندان دي

او نه يو پوسته غم ته — دلبن ساعت تور تم ته

آدم داو ښکونوم دے — په ګلونو پسے ژاړي

ګلونه د ورخاړي

څه ښکلي ښکلي خاندي — رنګينه دي تابان دي

ښائست د ګلستان دي

غني ورته هميش حيران حيرانستان ولاړي

ګلونه د ورخاړي

(۵) اغښتي [illegible]

# ځمه ، ځمه ، ځمه

په رڼا باندے مئین یم خو، تیارو نه نه یریږم
که پښیمان په ګناه نه یم، پښتونه غادره کیږم
پرون تخم وم، نن ګل یم، سبا بیا به خاوره کیږم
زه د بادیو چپه یم، په صحرا په باغ تیریږم
کله باد کله باران شي، کله اور کښې او سوزیږم
خوځه ځم به مخه ځمه
که اودریږم مه روکیږم
چه ورپېښ شم په ګلونو، ګرم خولے دعطر دکه
خوږ وږمه ئے چاپیره، ورته خاندم خوشحالیږم
چه د رنګ په جهان ورشم، یو رنګین د بودے تال شم
رنګارنګ رنګین جال کښې، سپینه شمع شم کدیږم
چه د مستو په محفل کښې، په ساقي او په جام ورشم
لیونئے شانے خمار شم، په خوبونو کښې خوریږم
چه جهان تیاره تیاره شي، اور شي تنده شي عذاب شي

زه پښتون د پښتو غږ شم ، نه یرېږم نه نرېږم
چه د علم په جهان کښ ، د اوښیار و خوا کښ کښېنم
هم مغوی پورې خندا کړم
هم په خان پورې خندېږم
په فکر د نولیو نے شوم ، په لټون ، لټون شوم ستړے
خو آخر د غے له راغلم ، نه پوهېږم نه پوهېږم
خوزه ځمه ځمه ځمه ، تل روان یمه په مخه
یو مقام ته ور روان یم ، یو مقام ته به رسېږم
او په لاره چه څه راغله ، که تیاره وی که رڼا
زه رڼا کښ یم خوشحاله
خو تیاره نه نه یرېږم

# یو ټکے

دا لکه زړه ګټاه، موږ دا یو ټکے زده کړے
که تک تور دی هم خیښته شی، بار چه ستا نے د زنخال شی

خښته خښته ډکه خښته، بے دره که بے زبان
دَ کُلال کورے چه وشی، دَ کُلال د سترګو خیال شی

یا دَ چاوړه دیوکه، یا ګلاب کوتو ګښ جام شی
د خیام لونګین خیال شو، دَ ساقی رنګین جمال شی

# بامیان

یو خوا د قدرت جمال ، بل خوا د انسان کمال

زه ئې لیونی کړمه ، چار چاپیره نور دے

نه دِ بامیان نه دے دا (*) ، دا خو کوه طور دے

دلته د فطرت کمال ، دلته د آدم جنون

دواړه په ضد شوي و ، جوړ ے که ترخه افسون

هر خوا چه دِ لار نظر ، غروَنه ، نا ، کلونه دي

هر غر دِ دریاب د رنګ ، یونا په زر ګونه دي

بل خوا د آدم د ژوند ، مینې او ایمان قصه

هر غار کښ نغمې د عشق ، هر خوا د جانان قصه

هر یو غار کښ پروت خاموش ، ساز یو د نورونو دے

داروک او ویجار جهان ، کورم د نیکونو دے

دے تالا جهان پسے ، دے د پښتونستان پسے

دے تباه دوران پسے ، دے شهید جانان پسے

دے سوی ګلشن پسے ، دے روک ګلستان پسے

زه د زړه په سرو وینو ، ژاړمه پرې همه

زه چه دته کومه ، ستا لمبه سو ځیږمه

---

(*) بامیان د افغانستان په [illegible]

# سپرلے

اوګوره جانانه دتیارے نه رڼا جوړه شوه
نوے سپرلے راغے د ګلونو دنیا جوړه شوه

زمکه لکه شاړه اَبۍ بوره ، وږمه سپوره وه
چرته مروره مستي تلې د خپل کوره وه
ها نئ غُټه نه وه په هر بوټي د مرګ سوړے و
شرنګ دَ زړونډ وغلے ، میخانه نے تشه توره وه
یا ساندے او اوښکے ، یا تے سپینه خندا جوړه شوه
اوګوره جانانه دَ تیارے نه رڼا جوړه شوه

یا جهان د ارمان و ، یا رنګین نشه رنګونه شو
مینه زو مسکے شوه ، په خندا وریته ګلونه شو
مست شو ساقي دا ، کل جهان ئے مست بے هوشه که
هر یو سا امید شو ، هر نظر کښ خمارونه شو
هر قدم کښ تال په هر خُلیه کښ مُسکا جوړه شوه
اوګوره جانانه دتیارے نه رڼا جوړه شوه

بیا سپوږمۍ کاسیره شوه، په سترګو اشارې کوي

بنګلې، نوې مستې، شرم شرم کښې نخرې کوي

مرخوا مینه مینه ده، شیرینه ده، رنګینه ده

رنګ د حُسن یې شو، مست شو خاندي مسخرې کوي

خوب نه چرې خمار شو، د فراق نه لیلی جوړه شوه

خاندي غني خانه بیا دې ورانه دنیا جوړه شوه

# مابنام

اوږنځیه راغله په مابنامی کښې — خوږ و غمګین خدایه دا تور مابنام شو

اوګوره سازبیا. مهین مهین شو — رنګین رنګین شو. را ښکلے دام شو

هوس زلمے شو. شوده زړګے بیا — خان کښې رنګونه د مستۍ ګوري

زه په ژړا شم. چه ورته ګورم — دا ژوند خوږ مے لا زړه تمام شو

دخوانۍ مشرق او د آسمان تندے — زوړ مزه کا. اوږدے مزه کا

زه سم را وینښ لا. نه وم د خوبه — چه نمر زیړے شو اوږد مابنام شو

نظر کښې لوپے زړه کښې ارمان — خود کښې خوبونه د بل جهان

دغه بوچړنګ ازغی م لاس کښې — نیم د ساقی دی نیم د امام

خه د خودۍ نه کي[1] مستونه — سوزنې وریتی م داخپل اوروینه

ما ورته خاښکي خمار کښې ډوب که — خانه خجانانه. او چت کړه جام

خوده بے خوده هغه سرور ه — چه ستا علاج دے. نشه په جام کښې

ناپیمانه[2] کښې د ساقی شته دے — نه په خندا کښې د دلا رام

خوراغله اوږنځیه او ساز مهین شو — امید روښان روښانه په تور مابنام شو

راکه چه وڅکم اولیونے شم — د نن ثواب نے تول د خیام شو

(۱) کې: ګوری. (۲) خان خاۍ خاۍ - نه ه د - نا - په بیهه را وړی دی.

# سپوږمۍ مسکۍ شوه

سپوږمۍ مسکۍ شوه وے دا، تول دَ خه کړے.
مینه کښ مره، خوږ تلل نه کوی
په سوبهار کښ د کلونو حساب
خاندۀ مستیږه او چرچے کوه

دَ دے لکها سوالونو دے جواب
څه کښینه کوډے دَ غاټچے کوه
دَ زړه وطن کښ دَ سړاړه نشته
د فکر تول، لکه بالول به څه کے

دَ یار حساب دَ خپله یاره نشته
سپوږمۍ مسکۍ شوه وے دا تول دَ خه کړے
خاندۀ سپرلی کښ خوند تړل نه کوی
مینه کښ مره خوږ تلل نه کوی

# چینجی

پسے مې د بابا کړے امید ونه دخپل ځان
کړه جوړ مې ځان له کور
یو باغ تے نه چا پیر په کښې میوو د کل جهان
کلونه د هر لور
په هر قسمه میوو کښې نوے نوے قسمونه
انځروکه املوک و، که انار وکه بادام
عجب عجب نمونه، لا عجب پکښې خوندونه
خرما هم ثوابونه، جنتونه په آرام
څوکاله مې خدمت ورله دکوددسرے وکه
ما وے دے بدل کښې به میوے خورمه ملام
ما دهم پیوا آشناته به دکړ د شکو رونه بدمه
سه شوی په غوروکښې کرپنلی کچه بادام
یوکال خے خرخے او اشار غوندے شروع کړے
چا دوه دانے چا شل اوچا په مخه انبارونه

بل کال ئې نقشې جوړې دَ جنت د نظاره کړې
هر خوا ته بس ګلونه او ګلونه او ګلونه
سپرلې نو جنّت ؤ یار وعدې دَ وفا کولې
هر ګل یوه وعده هره غُټې دعا سلام

باغچه د بوټونه ده، منارده ده دَ امید
هر شاخ د میوې ډک دیار دَ مینې وؤ پیغام
چینه وه، که چېړه وه، بابا سیند ؤ، که لښتې ؤ
هر ځا خلکی دَ اوبو کښې راز د حُسن و دوام

هر ځا خلکی دَ اوبو کښې رنګ دَ حُسن د جدون ؤ
ارمان دِ هشنغر، د بخارا چین ماچین او شام
او دا فصل ئې کوره، د ګلونو نه میوې شوې
اول ئې خمار بیا دَ طاقت جوړ که نظام

چه ستر ګو ته رنګونه ؤ، نو ژبې ته مزې شوې
هر څوک پوره ساقي که وي خیام او که امام
او دا ئې ملاجان، شابه که او باسه شکرونه
دا شکر خو زما نیکه هم نشي پوره کولې

رنګونه او ګلونه، ته نخښې خوجها نو نه
خو زړه مِ خو تکنئ ده، او مضبوط دې پې بڼې سنبلي

اوائے د ښا خلکو ستا مړ ځاځکے دریابو نه
سینلونه ستا بې شماره، ځه بس لږه شم د کولے
او ستا په سنجی د ړکښې خوږ ورینږی امبارونه
د تشو په کچکول د سړو مهرونه دِ لګولے

دا اوږد غنی باغ ته دا په کمه باندے لاړے
میوے چه دِ بخښے شوے نو په چا دِ او خوړے
او داخنکه میوے چه کربورې د نزې شو
په خټ دِ لګیدلے دے ټکرے منږے زیړے

هغه وکے یاره واوره چه میوکے په پخیدو شوے
او بنکلے دا مے بنکلے وړه ته صبر کول ګران
په وَنو کښې پیغلو کو دَ وصال سترکے وهلے
په مرګ پورے خندل وه، ګډ یده وړه ته خزان

نو راغلے پرکے چنجی، یاره په هر غنچه کښې دیره شو
په رحم کښې داکوان، دَ غلا او چل پروفیسران
په ناکو په پتنګو، په هر څیز وړه حواله شو
دَ دوی په کور اختر شو، او نجا په کوړ تالان

الغرض، که شلتالو وو، که مڼه وه که املوک وو
ګډه دَ آبے باج

د پوست لکه ریښم خوږ شیرلو تیره ډوک یو
او ډیر نازک مزاج
دا ژکبن چه دانه وی د ده موږ پکښ لنګیږی
نیاز بینه د جهان
دا اېل ، د آفت خم نه میوو بانده غښتیږی
د سیلی نوابان
سری م ور خواره کړه ماوے غوارم دا ساعت
با بو صیب د داره
که اس ، که موتر غواړی ، پکښ زړ ی دار خصت
سره د پچکاره
سری به تله راتله د بابو کرم وو د کان
منت ، زاری ، سوالونه
دے مینځ کښ لکه نادی تر چا پیره با غوانان
کول نے منتونه
بائیسکل به تانګه کښ ، کله بس کله موټر کښ
سری به م روان د
منت نے منچرته ، صبب دو لے نواب زادګے د
موږ ته نے نقیبان

آخر مې وې سړيته د روپو نوټونه بوزے

د افضل ربّاني دے

ايمان ئې بس په دغه شين تصوير د خپل بابا دے

سو چه پاکستاني دے

چه راغے بابو ګل، په رنګ او فکر بنا پيرے وو

پوره په کمالونو

په عقل لږ ميخين وو او کړ بوړه وکښې نړے وو

خوښکلے ئې پتلون وو

چه دار مدار وشوے، د ښه وايه کنه خان

چه تا ته څه تکليف دے

قسم دے په کار مړه شو ګرم ګرځي افسران

خو زمونږ سړے شريف دے

سړے خانداني دے ډير خوښ دي شلتالان

په واوره کښې آمونه

په کله کښې لم لګي او په چرګو کښې پستان

پاسته پاسته ورنونه

ما وے اے بابو ګله، شلتالان خو دا دي ډيرې

خو ډک دي د چينجو نه

که یې خورے آوازونه به دنوی پورته کیږی

بیګاله د بینجونه

ما دے د بوډ زویه ګوره څکوره چه غونځیږی

څار به لکه سیټهان

په خیټه سبه ماره دی غوړے خیتے نے ځلیږی

تازه پاخه توتان

میوے یئے شوے د دوی زمانے تش کړاو تاوان

لنګیږی او ډیریږی

چه رزق ترے دوی او خوری زه به څه کړم بیابان

سرے پکښی پریږی

ما وے سره یه زړ ورله څه راو باسه علاج

فوځونے ډیریږی

د باغ نه م شوه جوړه مقبره د سکه د راج

قبرونه دی زیاتیږی

هغه د داچینی نه دی محپان دی د میوے

دی عام په کل جهان

د ډیرو باغیچونه دوی کړے جوړے ادیرے

کړی ننغ پکښی باغوان

چه پوخ شي ورډ اوګوري په هواکښې الوزيږي

ماوے دَبوړے زويه ګوره ګوره چه غوغيږي

زَړه دے د پاره زمي کښې مونږ والے ځکاره کړے

دارونه وړوا جل وو

لمبولے په سبه شان موځانګے غټے او نړے وے

هم علم هم آکل وو

چه داتے خَنګه پاتے شو په دے بانده حیران یم

خوږے دَ دله شي کښې جوړ په ژمي کښې سا نه وه

ماته چه څه کښې سا وه آخر اوړل مال دَ رب شو

او سبه دوه چه دِ خلاص کړل په نصیب به دنیا نه وه

اول خل چه به راغلے نو دَ چرګونه دِ خلاص کړم

چرګ مے م خسمرړ دے، پوار او نقصاني دے

اِيالے کمزرے سپي او پیشوګان دِ واړه يو پهل

بنګله کښې بس يو زه يم او يو فضلِ ربّاني دے

او ياد دِ شي چه راوستل جيانه ونه دِ امداد له

ګني دِ نه خطا شول خو دِ موټ راله خروب کړل

دَ ميښو دِ کتاکتو دَ غمه دِ کړم خلاص

غوايان دِ ته دُعا کئ تا دمه دمګ په خوب کړل

---

(۵) واله : وهلے.

دَ سوتو نه اوزگار دَ پاکے ښنکلي مو دېره شوے
ښخپله کار دويران
خاموشے په غوجلوکښې دَ غوا مينبو نارے شوے
څه خوند وکه جهان
څه دَ مزے کار شو چه دَ دولسونه دېرے شوے
اے پلاره دلقمان
دالمال دَ کوره چه، چه دَ نوؤنه زېړے شوے
کامل دِ اُستاذان
په بل ځل چه په راغلے، نو لنډ بو چے دِ يو رل
غوکړے کوم ښخپله
بخوا به غله زماله کوره لرے تښتېدل
اوس زه تښتم له غله
بوچے په انډرينو اولنډے په مالتان
دمېږ و دارو خلاص کړل په ميره کښې پېشوګان
خاني شوه دَ منګکو (*) يو برېتو سترګکښې خان
څه ښکلے بنيادي جمهوريت نے که روان
خمبے نے پېتے يو رے، بهر بنے دى اماني
اوس قبض دى دَ لوګے نه دَ فضل رَبّاني

(*) موږ کو.

بابو عالي مقام يو خو پښه وکړه نور

د خپلې پچکارې

چه نه کئ راته څوک دا دنيکه د مال سپغوړي

او خلاص شوم د خوارئ

دا خو ړکي دي پاتې صيب د د غم م خلاص که

او نزکاريم لکه خان

چرګان دي بيا کنه شوي سړې بنګټه خپې پاس که

خيشته لکه د خان

بابو صيب وګچه دانوي دارو امريکني دي

په نوم جهان صفا

ئ مال خيراتي ډيرڅه انګريزي څه جرمني دي

خو دا پکښ اعلیٰ

دارو نه دي دا خان، بنډهٔ بوتلو کښ وبا ده

يو اور ډيوانګار

يو ماشے به کئ بل ته دا قيصے تر سکل آبادهٔ

او تول به شي فرار

وړوکی صاحب وبنے بنے پچکاري د مونږ ډېر کړي

يو ځل نا خوږه واره

---

دا د ايوب خان د ورپلار شعر دے او هغه ورپلار کښ نواب

کالا باغ زمونږ ګورنر وؤ .

خونه راځي قابوکښ، داخه شي دې بنځه مړې

خوارې پې ده بيکاره

بابو صيب وکې بس پياخو علاج ئې تبر کې دې

خشاک خه خيږي ترانه

ميوه دِ او خوږه سرداد لکما روپولوکې دې

قبلئې ئې افسران

او خانه ته ميوې خه کئې تهيږ ديږ قبض کُشا دې

مزاج به دِ تازه وي

سر کې وي بنه خوشحاله چه نه تش وي او نه ډک

او باد به اندازه وي

ورځه خان په تهيږو، رنګ شه روک دَ آلوچې

تراوه مر دار انار

خو کئې به کئې په خپله نه کنله شته نه بوچې

بيکاله دِ دې وار

چه کله کړې په تهيږو وکښ مرچکي شي لونګين

ځه دېرې مزې شي

دَ لوئې نه تو به جوړه کړي، دَ روګي نه غربين

او برغې ئې نشئې شي

واوا، کرکمانئې ټينګې ليتهئې دَ کچالو

قربان ئې چرګو تې

لاړې کښې پوست معین کړی په نکوږ دله تالو

او کوتے په خټې

بے کاره دی مغز خو ځمائے او ناشپاتے

امرود زړوبے دې مړه

مسودو کښې مستی د هاے قربان نے د پیتے

کلکینړی بے وجود

غلے په ترنم کښې کچالو ته نه رسیږی

شته دال کښې تنګ تکوره خولې ادبې سر کښې غږیږی

وځه په کچالو نو په تنګ شه روګ د آلوچے

بیکاله دے خوځیږي دو. نه لنډه شته نه بوچے

چه خورشو په باغچه کښې د بابو صاحب بیان

چینجی شو را برسیره

د ولکی سره تے مخکښې بنجلوس عظیم الشان

زمونږ نه شو چا پیره

یو غټ پکښې را مخکښې شو په شکل معتبر وو

سپین روے د ډیر نښه مزاج

وے ارمان چه ستا نه مخکښې ستا رالے غلے خو خبر وو

لیده به د خراج

خراج که خراجونه د تحسین او آفرین

چینجے که حلال دی مړ تا پخیو کښې به سره دی

---

[illegible]

شاباش ستا پچکاری او آفرین ستا سکنجبین
زمونږه روک نسلونه ستا په علم شو ژوندی
که ماشے که میږے وکه ملخ وُکه د مبر دُږ
دښمن زمونږ دَ ذات
یو هم د دېنه بچ نشو که په سمه که په غر دُږ
په بچ (*) وُکه په سوات
هیله مو په آرام بانده سړا او خورے میوے
ماره خوښه ماره شو
هیله مو قام شو خور او ږدے اوږدے مو سلسلے
نسلونه مو زاره شو
نور هر خه لره مرګ مونږ له ژوندے او رحمت
دَ ښکره دِ قربان
په کمه ژبه کم قلم زه وکرم ستا صفت
ای پلاره دَ لقمان
مونږ تول ستا سو زیارت او عبادت له یو را غلے
حکیمه بے مثاله
دا خان د میوو غل دِ داد ے کړځی ژوندولے
بے علمه بے کماله

(*) مطلب د پچ هزاری سیمه ده .

بابو نہ ئے بابائے محافظ مدد گار

سخی مشکل کشائے دَ نامے نہ قربان

بس دہ غلو بابا چہ شو قربان ستا دَ پیزار

را ځئی چہ تبرک لہ سنگل کرو خپل مرنے خوان

یو غر شو، او د غر سرہ بابو صیب بو سارہ شو

بابا دَ سکنجبین

دخپلو مریدانو سرہ پیر غریب کا نہ شو

او بند ے شو مشین

ماوے اے بابو گیہ، خوارشے لاس کہ پچکار ہے دے

چینجو دَ جناب کیرکہ، کہ تادی نہ نو مرہ دے

او اے دَ بور ے زویہ گورہ گورہ فکر اوکرہ

یو اخے چینجی زیر نہ دی چاپیرہ وطن زیرہ دے

ورو کی بابو گی یو سیلے دَ اوہ کرہ جوڑ

پہ خپرکنب خورہ شو

چینجی مینجی خوخہ کئے مونږ نے تول کرلو بے جوڑ

پہ سترگو موتیا ہ شو

د تور و تیارو مونږہ چہ واپس راغلو پہ هوش کنب

وُ خپرتش میدان

چینجي وباغ ته تلے بابوگے ولاړ وجوش کښ

خپل علم ته حیران

زمونږه بابو کل قلار، بے غمه او خوشحاله

په مزکه پروت ؤ خوار

دارو په مخه بوته ۮ جنت تو د ے حلواله

په یونانه بین گزار

مثال دعلم مړشو، شو یتیم زمونږ قام

اوس ځوک به کي خدمت

ډیرو کښ ۮ میرے خپلوانو منسخ کړلوما بنام

په شان اوڅشوکت

ۮعلم برکت و لوئے بابو شو بابوگے

افسرشو دپښتون

بولاس کښ چکاری گوځي او بل کښ تبرگے

او ښکلے نے پتلون

شومور اوس په بنیو کښ نے مست زیر اودم غږیږی

پش پش ۮچکاړو دے په آسمان ته ماچلیږی

چه زه ویم بابو خانه گوره گوره چه غوځیږی

بابو صاحب په نازبه انگریزے کښ او خنایږی

وی خلا مرکې شو چینجي نو محکمه زموږ خلاصیږي

ابنې م دَ بخملو نه بیا چیت الوان ته کیږي

او زموږ ده داسې بنګلې بنګله کلی کښې جوړیږي

بی بی م ده خوشحاله په جامو کښې نه ځائیږي

او پرویز ده چه دِ خوري، خان ته یو شي نه دَ خوراک

چه څوک دِ خوري ځمیږي

او ته که ژرک شوځه پې، بس خس کم او جهان پاک

پیسې دِ نه زړه کیږي

مچان که افسران دي، ځه خو غواړي دَ ژوند ژواک

په اَس هر څوک سوریږي

او جوړ که دکیکر نه یو مضبوط غوندې مسواک

چه خوله دِ نه خوږیږي

قیزه دَ قانون خُله کښې او بارونه لس مني

غوږونه دِ که مراوې او دُلکې بلخشانې

او "کاڅ" تا سو کښې نشته پوتې مینه وطني

وطن شو تول آباد سپینې بنګلې شین چمني

خوند چانې "اصفهاني" کښې کې تري امریکني

دا ملک چه موږ کړو جوړ لکه جاپان یا جرمني

او باسے به شکروینه او ور کړے به شیرینی

خانان دی تول شومان قلنګ زمونږ و نه منی

هیڅ مینه د قام نشته، بس ګنی، ګنی، ګنی

په خان باندے پوښتنوم، صیب م (٥) نیوکښ ورخوندی که

تو کورے م ترے کړو جوړه په اوبو کښ م نسکور که

پوره په فلسفه م پوهے د مړي اوژوندی که

اوده به وے - بوګره بوګره، چه مابه لوږغوندے زور که

خو خاقورانه خلاص که وے پهانسی او دوزخ دواړه

د دے بابو صاحب په نوی خشت پوره ے ترلے

بابو به د ګلے لاړ سبنه ګرندے د نهر په غاړه

نو ور برش مے افسری ووخښنګ نے ولړلے

شو باغ زمونږ دیران تاکی م ګرک کړله ګنی

جوار غنم م لاړل مالیه کښ آمانی

ډک ډک د غلے راغلل انګوتان امریکنی

خار به شو افسران خو چرته نه بنکاري غنی

هغه چینجو که مړ، که ژوندے منی که نه منی

یوازے اوس بنګله کښ ګرځی فضل ربانی

---

(٥) نیره نهر.

# دلنډن معشوقې

دلته خواته ازغي دي — بل خوا غاټکې د نرګس
د هنر علم سایه ګنبس — ګرځي ګل لبانه مس
هغه نوي نوي چال کړي — خو همه نه ګنبس دا خیال کړي
چه له ګلو بوډا وادري — په ازغو ګنوي زړه غنس (۱)
ډېر ورک کړل ډېر به ورک کړي — ډېر سپک کړه ډېر به سپک کړي
د دنبر لښې دي پېټې — دي الکو ګنبس د تاوس
غني خان ملا باد نه کړه — عقبا دې برابر کړه

بلا کانو ګنبس ډېر وسې
چرته مات نه کړې اودس

(۱) غنس : غنځ

# عجبه فلسفه

فلسفي د ملک وَلاړ وُ . و چاپېره ئې علم
دَ خود سپین مشال په لاس . جلا کوانے زیات ئې کم
فکر تېز . نظر باریک . دلیلونه کلک مېخونه
دَ منطق په پاټکو . پاټکو روان به بره سم
ماوې آ دَ هوش او عقل د دنیا بله مثاله
یو بې خوده لیونے دے . هر یو سازے دَ ماتم
ستا دیوے دَ دریاب نه یو قطره د دنیا غواړي
خو سوب دَ خندا غواړي . خو مطلب غواړي دَ غم
فلسفي کوے ستړے پوښتنه . خله مسکے ستړے د دنیا نه
خوږے خوږ دَ غم لوے پکښ دا غلے ناګهانه
وے آ : زما غمګینه زړیه ، خیشت وجود ئې نه؟
دَ ده نور به هله ورځي . چه په پټو سترګو ګوري!
علم سپین روښان مشال دے خو پېښتي لیک ستوري
د نور ستړے دي په زړه که . د نورو د دنیا ګوري
سمندل دَ خیشت خو ګېږې کوي د منطق ایکوړي
دَ غم باد د چاپېرنو لے . پټل دَ ستړے او دنو ...

وے دخود پہ میخانہ کښې ستا دَ خښلو شراب نشته
چہ دَ مینے ساز پرے اوری. دلتہ ھغہ رباب نشته
ستا نظر جدا نظر دے. ستا جهان جدا جهان
تا کښې وینہ دَ مجنون دہ. ستا نصیب کښې بیابان
ستا مستی ومی تالونہ. پہ سندا دبودِ ئی تال کښې
دَ ملال پہ نری خط کښې وینے شو ندے دَ جانان
لیونیہ. لیونیہ. دا تول عقل زما واخلہ
خو بدل کښې راله راکړہ. یو قطرہ دَ خپل ارمان
ستا دا وښکو نہ قربان شم. ستا درد دو نوتہ پیخیږم
چہ پہ دوا ړو کښې خمار دے دَ خوبونو دَ جانان
تا چہ څه دَ دنیا واروؤ. دنیا چیغے کړے پاگل دے
خو تا تاوان کښې گټه وکړہ. مونږ پہ گټه کښې تاوان
چہ چہ وان د خیشت تالا شی. غم تش غم شی دَ دلبر
خومره مستے هر قدم شی. هر نظر خومره روښان
راوړه. راوړہ زرہ دِ راوړه. چہ زرہ پہ زړه کې ښکل کړم
هر ارمان خماری دے. مستے هرہ وسوسه دہ
راکه راکه چہ ژوندے شم. ویٔ[*] دَ مرگہ یرہ مرگ دے
ژوند ارمان دِ او جانان دے. کہ امید کہ تلوسه دہ
وایہ وایہ خومره مستہ. دَ دلبر دَ شان قیصه دہ
دَ جنون او دَ جانانان دا. څه عجیبہ فلسفہ دہ

(*) ویٔ : وایی۔

# کوکوشتو

همه بحث ئې فالتو — نه بس کې اشنا قرتو
په چپل خانې پوخ کمان — دا استاذ دَ ارسطو(*)

بنده کړې ذرې ذرې
دابې واره ترترې
پیرې خان کړې بنا پیرې
دا دَ دُوزو ازمرې

کې مزه دیره مزه — صفت خُله کښې دَ بل چا
لا چه وشې پښې شا — شې مزه ې لاسوا

خوند خبرې کې دَوار
غاړې غلې په قرار
شوربې خر دَ قند هار
چې خُله ښکارې او ښیار

پوکې شه دې پوره تهرتو — دا اوچت آواز قرتو
خان کښې پوخ جرګتو — دا دخهو ګوګوشتو

---

(*) ارسطاطالیس د افلاطون شاګرد، مشهور یوناني حکیم او عالم

# ترجمه د اقبال

زهٔ[1] په زړو پردو کښ پټ یم
تهٔ[2] په زړو کښ ړنده
بس یو زړه دے چه نے غشے
نیغ د سلو وارو وخی

په هر وخت په هر مقام
د مینې شکل جدا وی
هر ساعت جهان ورانیږی
هر ساعت جهان جوړیږی

د ژوندون دراز بس سفر دے
دا ابد راز ورانیدل دی
راپخوا اقبال[3] زمانه
دیرخیشته رنګ کښ ویلی

---

(۱) زهٔ (۲) تهٔ زهٔ هم، ته هم. (۳) اقبال. ته اقبال لاهور کې ۲۳-۱۲-۱۹۳۰ع

# دُعا

ستا د مینې په صحرا کښې زه سوې پرق دَ لاله نه شم
ستا د باغ کشمالے نه شم، خو زلوګے په هوا نه شم
ستا دَ ستر ګو مشغوله، ما کچکول کنګرو وانغښت
سودائی خپلے سودا کړم، مجنون ستا په سودا نه شم
یوکوټ سیخے او به نه شم، چه غرمه او کربلا ده
سر خمار جانان جانانشو هر خمار بلا بلا ده
زه دَ سرو ګلو غوږ رشیم، د ګلو بوستان نه شم
ستا د کوتو په پردو کښې، لکه سُر بندیوان نه شم
راشه او ګوره دلبره، دا ما خه په خه بدل کړه
خه دِ راکړه اے جانانه، خه دِ راکړه خه مِ درکړه؟

# میلادِ آدم

عشق کړه چغه چه پیدا شو لیونے ځیګر پیدا شو

حسن ورپیږد ډیرے، چه د تول نظر پیدا شو

یو چغه له دے خاورے، د ازل تیاره ته لاړه

اے پردو کښې پټ واورے، پرده سوځه شه پیدا شو

و فطرت حیران خفه شو، چه د ځان د خاورے مجبورے

ځان جوړونکے ورانه ونکے، ځان لیدونکے سړے پیدا شو

# یو بې مهاره اوښ ته

ته اول هم زملو ورورے — مروړ راشه بیا مِ ورور شه
یا مِ سُوړ دَ پښتکی کل شه — یا مِ نږدَ ویښے اور شه
دَ پښتون دَ څُکر رحم — دَ پښتون دَ ورو څُوتوړ شه

چه ذَده په سَر غوږے وی
ته ذَده دَ مټو زور شه
کنی لاړے او ورکیږے
سر په کندو دِ کاروان شه
ته خو دے بنګلو ته رپے
بنیریه! کور دِ وران شه

# سینده څه سینده بهیږه

دا قسمت دے د دریاب — چه بهیږه او بهیږه
چه په کتو ور شے اوړشه — په اواره کښی روکیږه
چه یو ځائے کښی آغا نشے — او بل ځائے غلام نشے
نه خوراک د کل مخلوق شه — پلاړه د ویل موړه د کیوړی
زه دائی شه مور او پلار شه — د بنا مار او ده چرګوړی
زه چړچړے شه خوږ شه — چه دِ غاړے شنه توښی

او باغیچے او چمنونه او ګلونه ازګلونه

چه ماښام د راځی خواله — عاشقان غمګینے سترګے

ځینګے دړته ګلهیږی بلے سترګے سره لاسونه

کله ډوب لکه د غم زه — کله مست زلمے ګلهیږمه
سینده څه، سینده بهیږه — سینده څه، سینده بهیږه
بس همم دا دی چه ته نیک دی — دیوه سین او د بل سین

وارو غر سره جلا دي آمو او اباسین

د جینډي او اباسین

چه خیالے زه په کم خیال کښ

په قلاړ جینډي کښ کم دے

چه راوي (*) په کم خمار ځي      د نو ښار لنډي کښ کم دے

سینډ څه، سینډ بهیږ      سینډ څه، سینډ بهیږ

د هر سیند وي خپلے لارے

هر یو خپل کوږته روان دے

د هر یو خپلے دشوارے      زه چرے چرے شه اود

چه د غارے ښنه پتي شي او باغچے او چمنونه

---

(*) راوي : د پنجاب له پنځو مشهورو سیندو څخه یو سیند .

# باديوه

ښځے دِ پرېږې څه مستانه دِ رفتار دے
کوره دَ کاغذ نه چا جوړ کړے خپل خمار دے

باد ته دَ عاشق په شانِ خاندے خوشحالېږے ته
مستَه، سولئ مارهٔ دَ طاوس هسے ګرځېږے ته
بے جرړو کلا په په آسمان کښې زر غُنېږے ته
زړه دے دَ قسمت په تار تړلے ګرفتار دے
ټول رنګين خمار دے خو مجبوره هر خمار دے

دومره وېره آسمان کښې دَ خپل رنګ شاغلي ښکاره کړے ته
باد باندے وسهور دَ لاندے خاورې ننداره کړے ته
چونکه خاورهٔ وجود دې ليونتوب يو ترارهٔ کړے ته
ته د بنيادم دَ بخت او تينګتے يو تصوير يئے
يو رنګين خمار په تار تړلے دَ تقدير يئے

زهٔ هم ستا په شانِ کله کله په هوا شمه
پرېږدم خاکي ځان بس يو ارمان يوه دعا شمه
خوب شم دا اميد، دَ ژوند رنګينه مستو شمه
څه قسمت وُ دَئ (*) راشه سَر مِ ستا پکار دے
اے دَ آدم نيه ستا د خاورو سره کار دے

(*) وُ دَئ : وو هې

# تالئے

ژوندم تال دے زړه پرې زانګم
زړه دَ خیال په نیلي سوړے
دَ قسمت پرې ٱګوره دې
خیژمه پرے تالئے
څه دي څه دي بد که ښه دې
دَ دیواله اخوا څه دې
چه محراب دَ ملاجان دے
که خمار دَ ملالئے

زه دَ مستو په زوږ پریم
زړه په وړني نظر پریم
زه دَ ځان سره سیالي کوم
زه پرې نه یم په سیالئے
زه دَ خیښت مقام لټومه
رنګ، آواز، خیال او نظر کښې
لکه څاڅکے تله واخلی
تلی زوږ په سمندر کښې

که د فکر نظر تیز دے
دَ قسمت دیوال محکم دے
دیخوا، دیخوا خو به سم کم
خو دا غم دا خوا غم دے
زه پوښتے در نه څاڅکے
په یو تور او روک جهان کښې
دَ خپل خود په رڼا کړ ځم
دَ قسمت کوڅے لټومه
دَ تال پرې که پاخه وی
که نری وی که رواسته وی (*)
زه تالئے خو به خیژمه
زه تالئے خو به خیژمه

---

(*) رواسته = وربسته.

# خیام

اے خیامه ته تش غم یې ، تشنه تیښته تل فرار
ته د جام او ساقي یار یې ، بې خیښته رنګین انګار
عجیبه غوندې جنون یې ، نا امید او بې قرار
ستا احساس د تن بند دے ، په یو ښکلی رنځ بیمار

ته لمبه یې د تلاش ، د لټون او د ارمان
زړه او فکر د خزان ، ښکلې ژبه د بهار
سر د بحر سرے چپے وی ، د ډوب وېخ کښې قرار
ته کښتۍ د کلو رکه ، سرسری د کښتۍ لار

آسمان پلار دے د سبا ، هم بچے دے د پرون
دا هم جام دے هم ساقي دے ، چه وصال او څه بېلتون
دا یو ساز دے چه روان دے ، د آواز د سرو کمال ته
یو د ډېر ناښاغلے چه ځغلي ، خانانې (*) د ښکلو تال ته

---

(*) رسنۍ : رسوۍ .

دا ستا غم خو غخه غم نه دے، چه ډوبیږي به یو جام کښې

دَ امید سپوږمۍ دَ پته، تورو لړو دَ ماښام کښې

په دے مست ښکلي دماغ دے، تو خوږ شوے دَ مرګ جال

دَ ساقي جمال پټ کړے، ستا دَ زړه نه بل جمال دے

یوه مسته او شیرینه، عجیبه دَ غم نغمه یئے

دَ سرو زیړو ګلو دکه، یوه نګینه مقبره یئے

# رورهٔ قلندره

رورهٔ قلندره (۱)

څه په پته پوے شوے چه دا ښکته ځے که برهٔ
د کښې څه وارهٔ شسته چه سړے وکړی خبره
لسو بلا ځے کانو کښې ده، کمه بلا غوره

او رورهٔ قلندره

مانه خفه شوے، که خفه یئے دا شنغره
کله کله مونږ له هم راځه د پیښوره
سنه وی چه یارانی وی د سړی تکړه غاړه
نوم، ناموس، او خوی او همه خونه معتبره
خو یو په کښې پکار دے دا زما غوندے سره
دا په کښې کنجکه چه ساقی مو د نظره

او رورهٔ قلندره

دانا تار خبره

---

(۱) زما محترم دوست قلندر مومند چه په ۱۹۷۰ع کښې د شهباز اخبار ایډیټر وو.
د شعر کښې هم د هغے کال الیکشن ته اشارے دی. (غنی)

ـ کټې د زندان او قلا دواړه د یوغره

او روره قلندره

دا خو څوک د متهٔ غواړي څوک یې د خکره

زه کمزوری بنده یم وي کمزوري بے ضرره

مونږ نه بل وژلے شونه خان له لرو زغره

او روره قلندره

ډیر وکښې ضرر چې ته کښې ورانه شي خبره

بس د نور به چپ کړم خو بس دا یکښې د سره

دا څنګه سیند دونه دي هم ښکته ځي هم بره

مغه صاحبزاده (۱) ته وایه یا پیره کافره

خلاص د موریدان شه د تاتار د بربره

ستا قیمت به ډیروي هم یاران د بے لمبه

سره د آشنا نه خاري یار، خو د خدا د سره

او روره قلندره (۲)

نوره که څه ورانه وي نو ته نے کړه برابره

---

(۱) صاحبزاده فاروق د کوټې. (۲) استاد قلندر مومند [illegible]

# نوې سياست

دَ اوښيارو لاړے مِ ډيرے زده
خو زما دَ شان دغه لاړ نه ده

زه دَ زړو صحرا وو ارماني يمه
زما بخت کښې کوخه دَ ګلزار نه ده

زه يم خاوره خو ډيره بے تابه يم
ما موندلے لمحه دَ قرار نه ده

دا دَ دغو منډې ده دَ سودا او زيان
دے زمونږه دَ کړو بل جهان

دلته ښځے (۵) به يو او خرڅے به بل
دا بازار تنګ او کړته سامان

دلته مينه وفا او غيرت او ښتيا
چه بے سوده ئے کړے نو څه توب دے

دا قصه بس دَ چرګ او ډيران ده
خو په دے نوم دَ اوچت سړيتوب دے

(۵) ښسيي .

# زما لال

(د مور قبر ته)

زه د هغې لال زه د هغې د سترګو تور وَمه
زه به د هغې په سینه تل اوده نسکور وُمه
اوس ئې ښکته ښکته د مزار کاڼو ته ګورمه
خاورو کښې پرته ده چې ئې زه د زړه ملال وَمه
هغه لاله شوه خاورے چې زه وړوکے لال وُمه

لاړه مه آسمان ته ماورے اے د جهان مور سپوږمے
زور د مرګي زيات دے که دنيا د مينے زور سپوږمے
آوري به لحد کښې څوک د سوي زړګي شور سپوږمے

مو ئې خاورے ښکلې پټ د حُسن جهان کړے
يو پوړکے آباد دا چمن ښکلے بيابان کړے

ګله مې نه جوړيږي چې ظالم او وايم رحمن ته
مرګ چې د جهان بادشاه کړم څه وايم خان ته
ولے دروازه د علم لو نه شوه انسان ته
سيال ئې د خان وکړم چې زه د خاورو سيال وُمه
هغه لال مې څه شو چې ئې زه وړوکے لال وُمه

# کنې دنیا ښه ده

| | |
|---|---|
| دَ سُغیمے لړ خوب | لکه دُنیا ښه ده |
| نیته سے لړه ده | کنې دُنیا ښه ده |
| خوَل وانۍ جنه ښه ده | خوَک وانۍ دا ښه ده |
| ساله زما ښه ده | او تا له ستا ښه ده |
| چاله ژړا ښه ده | چاله خندا ښه ده |
| زړه دَ مجنون له | خپله لیلیٰ ښه ده |
| زړه دَ مُلا له | تو ده حلوا ښه ده |
| چاله مستي ښه ده | چاله سودا ښه ده |
| چاله محل ښه دے | چاله بیدیا ښه ده |
| دنیا هغه ښه ده | که دنیا دا ښه ده |
| چاله هغه ښه ده | او چاله دا ښه ده |
| ژوندي ته ساز ښه دے | مړه ته دُعا ښه ده |

بنیا له سود سره دے | ماله سودا سره ده
دَ ملا عقل له | خُله ده لا سره ده
زما کوتک نه | مُلا دَ لاله سره ده
مزدور وے خان ته | خبره دا سره ده
ماله تیر بد دی | تاله حلوا سره ده
دَ جرم توبه سره دهٔ | دَ عیب تلا سره ده
زمونږ تمتو سره دے | دَ پنډت غوا سره ده
حبږ سره دَ کاندهی (*) | خُله دَ جنا سره ده
چاله مغه سره ده | او چاله دا سره ده
ماله زما سره ده | او تاله ستا سره ده

نیته ــ نے لنډ ده
کنی دنیا سره ده

---

(*) کاندهی . کرم چند [illegible] ( ۱۸۶۹ — ۱۹۴۸ ع ) [illegible] د هند مشهور [illegible]
او سیاسی رهنما .

# پلوشه

په غمونو کښې خندا کړه — په خندا کښې غم هېر نه کړې

او د ډېرو په سودا کښې — چې قيمت د کم هېر نه کړې

د وصال په لمغرو کښې — د فراق ستم هېر نه کړې

دا چې تۀ دې سترګو تنخا ندې

دې سترګو غم هېر نه کړې

د الله الله په شور کښې

چې صنم صنم هېر نه کړې

# دعا

اے خدایه عقل راکه — اے خدایه پوهه را
زړګے مضبوط راکه — او سینه لویه را
سترګے دنوړ راکه — رحم دَ ځان را
بیا تول غمونه دے — دَ دے جهان را
ما تئے په سر که — زار دې نه شمه
زه به ئے اوړمه — زه به ئے اوړمه
یاړ بهادړ راکه — که همت نه راکے(*)
غیرتی زوړ راکه — که غیرت نه راکے
دَ سکندړ بخت را — دَ دارا خیال را
مټ دَ خالد کښې — توره هلال را
اِسلام دِ پریږده — زار دې نه شمه
زه به ئے ګټمه — زه به ئے ګټمه
دَ شپے خیمه کښې — دعشق شراب را
پاک مل دَ لاړے — لکه ګلاب را
دَ سپوږمۍ نوړ راکه — لوبو ګولو له
دَ بوډۍ تال راکه — جوتو وهلو له
جهان دِ پریږده — زار دې نه شمه
جنّت به ئے کړمه — جنّت به ئے کړمه

(*) نه راکے = نه راکوے.

# هَو بَرکیه هَو

پینښ په لیونی باندے شو پینښ لیونے یو
وے رودره په یورپ کښ سړی کی دَ سرولو
بانګ کښ د سبام پروَن نوے تپه وا دریدہ
تلے وم خالصے ته راته ئے اُووے "نهکے ناوه"
پرین ده باچا خانه دا دَجیل قصے دِ خوشی دِی
دال م نه صفیرِی نه عادت یم په پولاو
وا دره دَ یورپ نه دَ انصاف خوږے خبرے
وا دره مرے وا دره دَ پیشو بی بی میاؤ میاؤ
یو نهنګ غټ شوے شو دو کبان ئے ډیر خوړلی وُو
بل نهنګ پرے راغے او به سرے شوے دَ تلاؤ
یخے دَ قسمت کوتے مروند سے علمهٔ نیسی
خپے که خان له ماتے ګدا کی کړی په داؤ داؤ

محبت بے وفا یار دے دیو غیږ کښې بالۀ خاندګی تل

وُ پرون غږ سو سوزن دَ صيب سرو وُ

خاڼې خبر تسا به چاته خاندی خندوی به خوږک

مونږ نه خو خفه بوته مُلا علی داو داوُ

دلته چرګوټے دَ کُرکه جنګ ے په آلو(*) اوشو

ورکړو دَ چاښے(+) مو ترله بیا فرنګی تاوُ

کورکښې دَ قصاب غویان په اوچو تانتو نښتی دی

هو لنډه یه، هو برکیه، هر چرکیه هو

جنګ عظیم ۱۹۴۲ع

---

(*) آلو: مکره مکیو. (+) چاښے: کلی.

# پلوشه

ځے مے دُ قبلے نه ليونے ترے خبر نه وو
سترگے وے وازے دَ انسان په تماشه
عکس د سپوږمۍ مے دَ شبنم څاڅکي کښې اوليدو
ځکه په سجده شو ارمسکے شوَ جانان په تماشه
نښتے دَ ژوند د خوب تعبير کتاب کښې نښتے
سترگے دِکه پوره نه دَ آسمان په تماشه
خدائے مکه کښې نښته دَ منصور دَ خُلے م اوريدو
دُ رښتيه ليونيه، مشه دَ ځان په تماشه

# حقیقت او مجاز

دا دوه حورے دَ جنت دې دې شرابو کښې لامبو

کهِ م سترګے دَ جانان بیا شولے ډکے دَ ادبو

چه دَ مینے په مذهب کښې شک کول کافري دي

که منم دي کافر یم خلاص به نه شم په توبو

دَ نرګس لوږي کښې پیلے دَ سپوږمۍ دَ شغلو جالے

په کښې پروت یو لیونے دے چه مجنون دے که بلال دے

# اوه چه تول عمر ماشوم وې

بې پروا لکه لولو وې په کلونو کرزېدلې
او چه تول عمر ماشوم وې، په بلا نه اوړېدلې
دَ دنیا دَ اوږ ستړکو، بې خبره کوزېدلې
چه په خُله دَ جانان نه وې، دَ فراق وړته غزلې
بې پروا لکه لولۍ وې، په کلونو کوزېدلې
بې خبره چه آدم وې، دَ رازونو د هوا نه
نه آشنا مجنون اوده وې، دَ غمونو د لیلیٰ نه
او چه حُسن خبر نه وې، د خپل حُسن دَ غوړځنګه
دا زما زړه نا آشنا وې، د دې ښوبلو دَ جنګه

# پلوشه

او دَ بنده مشال لکه دَ خس دے

تو دشي لوګے وَ زړې رڼا کړي جوړه

لمبه شي وسوځي خاورے ایرے شي

بوده اَبي پرے ژړا کړي جوړه

# ته او زه

مجنون وے لیلی پوۓ نه شم | چه ته ښه ئے او که زهٔ
بلبل گل ته په خندا شو | وے دا څه وائی دا څه
گلاب رو په نیاز مسکے شو | وے که زهٔ یم او که ته
ته ئے زه او زهٔ یم ته | فرق زما او ستا د څه
هغه چه فرق لری زمونږ | نه پرے پوهیږو ته او زهٔ
لیونی که سر راپورته | وے جواب ولے دَ څه
صوفی خان که دیر کړے ستړے | که د ښو نه ښه شے ته
خو دَ عرش پایو له نه ځی | دهاؤں هاؤں چغے دَ څه
لیونی سترګے کړے ښکته | وے لید شین روکے واښه
وائے زما دَ روح خاوندهٔ | چه دَ ښه دے او که زه
د نسیم یو چپه راغله | ګُله زما ګُله دَ واښه
تے په خپلو شونډو ښکل کړے | دواړه ګُلے په یوه ګُله
لیونے لا لیونے شو | دائے وے برے کا ته
هیڅ په پته دِ پوئے نه کړم | چه ته څه ئے او زهٔ څه

(۴) پوهیږو = پوهیږو

# د زړینې په کیدو

اوه یو ذره د نور وه — شوه دریاب کښې ډوبه

په خوبونو د ځوانۍ کښې — یو شعله د نوره پېلې

دا نرۍ د هلال شوندې — دا د دوو ستورو رڼا ده

دا د هغې خوب تعبیر دے — چې ووما او تالیدلے

دا هم ګل دے هم بورا دے — هم سازونه د بلبلے

دا چې ستا نیاز بینو کوتو — د ازل ځانګے ته لاس کښې

دا ګلابې ترې راواغښت — په نوښونو لمبیدلے

دا چې ما غمګینې سترګې — په ژړا کړے بره پورته

دا زما د غم جواب کښې — سپوږمۍ ګل دی رالیږلے

دا اوبه د واوریجینو دی — د دریاب په طمع درځي

دا هم زه یم هم ته یې — هم زما او ستا خوبونه

دی به جور تر اباسینه کړی

په ګلونو کښې بهیدلے

# ګډې وډې

ورځ مې ورکړه زمکې له او شپه مې ورکړه ستورو له

خان له چې کم عقل شوم، شوم هله او بیا نورو له

سترګو د جانان کښې کله کله د ګل پاڼو کښې

زه ئې مرغانے وینم شیخه جوړ که جمات نورو له

لوے جنجال ئې جوړ که چې ئې ویش د نصیب و که

دومره رحم سپینو له او دومره عقل تورو له

واچوله نیک تالي ملا بابا په خیټه موړو

زړه د غریب سترګو په تلو جنازو سپورو له

دا عجب انصاف د ساقي ستا په میخانه کښې

غوره د غوړو د رباب او خاشکے نه څخي نورو له

غني

# خندا او ژړا

د ساقي لاس کښې شراب کې

يو د غم يو د خندا

ما پياله تشه نيولې

ستا د فضل په سودا

اې ساقي چې کم دې خوښ وي — په خندا خندا نې را

ليونې يم کار م نشته — په خندا او په ژړا

زه يم ستا د سترګو تږې — تږې نه يم د خندا

دا پياله م که لبريزه

که خندا دي که ژړا

خو چې تږې م پرېږدې

ستا د حُسن ميخانه

# چه د مستۍ نه
# هستي جوړېږي

پوره سپوږمۍ چه رو رو کمېږي
ژوند ئې پخېږي غم ئې زیاتېږي
ډېر ارمانونه پوره او لږ نیم کړې
چرته محل یو نیم ډېرې جونګړې

ستارګښې شرنګ هغه د ماښام نشته دے
سرور په سترګو کښې د خیام نشته دے
د نور شغلو کښې شفق غرقېږي
چه د مستۍ نه هستي جوړېږي

# وه ملا

ما ته یاد خپلې ګناه که — تا ته هیر خپل نیکۍ که

ما جانان که دلربا که — تا ټګي او نا ټګي که

ما د خپلې مستۍ تاج که — تا د خپل جهل لکۍ که

ما او بنیاړ د جهان بلا که — تا جولا د ویټکۍ که

ما تر بې مینه مستۍ جوړ کړل — تا کاڼه په دوه چکنۍ که

ما د حسن سمندر که — تا شوق د مسلکۍ که

نو اوس وایه ملا ته

چې ته خونړی که نه؟

نه په لیونتوب تر فلسفې کړل خه جوړه — نه فلسفه ترخه کړه جوړه لیونی

دا کړه وړه د دنیا کړه ورته وانه ده — بویه دومره په بدبخت د خوار غني

دا دستور روشمار د وخت تلل د ساز لید

نه خوند لا دې چې نه ډیر او شو کمي

# ژوند

ژوندم ډوب دریاب د روڼو خوږو سمندر کښ
خاشګے روک دریاب کښ شو په طمع د ساحل
بخت کښ د سیلاب دی په مستئ په چپو تلل
نه وړخې دریاب له غونډیدل او اوړیدل
دے لهر د سازله تله ژوندون او دریاب مرګ دے
زیرے د ماښام وی د سحر راخلیدل
ګلے دے چپے کړو د ابد مستانه تال ته
او ګړنګو سازے تارخانو کښ د ازل
لاهو لیونے لاهو چرته د نور شغله کښ ډوب شو
خاشکے روک دریاب کښ شو په طمع د ساحل

---

اے دانګورو څوړے — اول چه را غلے به ته
په قول عقل کښ به دې — خندا بر سیره کړله

---

او اوس چه راشے ته — درد او تیاره راولے
رڼا دِ کمه کړله — ژړا دِ ډیره کړله

# عشق

سوزنه دے عشق سازنه دِعشق، آه اوگریان نه دِعشق
مستهٔ رنگینی دانه ده، غم دَ جانان نه دِعشق
خوب دَخوانے نه دِ، دَخوبونو ارمان نه دِعشق
مینه د ملیار دَ سترگو، وخت دخزان نه دِعشق
تورتش دنیا ہے رک، دَ تیرو بیابان نه دِعشق
مست د امیدونو، یو دریاب روان نه دِعشق
سترگو کښ که راشی دَ شفق سرو دَ خمار
عقل له که راشی دَ سپوږمۍ دَ رنا تار
دے مستانه زړه له یوه حوره دَ تاتار
دا دَ مستۍ حد دے او دَحد بندیوان نه دِعشق
مستهٔ رنگینی دانه ده غم دَ جانان نه دِعشق
عشق یو وحدت دَ رب دے په وجدونو دانسان کښ
یو دَ مینے ساز دَ زړه په سوی تبرستان کښ
روح دَ ړوکی گل دَ سپرلی سترگو دَخزان کښ
مرگ عشق ته حیران دِ خومرګی ته حیران نه دِعشق
خوب دَخوانے نه دِ دخوبونو ارمان نه دِعشق

# په مردان مارچ د باچاخان

راشه اے خوشحال بابا — اے خالده اوچکوړه

پاڅه غازے مه تښتې — دا تماشه اووینه

جنګ له دے منصور پړان

توپ او نه توفنګ لری

نه د توره پړق لری

نه د زغروشه ننګ لری

زور د دښمن نه وینی — دا سے لیونے روان

دار او رسن نه وینی — دا د مستانو خان

دا د پښتنو ملنګ — څه بادشاهی ننګ لری

جنګ له دے منصور روان

توپ او نه توفنګ لری

سپین مخ د لیلی وینی — دشت بیابان نه وینی

زړونے د دیوار مانه ړک — غم او ارمان نه وینی

سرے د باتور ستړے نه — مینه رنګدار ننګ لری

جنګ له دے منصور پړان

توپ او نه توفنګ لری

تاج ئے د ازغو په سر　　مست لکه مجنون روان
نوم د پښتنو کښی　　زوئے د د پښتون روان
نن د داد نرانو خان　　څه غیرت او ننګ لری

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لری

سړے کینبو د خاورو کښ　　مرګ له ئے سینه دی کړله
د پښتون د سر صدقه ئے　　خپله وینه دی کړله
ورے هر څه م د تام دی　　والله، هر څه چه ملنګ لری

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لری

اے د پښتنو بچو　　دامیدان م هیر نشی
سپین سرے د ونو دک　　هغه خان م هیر نشی
پروت دے دلته خاورو کښ　　دامکان م هیر نشی
پاڅئ ننګ پرے اوکړئ　　خدایرو دیره تاسو ننګ لری

جنګ له دے منصور روان
توپ او نه توفنګ لری
نه د تورو برق لری
نه د زغرو شرنګ لری

---

(۱) میدانم . میدانمو ، خانم . خانمو ، مکانم . مکانمو .

# پوښتې

دَ سپرلی شپه وه مسته مستانه — ستورې کیدل ډیر ښنان روښانه
سپوږمۍ ولاړه وه ښکلې حیرانه — لیونی سوال اوکه دَ خپل جانانه

دنیا مې پوښې له دَ لامکانه دا
مستي مې سترګو له دَ خپله ځانه دا
دَ خپله ځانه یارا دَ خپله ځانه
لیونی سوال اوکه دَ خپل جانانه

ناګاه برق شو د رباب د نور راغې — خه به مستې راغې خه به سرو ږیراغې
مستي شوه کونګه مستي ګویانه — لیونی سوال اوکه د خپل جانانه

اولیونی وړته ذره کې کړه لرې
دیر به خوار پکښې ځا شو پوښتې
نور دک دَ ځانه او دک دَ جهانه
لیونی سوال اوکه دَ خپل جانانه

د رباب دَ نور لاړه خیشت او دنیا لاړه — او دَ جانان مستي جانان له بیا لاړه
لیونی پاتې شو خبرې ګویانه — دَ سپرلی شپه وه مسته مستانه

# سوال وجواب

لیونیه مکه څه ده — مُلا کوړ دیوه عاشق دے

کوتهنی دی کعبے دیرے — د محبوب ربّ خالق دے

لیونیه ایمان څه دے — مُلا دا دے پوخ ګمان

دَ یو خوب په نه لیدو دی — دَ وصالونو دَ جانان

لیونیه جنّت څه دے — مُلا ستا جنّت پیتی ده

او زما جنّت وصال دے — یو خمار یوه مستی ده

لیونیه حوره څه ده — مُلا سپینه لوګے ده

یوه کرښه دَ شفق ده — دَ خندا بُربُره کړے ده

لیونیه نشه څه ده — مُلا دا په سیل واته دی

د مستے رنګین محفل کښ — دا واته نسواته دی

لیونیه چه نموځ څه دے — مُلا خاورے بنګلول دی

دَ جانان کوڅے ته تلل دی — دَ اُمید ارمان کیدل دی

لیونیه سجده څه ده — مُلا ځان خاورے کول دی

دَ مستے د ککلو مار — دیار خپو کښ اچول دی

لیونیه ژوندون څه دے — مُلا نه یمه ژوندون

راز ما دَ خوب لیدلے دی — دَ سبا اودَ پرون

لیونیه وصال څه دے — مُلا خیشت کښې دی ویده

دا په ستورو کښې بلیږی — په سپوږمۍ کښې خوریږی

لیونیه حُسن څه دے — مُلا لرې خمار دے

بو مُسکے مُسکے شان خیال دے — یو نرے دَ رڼا تار دے

لیونیه جانان څه دے — مُلا روغ ورته نه گورې

لیونے سے هیله (*) دینې — دَ تاوکړو بانو سورې

لیونیه ته سے څوک — مُلا زه دَ چا ارمان

زه یو گل دَ چا دَ گوتو
په قدمونو دَ جانان

---

چه سے خودی ډیره شی دَ خودے رنګ ورکی
یا دَ بوډا توب له هم دَ ځوانئ رنګ ورکی
غم چه ډیر زور اوکړی دَ خوشحالئ په شان
دَ ژوندون تارکه قصانه شی رنګ ورکوی
سترګے چه تشے شی خوبونه ډک وینی
په تش کاغذ مصور مستانه رنګ ورکوی
سحر له شپه ورکوی شپے له سبا ورکی
دَ فلسفیانو سرله ور رنګ ور رنګ ورکی

---

(*) هیله = ابله.

# اے دَ لیونیا نو نیکه

اے دَ لیونیانو نیکه حسن که وفا بنه ده
برخه دَ مجنون بنه ده ، که برخه دَ لیلیٰ بنه ده
وے اے زما بچیه ، دَ دلبر دَ خُلے هوا بنه ده
نجه نرمه لا بنه ده ، تیزه ګرځیدلا بنه ده
تاو دمخ دَ پاره لو پته ، سره رنګینه لا بنه ده
زیړه بنه ده توره بنه ده ، تکه سپینه لا بنه ده
نو اے زما بچیه حُسن بنه دے هم وفا بنه ده
برخه دَ مجنون بنه ده ، هم برخه دَ لیلیٰ بنه ده
بنه ده فقیری نیکه ، که بنه ډیره دنیا بنه ده
ګل صنوبر بنه بنه دے ، که خُله دَ محبوبا بنه ده
وے اے زما بچیه سور عقاب له دَ غر سر بنه دے
ګل د صنوبر له بنه ، او ګل له صنوبر بنه دے
جام له قلارے ، او سمندر له طوفان خوند که
سترګو له مستی خوند که ، او زړه له ارمان خوند که
نو اے زما بچیه فقیری بنه ده دنیا بنه ده
تخت د سلیمان بنه دے جونګړه د عیسیٰ بنه ده

آخری

# شهید

اے شهیده! اے عاشقه اے بچیه دَ مصر

په خندا جانان له لاړې ، د وب دریاب کښې شوے ډوبې

نادانان دې پسې ژاړی ماشومان دې ته مجنون وی

لیونے دې ته پښخیږی اے اېرے دَ کوه طورې

ننګیالیه سرے ورکه د یار په خپو کښې ډلوګے که

اوس دې ګوره مسکے سترګے ښکلے دے کړے دَ غرور

مار اوړے تاله نه دی دَ سرو ګلو امیلونه

د جنّت بلبلان څه کړی دَ دُنیا دَ باغ ګلونه

تا کړے خپلے سترګے خاورے چه زما پرے شی روښانه

تا قصه زما دَ درد بره یوړه تر آسمانه

ستا دَ وینے څاڅکے څاڅکے چه تا توے کړه دارمانه

ما ته سرے دیوے بلیږی په کوڅه کښې د جانان

دَ دنیا تاجونه خاړشه ستا دَ تخته ستا دَ شانه

د لیلٰی په زنګون پروت یے د مجنون شے څیرګریوانه

مار اوړی تاله نه دی دَ رامبیلو امیلونه

دَ جنّت بلبلان څه کړی دَ دنیا د باغ ګلونه

# منصور

منصور یو لیونے وُ د معشوق اداب ئې تعمیر کړه
منصور یو لیونے وُ دَ مستئ شراب ئې دیر کړه
وے مستي دا نه ماننده دَ جانان دسترګو نور دے
زما دَ ځلے خبرے هم تورات او هم زبور دے

دا رنګ زما دسترګو نه دَ ړنګ دے دَ جانان
دا شړنګ زما سینه کښ دَ خپو شړنګ دے دَ جانان
منصور چرته لیدلے دَ مخ نور و دَ جانان
دا مست چه پرے منصور شو دا سرور وُ دَ جانان

وے دَ حُسن ارماني نه یم زه دَ حُسن سمندر یم
زه مست لیونے نه یم، زه مستي دَ بحر و بر یم
دا رنګ زما دَ سترګو نه دے رنګ دے دَ جانان
دا شړنګ زما سینه کښ دخپو شړنګ دے دَ جانان

عالمه! اشنے واورئ چه زه نور او زه رڼا یم
زه ګل یم زه بلبل یم، زه وصال زه محبوبا یم
منصور خو خپوا ډوب شو دا آتش نور دے دَ جانان
دا نه دے منصور نه دے دا سرور دے دَ جانان

خبر پړے ملیان(*) شو وے منصور خان ته الله وائی

د اکفر دا غرور چه ئے هر چا ته برملا وائی

وے کافر دے شی سنګسار د چه پلیت نه شی جهان

بادشاه د لیونو ئے زولنو کښی که روان

منصور وے خلقه واورئ چه زه نور او زه رڼا یم

زه ګل یم زه بلبل یم، زه وصال زه محبوبا یم

منصور خو پخوا ډوب شو د آتش نور دے د جانا ن

دا نه د منصور نه دے دا سرور دے د جانا ن

(*) ملیان : ملایان .

# څهٔ

دا په سترګو د مریم کښ چه ژړا وه که خندا وه

چه ئې سور په صلیب او لید د عیسیٰ د زلفو ول

ذا څه او وا ئیه تا ته، چه رحیم ئې که رحمٰن ئې

چه په خاورو کښ کړے خاورے د ګلاب ښکلے اوربل

دا مستي وه که معراج وُو دا جهان ئې چه روښان که

که د نور دیار د سترګو دریابونه بهیدل

چه دا کفر که ایمان وُ، چه دا زړه ئې لیونے کړم

چه دا غم م په خندا شو که مستے م اوژړل

---

# پیدایش

او ما خان له ساز که پخپله جوړ
دَ خپل خوب نه دخپل خیال نه
دَ خپل غم نه دَ مستئ نه
دَ خپل تول نه دَ خپل تال نه
او ما خان له یار که پخپله جوړ
دَ خپل سوز نه دارمان نه
دَ خوږونو نه دَ رنګونو نه
دَ ګلونو نه دَ خزان نه
او ما خان له غم که پخپله جوړ
دَ خندا نه خوشحالئ نه
دَ وصال نه دَ خمار نه
دَ بهار نه دلونې نه

او ماخان له ژوند که پخپله جوړ
دامید نه د رڼا نه
د تیرونه د بنیرونه
د غمونونه د سودانه
او ماخان له مرګ که پخپله جوړ
د ژوندون نه د مستئ نه
د سپرلي د زیړو ګلونونه
د لالونونه د خوانئ نه

# کړے وړے

## دا څوک دی ؟

دَ جانانه خندہ دَ او چا ته پکار دے — په ژړی واوره شی په اور کی انګار دے
پلار نے ژوندے دے خو دَ ګښېلہ پلار دے — په ګرځو یې سفر په نوره آباد ګل او ګلزار دے
په بلو نے پیانه د خو یې سړی دستار دے — په لاس کښې یې تیغ دے، په خُله کښې بنامار دے
د شیطان مرید دے خو د خدائے تابعدار دے — خبرے یې نه منی، خو هسې یار دے

په جرمست لکه خر، په سر کلک لکه غر
په ژړه سپے لکه سپے، مریرا قریرا
په خولہ خوږ لکه کوک، تش ایمانے د پوک
یارانه نے لیقرے لکه سخا ایریره

کله ماول د پیشو، کله غپ د خرو — کله غرم د زمری، کله بړ بړ بړو
کله شرنګ د لیلی، کله ترنګ د مُلا — کله شپېلی کله زور کله ګل د لاله
کله پرسې سوزنده، کله سوبیت د دهس — د دهشان دحاتم او ایمان د چرس

د دوست د کونګلت مریرا قریرا
یارانه نے لیقرے لکه سخا ایریره

# لنډې

تو تو تو خر او تته تته

ارمان زما لنډی له فیرنګ شنه جوړ کړه کته

خبرے اوس پټے کی شمله ئے دوه بے بته

یو نوے اسلام راغے د خانانو د مالته

چه خوښ ئے دے موتر که مجرت د جماعته

تیز کرځی په پټرولو کله بره کله ښکته

په بله وه تماچه کرځی ئے یریږی د پښله ته

اوه تته تته خروړ اوه تته تته

ارمان زما لنډی نن په اسلام کړے دے ننګ

ارمان زما لنډی سخکال[*] کړلی دی باد رنګ

ارمان زما لنډی کښی دی چالونه رنګ رنګ

ارمان زما لنډیه کله پلن شے کله تنګ

ارمان زما لنډے وی کله بره کله ښکته

اوه تته تته خروړ اوه تته تته

ارمان زما لنډیه لرے خیته دماتی

په نسل فتح خان او په خوبونو جلاتی

---

(*) سخکال: سبز کال.

ارمان زمالنګې زړه کښې زړه کينه ساقي

ارمان زمالنګې نن ګئ کا ږونه خيراتي

زمالنګې حاجي شو نه خپيړو ونه لته

او ته ته خرو او ته ته

زمالنګې بنه شوې دے غيرت د مسلمانان ګټي

مړو له جنت ګټي ژوندو له دا جهان ګټي

زوي له نوکري ګټي او خان له پاکستان ګټي

د استاد رقيب دلال به نن تاله جانان ګټي

په بلبو تماچه کړه ګرځي بريښي د بنله ته

او ته ته خرو او ته ته

ارمان زمالنګه دے چه پښتو لکه زمرے دے

په لنډه کښې بنه ده ړوند دے خو کړبوړه کښې نرے دے

په فکر افلاطون دے په اخلاقو بنا پيرے دے

په عقل لږ ميخين دے خو په ژبه چڅر دے

ارمان زمالنګه دے د ړک د چل او د حکمته

او ته ته خرو او ته ته

الله زمالنګې نن د فيرنګ نه ګټي خان

الله زمالنګه دے ګټي هم مصر ايران

وږي نيت م د کعبے دے خولندن ته د روان

هند د فيرنګو ته خپنے نه لګي هندوان

ارمان زمالنګ ے نہ باکوکړ دے او نہ بتہ

اوہ تتہ تتہ خرو اوہ تتہ تتہ

پرون زمالنګ ے چرتہ ولاړو پہ دیران

پرون زمالنګ ے چرتہ خوړل پړکی توتا ن

پرون چہ جہان روان[*] وو، و زمالنګ ے ودان

پرون دَچا پہ دین وُو چہ دانن شو مسلمان

زما دَ بنا د ئ مشرو ستاوی غم کښ کمہ پتہ

اوہ تتہ تتہ خرو او تتہ تتہ

زمالنګ پہ واورہ دَ بونډ ئ لګئ دِ خاړشم

دښمن م دَ دښمن شہ نوڼو یاڼ بہ ستا دیار شم

کہ څے دَ جانان کورتہ زہ بہ ستا دخپو غبار شم

تہ زارشہ پہ وطن نوڼو بہ ستا دَ ستر ګو زار شم

تش منہ خورہ قسمونہ ستا شہ توړو ژبہ تتہ

اوہ تتہ تتہ خرو اوہ تتہ تتہ

تہ نوم دَ اسلام اخلے پہ اسلام پوړے خندا کړے

مستی ھم دومړ بو یہ چہ دے تام پوړے خندا کړے

دعوہ دِ دَ عاشق دہ دیار بام پوړے خندا کړے

کہ سم نہ شوے روان چوکہ بہ دړ وُرمہ بښکتہ

اوہ تتہ تتہ خرو اوہ تتہ تتہ

الیکشن ۱۹۳۵ء

———

* ، روان = وران ۔

# مسلمان

مسلمان هغه بنده دے، چې ئې شونډې تل مسکې وي
سترګې ډکې د رڼا ئې، د ګُلے یو په سل مسکې وي
سپین ایمان ئې لکه تندر، بے د ځانه هرڅه سیزے
د جانان د دړایړو تے ئې لغے ول په ول مسکې وي

چې ئې زړه ډک د آرام لکه وریځ د سمندر وي
خُله ئې ډکه د ګلونو لکه باغ د صنوبر
دا سے مست دے سرشاره لکه مینه د کافر
اراده ئې لکه بے کړکے لکه څوکه د خنجر
د وجود هر ځا ښکے وینه سره په مینه د دلبر
په سینه کښې ئې رڼا وي لکه ځرېکه د جوهر
په ژړا کښې ئې تاثیر وي په خندا کښې ئې اثر
مټ ئې بر په هرڅه بر وي لکه مټ د سکندر
د زړه نور ئې لکه شمع په اور ورنه بل مسکې وي
د بلبل د خُلے آواز ته د غوټې د ګل مسکې وي

# ساقی

دَ ساقي لاس کښې شراب دی، دَ خندا دی که دَ غم دی
چه دَ سوز او که د ساز دی، دَ مستئ که د ماتم دی
ساقي ستړي مهرباني، خو بڼ کړې په ستم دی
دَ ساقي شونډو مدهوش کښې خيالونه دَ کرم دی
دا تپوس زمانه مکوه، چه دا ډیر دی او که کم دی
دا نشه هم دَ صنم ده، دا شراب هم دَ صنم دی
ميخانه هم دَ صنم ده، مستانه هم دَ صنم دی
زه ئې ځکه ستا په نوم، دَ جمشيد که د عدم دی
جام په سر سر په سجده يم، يو قطره دَ خمار غواړم
دَ دلدار وصال په کيږي زه تش خيال دَ دلدار غواړم

نه خوشحاله دِ وفا کړم، نه خفا دِ[*] کرم ستم
ژوندي يو تال دِ چه عزيزي، کله زير او کله بم
دا يو دوه کړې ژوندون، په خندا خندا تير که
دا جهان خدائي جنجال دے، کله ودان او کله سم

(*) خفا ـ حصه ـ

# نوے کال

خاوندہ بیا سپرے شو دنیا یو کال وارَوُ
چا پہ ژړا وارو، چا پہ وصال دارَوُ
چا د نتو پہ شان پہ ساک او دال وارَوُ
چا د صاحب پہ شان دَ بل پہ مال وارَوُ
څوک پہ سفر لاړل بلخوا ئے مال وارَوُ
چا د جانان پہ سَر دَ خاورو شال وارَوُ
چا دَ ګُنګرو پہ شان پہ شرنګا شرنګ تیر کړہ
چا دَ سپوږمئے پہ شان پہ رڼا رڼګ تیر کړہ
او غنی دا هم رہبہ لکہ پخوا وارَوُ
خندنے پہ خندا وارَوُ خندنے پہ ژړا وارَوُ

# زه

زما بخت د شمع بخت دے یا به مرمه یا به سوځم
یا به ویخ له دَ دریاب ځم یا به پاس په چپو خوځم

عجب زه عجبه لاره عجیبه کاروان روان دے
ما رسوتی پراو له بیائی که زه ځمه او که نه ځم

# سپېدے خلاصیږی

تاو د غرمے لاړه ماسپښینے شو — لکه د منی یخ باد د سپینے شو
سهر د سترګو دیر خوند د زړه کم شو — او د فراق استازخمے د صنم شو
ساز کښې سرونه نن د خاموشئ خیژی
د هوش جنګے په کور د بیهوشئ خیژی
د شفق سره رنګونه شو لړه توره — بادشاه شو ښکلے شو د خپله کوره
او ستا کښې شړنګ هغه د ما بنام نشته دے — سهر په سترګو کښې د خیام نشته دے
څپے د رقاصے سرے خو تال ئے هغه نه دے
بانګ د بلال هغه بلال ئے هغه نه دے
په جام کښې کوټ کوټ شراب کیږی — سپېدے خلاصیږی ګلاب کیږی
او رڼا د شمع کښې د سحر نور راغے — باغ د بلبلو ته نوم د باتور راغے
د غمو سترګو له خیال د خزان راغے
لږ مستی لاړه او لږ ارمان راغے
او د فراق سورے په وصال پریوته
ستوری راوختل او هلال پریوته

# د جیلخانې خوب

(۱)

خوب وینم عالمه که ئې څوک را کړی معنیٰ

پروت یم سر مې اېښې د خپل یار په زنګانه

خوب وینم چې پورته په هوا لکه د باز شومه

کیناستم په بام د محمود ستر ګې د ایاز شومه

پورته د خاموش زړګی نه خوږ د مینې ساز شومه

خوځه مې په حورو کړه د دمو زمانه

(۲)

خوب وینم چې ناست یم د جیندی (۱) په ښکلې غاړه

شاه مې سویلو کښې لکه سره شمع ولاړه

سرې شونډې مسکې شوې ما ته ئې وې چې ژاړه ژاړه

څکه دې د زړه وینې دا شراب دی مستانه

خوب وینم عالمه که ئې څوک را کړی معنیٰ

---

(۱) "جیندے" د هشتنګر د مېنځ هغه سیند دې چې [illegible]

اته واړه کلي ئې په غاړه پراته دي. (غني)

(۳)

خوب وینم چه باغ دے د گلونو اومابنام دے
سرے سترگے ساقي دساقی سره گوتوکښ جام دے
لاس په ستار پروت لیونۍ مست لکه خیام دے
اورئ پرِ نوۓ نزۓ د مینے افسانه
خوب وینم عالمه که نۓ څوک راکړی معنیٰ

(۴)

خوب وینم چه سپینه سپوږمۍ پاس په خندا راغلله
ماله محبوبا په شرم شرم ترخوا راغلله
شونډو کښ شراب اوپه کوگۍ کښ قضا راغلله
سر خمارے راکه پیمانه په پیمانه
خوب وینم عالمه که نۓ څوک راکړی معنیٰ

(۵)

خوب وینم چه پټ شوم په نسیم کښ بهر لا رمه
خواله د جانان لکه د مینے نظر لا رمه
سترگو د دلدارله لکه خوب د صحرا لا رمه
یو شرنگ کښ م لوټ کړه د عمرونو خزانه
خوب وینم عالمه که نۓ څوک راکړی معنیٰ

(۶)

خوب وینم چه زړه لکه لولکه په سیل او وتم
پورته د نرګس نه شوم په خوا د راميل او وتم
ناز د سپېي عارے د لیلی په امیل او وتم
پته م ورته ورے سلامونه جانانه
خوب وینم عالمه که نے څوک را کړي معنی

(۷)

خوب وینم چه پورته لکه چغه د منصور شومه
یا یو مټے خاوره وم یا لوئے دریاب د نور شومه
خوب بانګ د سحر او شو زړه را وېښ شوم کړو کور شومه
خوب یوړه خوبونه راجمد[*] مے شوه زمانه
وی پریوزه لیونیه تیره وه د جیلخانه

غني

حیدرآباد جیل - ۱۹۳۰ع

---

(*) جمد کے، زوندی۔

# کړے وړے

وا وره فلسفه د لیونتوب د لیونی نه
دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ما ویلي

مرګ او ژوندون یو ده، غم او خوشحالي یو ده
ژوند چې چرته نه وي مرګے چا هلته لیدلے دے

زړه لکه د جام دے خوشحالي غم ئې شراب دي
تږے به رخصت شي تا خو غم ته نسکور کړے دے

خوند که ئې جدا دے، دا نشه یوه د دواړو
دواړو کښې خمار لرې د ساقي دستګو تلے دے

مرګ کښې پټ دي راز د مرګ ژوندي پې نه پوهیږي
دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ما ویلي دي

# قید

دسحر تیل او دال — دماښام داں او تیل
نه کوتکۍ په کټ کښې — قلیې (۱) دعطر او فلیل
دسحر دوه چپاتی — لکه ژړې چیړې
دا سې خوارې اوپاسته — لکه د خرو تغرې
چپاتۍ لکه یخه سپوروا — په تر وې کړې توره
پیاله د زیړو دولچه — اوس را شه خوند کوره
بستره د برګ تر پړې
سوزنۍ توره کمبل
او یاراڼې له د شپې
خار په خار په کهټمل
محفل د ښکلو خلقو — قول بزرګان شریفان
یا متهیزک کسن کپان — یا اجرتی قاتلان
چه نور زیړې شي هیله — ماپه پنجره وکښی کړی بند

(۱) د جیل چلکې کښی د بولو لوښه هسم پروت دی.

لکه مرز په قطار
په بلاړو کښې کړې بند
تمامه شپه گرزی
دم په دم کی تفتیش

ته به وے چرګ يمه زه    يو به مِ سی پناپيش
د بنديدو سره    همه دنيا دَ بهر
يو تورِ لړه شی    کښېنی مِ ان په خُکر
دَ جهان قول نمونه    لکه سيلئ راشی
دَ زړګی سرله بهِ دِ    لکه کوڼئے راشی
اوچه ارمانونه پکښې    لا د لوڼئے راشی
لکه د مری په کور    چه سره دولئے راشی
اوچه دے باغ دګلو    مابنام رايا دشی
لاچه دِ ډک دَ مستئے    سورجام را يادشی
که دا خدمت وی دقام    زمونږ توبه ده
دا دال اوتيل مضمول
ګرانه قصه ده
اولا په دے کښې هم
غنی غزلے وی

د عشق اور دے مزلے
په بلے بلے وی
ولے په تشو اوبو
شاعری کرانه ده

چه تاؤ د اور نه وی — زرګری ګرانه ده
قاضی (۱) صاحب وی د قرآن — سحر، مابنام، مازیګر
خان له ئے کینو آواز — او ماله ئے خوږ که سر
که میله غږ کوو — او س راته وائی آیات
قهر په مست او هوښیار — رحم په صوم او صلوٰت

خه او کړو صبر به شو
دا د الله نه ده
ولے په تشو اوبو
شاعری کرانه ده

غنی
حیدرآباد جیل ۱۹۴۸ع

---

(۱) قاضی عطاء الله وزیر تعلیم زمانه حیدرآباد سند د جیل ملګرے دے. نوموړی د پښتو شعر په یاری شخصیت او لیکوال (۱۹۵۳ع مړ) قاضی د پښتو تاریخ هم لیکلے چه په څلورو ټوکونو چاپ شوے دے.

# خاورے

نه منم نه منم یاره مرګ انجام د هستئ نه دے
خلاصیدل شراب په جام کښې اختتام د هستئ نه دے
چه ماښام د ګمې شپې وي نو د مخے سبا هم وي
چه رڼا وي تیاره وي، چه تیاره وي رڼا هم وي
که یو نه وي بل هم نه وي، او چه وي نو وي به دواړه
دے دریاب له چرته شته د لرے بله یوه غاړه
زر سحره د بهار دي یو ماښام کښې د خزان
شل خمونه د ګل وعطرو یو دانه کښې د ریحان
چه یوه غوټۍ شي خاورے تخم وکړي روغ ګلزار له
د خپل رنګ او بو تې پناه و نه شکرانه یوسي بهار له
دا جهان د نور او سوز، ولے روک شي چه ساز چپ شي؟
چه جانان په ستو سترګو ګوتے وړ وړ دي ستار له
په قبرونو کښې پرتے دي لاس او خپے شونډه او ګوتے
څوک شي تېر جوړوے د سرو سترګو خمار له

جام ئې مات شو میخانه کښې لیونے تے غلے پاڅید

زړه مے دِک د رنګه یوړه دے روان کوځے ډیار له

ساقي نوے جام راواغښت په سره شونډو کښې مُسکے شُو

بل عاشق ورته لاس ونیو شکرانه تو لی ئې دلدار له

مُلا بے سره سرورو تش کنډول د مرګي یوړه

خاورے خاورو له لاړې کنډه او کنوئې خوار له

غني

حیدرآباد جیل ۱۹۴۸ع

# دخوبونو جهان

زما په وینه دخوبونو لوی جهانه
په شپه کښې راشی په ورځ بیا لاړ شې له مانه
دستورو باغ پیدا دخاورو دانسانه
ښیسته دګلستانه راځه ماله راځه

دا ینې عکسه ولې بل خواته ورکیږې ؟
سوره لوګیه آسمانونو کښې پټیږې
دصحرا سینډ چرته ځې کوم خوا غیبیږې ؟
وچیږې وچیږې راځه ماله راځه

دسیلۍ آسه دآسمانه غورځول کوې
اول دا روښې بیا دزړونو ماتول کوې
دیو کارنه ئې او په ما کارونه سل کوې
وژل کوې وژل کوې راځه ماله راځه

# اَے باد صبا

ته څه خبر یې اَې باد صبا — څه دنیا کانې تالا کړې مونږ
هېرېم کړې زلفِ خورې ورې — زلفې جانانې تالا کړې مونږ
هېرېم که هغه دَ نور سبا — هېر مستانه لیونې ما بنام
هېرېم کوګې مینه ناکې کړې — پرېوتې دې اړولې دَ میو جام
ګېې د کې زولئې دَ نور — څه په خندل مونږ نو ستا لې دي
سرې صراحۍ د رڼا او ساز — مونږ په صحرا اړولې دي
سترګې چه وې دخمار ډکې — مستې د ړوند د شرنګار ډکې
پور د شرابو پیالې دَ ناز — ښکلې د سُرو او سینګار ډکې
روښ سو هېر شوې، خاورې شوې — یاد او ارمانې هم خاورې شوې
پانې ګلاب او غُوټې څه کړې — غم د خزانې هم خاورې شوې
ته څه خبر یې اَې بادِ صبا — څه دنیا کانې تالا کړې مونږ؟
هېرم(*) کړې زلفې خورې ورې — شوندې جانانې تالا کړې مونږ

غني
حیدر آباد جیل

---

(*) هېرم : هېر مو.

# مهذب

چه خراب مې په سګرټو کړو پړپوس
او په مس مې خرڅ کړو دین ایمان ناموس
چه مې هیر ے د پښتو د ملک قصے کړے
چه په مسلک مې کړه بدل د وطن بوس
چه په نوم دَ پلار نیکه به شرمیدلم
شوم فدا دَ میس د خولے مرید دَ بروس
سوټ مې واغوست جهالت ته په غضب شوم
ماوراوره بابا اوس زه مهذب شوم

۱۹۳۲ ع

# سوداګر

عجیبه دا سوداګر دے — په لاس تیغ په سر قرآن

شنه قبائے دا امام ده — کلکې سترګې د شیطان

په خکر لکه چنګیز دے — چلولی لکه ماسان

په خُله خوږ د ګلو باغ دے — په زړه سخا لکه ویران

غرمبیده لکه زمرے کړي — غــریده لکه حیوان

پنجے د وبے په سرو وینو — ســرے بره په آسمان

---

ما ته وَې چه خُوانه راګه — ستا پښتو توره او ننګ

را ته وَې غیرت دې پریږده — شه زما د در ملنګ

وَې سرتیټ کړه کنې کړم به — په تا مسلک د الله تنګ

وَې زه هوښیار لکه ابلیس یم — زه خونخوار لکه پلنګ

ته را کوز شه ښکته کینه — ماله را د یار پالنګ

یا ما خدائے که سجده اوکه — یا زما او ستا دے جنګ

---

وې دا توره زما لاس کښ — ستا د ژوند اختیار زما دے

ستا خمار غیرت او مینه — د دے ګوتو ښکار زما دے

داشمله د ننګ کړه ټیټه — دیر تیره غوزار زما دے
د فرعون چنګیز وار تیر شو — اوس را غلے وار زما دے
شه غلام دَ دے غلام — په ده دیر اتبار زما دے
خاورو خټو کښې پرته دی — چه خوړلے وار زما دے

---

که زما شوے زما خوانه — ګوره دا د زړو تخت
پاس په دِ دَ پاسه کینه — خوشحالیږه په خپل بخت
داجامونه دَ شرابو — مسند ته دَ زر بفت
دا سپرلے دا پیغلے مستے — ستا دَ سپینے خوانئ وخت
داجنّت د عیش او زور — بل خوا اور داوره سخت
خوانه زه ساقی له وریشه — کړم دا سره سینه بابت

---

رَتبه خنګه سودا کړدے — خنګ زړ له کرم جهان واخلم
خنګ نظر دستر کو ورکړم — او چشمے د مرجان واخلم
خنګ بهار او سپوږمۍ ورکوم — دلا لونو دیران واخلم
د دکسه د طوق بدل کښې — خنګه دین او ایمان ورکوم
دَ دیدار دَ پیره خنګه — بے خودی او جانان ورکوم

---

دا د نور او مستئ ډک سر — په سجدو کیږدم غلام ته
دَ قصاب دَ چیچرو مینه — خنګه او بنا یم خیام ته
خنګ د بل دتا لی باتے — کړم چو که دمستئ جام ته

خنک دلدار په دنیا ورکړم | رقیب او خیژوم بام ته
د جانان خیشته سر خنکه | د فرعون په ښهو کیږدم
نه د لیلئ سودا کړه | تا د سرې وینې غوړنګ
په تیټ سر باندې نه ښائي | دا زما شمله د ننګ
د سرو زرو تخت قربان شه | په آزاد کنډ د ملنګ
تیتو سترګو کښ او چیږي | د سرو او مستئ رنګ
ستا شراب د زهرو کوټ دے | خلاصول کړي د ایمانه
ستا ساقي د چکلې دمه | په دوه نیمو پیسو ګرانه

---

زه روکېږه سوداګره | لیونی مونږ د دلدار یو
ته ئے اوږے دلالونو | مونږه اوږي خماریو
نه ئے دم نه ئے دارو شته | مونږ په داسې نخ بیمار یو
ته مغرور په خپل زور ئے | مونږ په مینه کښ سرشار یو
راشه اوګوره فرعونه | دا دوه د ملنګانو
په دے خاورو کښ خوړدي
کېږي د بادشاهانو

---

غني
هري پور جیل
۱۹۴۷ع

# کوګل

| | |
|---|---|
| دے کوګل کښې م د ننه | هم دوزخ دے هم جنت |
| دے کښې قهر او غضب دے | دے کښې رحم او راحت |
| دے کښې پروت یو سمندر دے | د نشے او د خمار |
| دے کښې پروت یو تصویر دے | د لمبو او د آزار |
| دے کښې پروت دے دوه رنګه | د سپرلي او د خندا |
| چه یو پرې نے پو جهان کړي | د مستۍ او د رڼا |
| دے کښې پروت دے دوه رنګ | د تیارے او د ژړا |
| چه یو اوس نے تور لحد کړي | د خندا ډکه دنیا |
| دے کښې دوه شجاعت دے | چه د ټول جهان مرګونه |
| یو نظر کښې تار په تار کړي | لکه باد وړي بوسونه |
| چه په یوه باندې راشي | زړه[*] غټ دے د منزک |
| واسے رپي واسے تښتي | دا او بو ښاخکے تے کلک |
| او چه کلک شي داسے کلک دے | لکه کاڼے د فولاد |
| نه پرے زور ترے اثر کړه | نه پرے زور کاله فریاد |
| دے کوګل کښې م د ننه | هم دنیا ده هم قیامت |
| دا هم لاره هم کاروان دے | هم تدبیر دے هم قسمت |

(*) تے : سړي

پرتو په دے کښې قول دستان دے | دَ جزا او دَ سزا
خور په دے کښې لوئے جهان دے | دَ وصال او دَ وفا
دا هم باغ دے هم خزان دے | هم بلبل دے هم بهار
دے کښې سره نیازبین کاونه | او د شنو او بو شرار
دا هم زهر هم زقوم دے | هم ګبین دے هم نبات
دا هم تور د مرګ ښادره دے | هم چینه ده دَ حیات
ده کښې پروت داسے شراب دے | چه یو څاڅکے د مغے
په بد مستۍ او سرشارۍ | کړی دا واره فرښتے
د چه څوک په بره دړومی | شی جبریل ورته حیران
چه په بد و باند راشی | امان او غواړی شیطان
عجیبه ډیم جوړ کړے | اے زما خدایه عجیبه
بے د تانه نور دَ هر څه | دَ همه یم مرکبه
دا داور او نور دریاب | دومره لوئے لکه آسمان
دومره روکے لکه څاڅکے | دومره لنډ لکه یو آن
دا قصه دَ سوز او ساز | ولے ولے څه له څه له ؟
خیشت او غم راز و نیاز | ولے ولے څه له څه له ؟

غنی
حیدرآباد جیلخانه
۲۳/۹/۴۸

# جناب شیخ

زړهٔ ډې ډک دے دَ خپل جانانه — پهٔ کښې ځاے نشته دَ یار
داسے ډک نے دنیکونه — لکه ډک دَ مرو ښار
دواره وسترګے ډِرندے دی — دَ بل بادَ خان ښه وینی
تل آئینه کښں ځانته ګورے — دیار نه وینے سینګار
ښناه ستا اوزګارے نه دی — چه صفت دَ آشنا وکړے
د خپل نور قصیده سے وائے — پهٔ کوڅه کښں دَ دلدار
داسے ته پهٔ نیکے مستے — لکه وُو فرعون پهٔ زور
د ړیا ښه دېنه تاو دی — لکه لوئے او تور حِصار
چه پهٔ بل کښں بدی وینے — خومره زړه دِ شی خوشحاله
د بل خیښت دے ته غلا ښکاری — ستا د تور تاریک جماله
دا شکور رانده چه وینے — چه دغرکوی غُرزیږی
دا هم ستا پهٔ شان روان دی — داچه پریوزی او پاڅیږی
داچه ته وربورے خاندے — دا مجنون او دا ملنګ
ستا قبا د ښنو ریښمو — او دَ دوی شلیدلے لنګ

دا هم زوے دے د آدم — د الله د کوتو جوړ دے
څه که ډوب دے په تیرو کښ — په شرابو کښ شور پور دے
دے هم غنی په چغو چغو — دے هم غلته روان دے
ته چه ئے د کرم په طمعو — هم هغه دده مکان دے
اے چه ډوب په فضل ډوب ئے — اے چه بره ځے خوشحاله
دده شور چغے هم واوره — دا هم خان له دی هم ناله
دا چه د پړپړ غ پریوزی — تا ته ښیئ تیندک د لارے
دا دے سرماتے ولیاء — خکه ته روان او بنیارے
شیخ چلو د نیکو ډکه — گنهگار دے ستا استاد
ستا دعا د ځان دپاره — ناله دے د ده فریاد
ستا د ښو دیوه بلیږی — په سینه کښ ځان دپاره
دده سرے لمبے داوردی — د همه جهان دپاره
دے تصویر دے د آدم — د ختو او پریوتو

او په سوو وزرو نو
د پتنګ د الوتو

غنی
حیدرآباد جیل
۱۹۳۹ع

# تاریخ

دخوبانو سره مینه
ده خوراک دزړګی وینه

چه دبانړے وی تندی کښ
تل به یخ وی ماه جبینه

زنګ وهلے توره چړے
تویوی نه سکے وینه

قتل عام دمښے کار دے
چه خلیږی تاه سینه

دخزان رنګ دسړی زړو
دغنی یاره حسینه

# ساز

شونډو له خوند اوسترګو له رنګ
پوزې له بوئین د نرګس د لونګ
زړه له امید او مستي او ارمان
غوږ له سرود او شنار او شرنګ
ماله سرور او جمدون او نور
دا څو آوازه د ژوند د رنګ
تق تق د اور تپ تپ د باران
آخ آخ د وصال اُف اُف د ارمان
وی وی د جنون وخ وخ د صنم
نانا ، او او هر وخ د صنم
قت قت د خندا پرق پرق د مستې
شرنګ شرنګ د پانزیب چن چن د لښتۍ

شہ شہ دا دبو — شغ شغ دَ نسیم

بس بس دَ دِلبر — بر بر دَ غلیم

ہیں ہیں دَ ڈھول — شنک شنک دَ گولئے

قر قر دچلم — پر پر دَ لولئے

دُم دُم دَ دوپرے — تنک تنک دَ رباب

غر غر دَ پیالئے — سخ سخ دَ کباب

چپ چپ دَ کوکئے — پس پس دَ دلبر

چر چق دَ تارو — کوکو دَ کمتر (*)

بس بس دا آشنا — بد بد ے روان

ایش ایش دا قلم

ہاں ہاں دا بیان

غنی

حیدرآباد جیل

۱۹۴۸ء

(*) کمتر: کوتر و کبوتر۔

# صاحب

زوے مِ راغے دیورپ د تربیته
جوړ سنبال لکه دَ ناوے پوته ښکته
تریو تندی پوړ دی مخ ئے وُو نیولے
تا به وے وُ د لاتانو دَ محلته
دَ ډوډئ اودنیشن سره ئے شوق وُو
ډیر نفرت وړله وړته دَ جماعته
لکولو د پیسو کښ افلاطون وُو
خو کتلو کښ غریب وُ بے همّته
نن چه ما وړته په فکر نظر وکړو
خرمهره وُ بس نوئے ده کته

۱۹۳۰ع

# اور

ګنهګار یم ګنهګار یم — هم د خدای هم د دلدار یم

بې وفا په محبت کښې — نفس پرست او بې اختیار یم

مینه مینه په خوله وایم — مینه نه لرم حیوان یم

نه م لوظ نه م قسم شته — نه مین په یو جانان یم

چې کم ځای ځواني او رنګ وي — چې کم ځای د ګلرو شرنګ وي

چې د چا د تمبل ټنګ وي — نو زما ورته غوږ ځنګ وي

یو مکه د مسلمان وي — د کافر یو بت خانه

هره ورځ زه بدله ومه — نوې نوې میخانه

هم م مینه ده بې پته — هم ګناه م بې وفا ده

چې م کمه نخاغ وي — زه وېم دا خما لیلیٰ ده

کله لاړ شمه جمات ته — په سجده په زاړې پرېوځم

مثل سجدې م کړې نه وي — بیا د چا په یارې پرېوځم

یو سوز او درم دِ کوګل کښې — ما سوزي د نه بهر

نه دې یخ خونه دې کم شو — چې دا اور دې که سقر

که ساقي د کوه قاف وي — که شراب وي د شیراز

بس پیکه م تر زړه کې شي — چې معلوم نې کړمه راز

کہ ما ښام وی کہ سپوږمۍ ئې    کہ وی راز او کہ نیاز
روح م تنگ لکہ لحد کہ    کہ وی سوز او کہ وی ساز
دا زہ څہ سپسے حیرانہ    سرگردان پریشان گرځم
دا زہ کم خواتہ روانہ    پہ باغچہ بیابان گرځم
گنہگار یم گنہگار یم    آدم خور یمہ خپل ځان خورم
خپل ښایست خاورے کومہ    اژدہار یم خپل جانان خورم
دے پہ زړہ د ښہ اورم    رو رو تن لوگے لوگے کہ
ډیرے(٭) گرہ سرہ کلونہ    شین چمن لوگے لوگے کہ
دے، دا اور ھسے خوراک کہ    نوے نوے امبار غواړی
نوے رنگ نوے محفل کښ    نوے نوے خمار غواړی
دے، دغجن یم دے، وغجن یم    داد قسمتہ کوم فریاد
نہ یم تنگ زہ دَ دے اورہ    زہ پہ دے یمہ آباد
زہ بہ دہ لہ خاشاک گورم    کہ باغچہ کہ بیابان وی
زہ بہ دہ تہ لوگے کومہ    کہ خوانی وی کہ جانان وی
دادَ دہ پہ شنو لوگو کښ    زہ اوربل د دلداروینم
دادَ دہ پہ لمبو کوے، د    زہ سپوږمۍ اوگلزار وینم
دے زما پہ وینہ پائی    زہ د دہ پہ لمبو پایم
دے زما وجود او سادہ    زہ د دہ وجود او سایم
چہ ددہ پرق او شنہار وی    ھلتہ ژوند ھلتہ انسان وی
چہ ډیرے دخاورو توب کی    ہلتہ خزلہ دَ ویران وی

(٭) ډیرے ، ایرے .

لیونے یم لیونے یم ‎ ‎ نه م سرشته نه سامان

نه په مینه مستے پوهے شم ‎ ‎ نه په سود او نه په زیان

عجیبه سبے زوره لار ده ‎ ‎ عجیبه پېچ خمی کاروان

که قدم اخلم غورځېږم ‎ ‎ که او درېږم مه تاوان

عجیبه غونډ شراب دی ‎ ‎ چه ئې څکم لا تږے کېږم

عجیبه من او سلوی ستا ‎ ‎ چه ئې خورم لا وږے کېږم

دا په زړه دننه اور م ‎ ‎ که ئې وژنمه روکېږم

که ئې نه وژنم سوزېږم ‎ ‎ لوګے کېږم ایرے کېږم

لکه شمع بدنصیبه ‎ ‎ لا به سوزم لا به مرمه

لا به خان تالا کومه ‎ ‎ لا به تور دریاب له ځمه

بس دے بس که لیونیه ‎ ‎ داد ولے ولے باب

جام که ډک سکے که پیتے ‎ ‎ تنکوه دِ خوږ رباب

ور نږدے شه ور نږدے شه ‎ ‎ چه د یار شونډے شکرے

رو په مینه مینه اوکړی ‎ ‎ دوه خوږے خوږے خبرے

تورے سترګے بلېږی ‎ ‎ لکه شمعے د معراج

دغه سرے شونډے کښې اورد ‎ ‎ اوردے هم دا اور علاج

په سرو ګوتو کښې جنت دے ‎ ‎ که دوزخ دے که بقا ده

وی سوزه سوزه خانه خانه ‎ ‎ ژاړه ژاړه دا دنیا ده

غنی

حیدرآباد جیل

۱۹۴۹ع

# آدم

عجیبه م وجود لا عجب م خکر
څه بې تو که بې توله دا سترګې او سر
یا په بام د حرم د مستې ترانه
یا په شپه د وصال د نفلونو بهانه

یا موسی ته قیصې د فرعون د محل
یا فرعون ته بیان د ابد د اجل
یا د غم د بي بي نه سرور غوښتل
بُت خانه کښې پرتونه د طور غوښتل

کله روح د مجنون او ساقي او پیاله
کله نُسر د خیام او ژړا او صحرا
کله خوب د منصور د رنا د وصال
کله شوق د حبشي د کوکې اوَد خیال

کله ډوب بې پایانه کوسې د غم
کله هر و پیاله کښې صنم صنم

یا دَ ژوند کاکوکښ د مرګ تصویر
یا دَ مرګ ساګوکښ د ژوند تعبیر
یا پیغام د فراق په خندا کښ دیار
یا امید د وصال په ژړا کښ دیار

یا دَ جیل کوټګۍ کښ خوبونه د کور
او ایروکښ ارمان د رڼا او دَاور
دا بېخوده دماغ بې کماله وجود
پچاری د منندراو شوق دَ درود

هم غلام د بناېست هم مرۍ دَ وفا
هم دریاب د تیرې هم مستۍ او رڼا
بې آرامه ارمان بې قراره نظر
څه بې توکه بې توله دا سترګې او سر

یا په بام د حرم دَ مستۍ ترانه
یا په شپه د وصال د نفلونو بهانه

غني
خان پور

# نه کیږي په عقل

سپین وینبته دِ تاوکه ستو کے خنه ترِ جوړه که
قرض رنګ پرِ توی که قالین جوړ دخپله بوږکه

نه کیږي په عقل توکل غواړي دچرسیانو
نشته دے ګلونه په کوڅه کښ دَ ملیانو

دلته سبانګونه دی تالی دی رکیبۍ دی
دلته شراب نشته پیکوړی او زلوبۍ دی

عقل له سرور کښ سره عقل کښ کوز نشته
داخبرے ماته م رو روکړے آبۍ دی

مینه خو یو مینه وی نه سود وی او نه زیان
دلته په کچکول کښ خوړے شوے نوابۍ دی

لاړو دھو بنیار په کنډو کنډو په دړد ړه
مینځ دلوړے ژوړے دَ او دکه داسے ړده

داسے آواز کوړۍ چه نه زیر دی او نه بم وی
خوسته نے رباب کښ خاموشی د مقبرو ده

او بن خوار له یا لوړه او صحــرا او و یا مهار وو
خو د موسیٰ د ورد ے خو مینے د ے په جوار وو

کوږ د طمع خه د ے تور محل د بلا کانو د ے
روح نا د ے کول په دوکلی کښ دېره یانو د ے

تش د کباب خوند له اسمٰعیل حلال دی دا
ما دا او ریدلے په کوڅه کښ درندانو د ے

زور او غرور نه لوی عشق صبر او ارمان د ے
سر او سر ورنه لوی سجان د ے او جهان د ے

رحم نه انصاف د ے یو تدبیر د ے د دوام
هر څوک نے پکار د ے که خیبر د ے که خیام.

شنګ وی د نزد ے نه او دوکے د لوے لوے
د واړه غزئی یو شان او یو د تنګے خبرے

دکی د ظلمه زور ه د طاقت د بازپرے
جوړے د مهین او رنګین بوی د کل ورد ے

کومه لا رچه اخلے خو مقام نے بس یو د ے
دلته زر جمانه دی امام نے بس یو د ے

ځکه لیونے د ے مرور شتی کله کله
بل خواته ورتاوکړی د اد هوش تمته شله

پریوزی په پرواو کړی بغانه کبس دیوه بله
خپسې سپینې پولۍ طمع تاقتی دَ منزله

تاته اودسرورد ے یوماروله وړنې اوکېښ؛
اے دسپین اوتور ماالکه څه مزه ده تورکبس؛

وله زمالال دی پروت په خُلے کبس دَ بنامار
وله دے ګلاب له نه اوربل اونه بهار

وله دِ بندی که خاشکے تن کبس دَ ډندوکی
غوارے ترچپے دسیند سازونه دَ ابشار

ماله مرګ اوژوند دے تاله تښ دَ خپنے ول دے
اورکبس دَ بل کړے وله حُسن الول دے

اورته دے نبوله یم فولادجوړے زمانه
سنه چه زه فولاد شمه نوځه زما جانانه

جستو فولاد وله جوهـرو له کمال له
بس خاورے کیږدی روکیږدی دَ دُنیا نه

وله دِ ورانو لوله جوړ کړے سورمحل دے؛
اورکبس دے بل کړے وله حُسن الول دے؛

ډیرهٔ اسماعیل خان
۱۹۵۰ء

# اختلافات

پلار مې ورک په خپل وطن
زه د خپل وطن نه ورک

د هغه خوښ دے تعلیم
زما خوښ ساک د پالک

د هغه خوښ دي ځوانان
تول د قام په جنګ روان

زما خوښ هر ګلستان
هر چمن د لولو ډک

د هغه وطن جهان
دا بے نوره بیابان

زما ملک ښکلے آسمان
د ښیسته ستورو نه ډک

# لوږه

چه شي خُله د خوږ وسپوږمۍ
د دنیا خوابزه همه

نه ملام ملام یادیږي
غونزاخې(*) او تتلمه

چه شي خیته ډیره وږې
د دنیا کُل خوراکونه

نه په سترګو کښې غړیږي
سیخکي او کبابونه

چه شي سترګې ډیرې وږې
د دنیا ګلونه واړه

ورته ځکښې ځکښې کیږي
تورې زلفې سپینه غاړه

چه شي شونډې ډیرې وږې
د جهان همه خوبانې

ورته وړاند وړاندې کیږي
سپینې تورې سرې ورانې

چه زړه کړې د مینې سپور شي
تیرې نوې خوشحالې

پکښې د نه ډکې ډکې
لکه ناوې په ډولۍ

او نږیم او نږیم داسې وږې
په یوه کوکۍ ورکومه

دا جهان او جنت دواړه
په دووسو شونډو خرڅومه

کښینه کښینه لیونیه!
دا لخته وهه کوکارې

دا مزې د دې نصیب کښې
چه ته زوی د داسې پلارې

---

(*) غونزاخې: انځور

آخر خله به د خوږ شي | کبنینه وایه ګوکړه
د قسمت غاخاورے کړي | راغورځي کند ته لوړه
که بهار کښ دی ګلونه | نو میوے دی په خزان کښ
سبا دغه دے راوخوت | ستوری ښکاری په آسمان کښ
سره ګلونو شنو اوبوله | بیا به لار شي هستګرته
په نو توب عزت به کوړے | خوږ به ستر کو د دلبرته
بیا په غاړه د تالا و به | د سرو میو ډک کړے جام
بیا به ګرزے په مالتو کښ | د سحر او د مابنام
بیا به او ترے په یوه | برګ او مست هندکی غوایان
بیا به نیسے په جینئ کښ | مار مهی او سره کبان

بیا به شور شغرب د ژوندی
د یارانو وشتے مستے
چپ چپ شه مخکښ مه ځه
ژړا را غله بستے بستے

غنی
حیدرآباد جیل

# ویش

باغ کښې ځوک ګلاب شي ځوک شي سرې ځوک ورخارې
ځوک د مینې غنچه شي ځوک کبل د غاړې غاړې
تاج د چا د زرو د چا تاج شي د غمو نو
ویش د بل په لاس دې که ته خاندې او که ژاړې

# دَغم لوُر

لنګه تیاره شوه د نړۍ را وړه
آدم چه مست شو حوائے را وړه

مرګ چه د خپل ژوند تالاش کښې د وت
ژوندون ئې راوړ او سائے راوړه

توبې چه جنګه د کفر او کړه
د مال ئې پیدا که قلائے راوړه

چه او بنګے سره شے شراب ترجو ړشو
چه غم بابا شو خندائے راوړه

# زور

خدای چې پیدا کړ دخان نه زور
کړل ئې تر لاندې خیزونه نور

سړې او چت کړ تر نیم آسمانه
بادشاه د هر څه ؤ بې سره زور

الله موسکې شو حسن پیدا شو
طاقت په مزکه پریوت نسکور

# بُت

دا شوندې سرې د ګل غوټې
دا شوندې سرې ورې ورې

دا شوندې سرې قطرې دَ ناز
دا مجسم مکمل نیاز

تش او وچ د زړه کوټه دا
رنګ د مستۍ او ارمان خوري

ما بانده نښې او خوږې لګي
ماته نقشې د جانان خوري

دا خوږ ژوندون مست شوی دی
مرګ پورې مسخر کوي

دا خو ګلاب خندا نه کړي
بل پسرلي ته آسرې کوي

داخو د تور مرګي په مخ
رنګ او امید دَ دنیا خوري

دا خو دَ مجنون سترګو ته
خیشت او سینګار د الله خوري

پوهې د مدوي د آدم په راز
پوهې په تللو د سوز او ساز

ټولې قیصې نې یادې دي
ټولې قیصې د راز و نیاز

دا د عیسیٰ دَ لاس په شان
ژوند او امید او خندا خوري

"بت" ورته ښکله او وایمه
ماته چه نور او رڼا خوري

# پیژندګلو

هوښیار هغه وي چه ځان ګڼي خر توب وینی
خر هغه وي چه چل ځان ګڼي هوښیار
عاشق هغه وي چه طمع د څه نه که
په شرنګار په مخ ځي لکه آبشار
غوث هغه وي چه له ځانه خبر نه وي
خو خبر وي له ژړا د غریب خوار
چه د قام د پاره دانګي اول او ورته
د هغه منم بریتونه ګوره دار
غني هغه د چه سر دے د بے سرو
کله خر کله نقلي کله هوښیار

# وَلې؟

ګل له بنده خاندښت — سترګو له پسته رڼا
شونډو وکښ دابیخودي — شونډو وکښ نشه نشه
خیښت له دچل خان پښان — نور او سینګار او خمار
یار له دخندا په خاے — سپین دسهو ګلونو خار
سینې له دَ زور دَ سمندر — زړه دَ بادشاه ورکه
ساز لره آواز، اثر — خاندښت، تا دښنا ورکه
ماله دغمونو ارمانونو — جهان را که تا
ماله زړه کے پوست او مستانه — او حیران راکه تا
او سترکے خمارے دَیار — دحُسن د آرام ډکے
کله د سپوږمۍ درڼا — کله د ماښام ډکے
کله دَ ځوانۍ دامیدُنو — د اَرمان ډکے
کله لیونے ستا دخمار — او ستا د شان ډکے

اے دَ دوزخونو قیامت او د حساب رَبه!

اے دتورو زلفودلالونو دَ رباب رَبه!

اے دَ مستو ستر گو دنرگس او د گلاب رَبه!

اے دَ مینے حسن دځوانئ او د شباب رَبه!

اے دَلولکئ دحُسن اے دگل دخیال رَبه!

اے د راز او نیاز او دَ نسیم اود ملال رَبه!

ولے دے دحسن نه

جوړکړه دا د خاورو بنار

خیشت له دخپل خان پشان

نور او سینګار اوخمار

# باچا

بادشاهي د جهان څه کړې؟ — ځان له دې زیاتې غم
د انصاف تلل مشکل دي — څه به ډېر کړې څه به کم
خپل غمونه ډلالړ دي — د جهان غمونه غواړې
داسې تخت بخښه کړې څه — چې پر شپه اوربه ژاړې
د تنتوانو په سلګنو — غټ تنو مخکښې روان دي
لوی باچا د ښنا ورو — د هماولونې حیوان دي
دا دنیا د سپي لکۍ ده — نه نیغېږي نه سمېږي
په وجود توره پیشو ده — چې ئې وینځې لا تورېږي
بادشاهي هله جوړېږي — چې نیم لګې شي نیم مړه کړې
چې یو کس د بل په غوښو — د خپل کور کوترې ماړه کړې
ددې ژوندې څه مطلب شو — چې یا مړې یا به بل وژنې
دا میوه ګلاب دِ څه شو — باغ ساتې او بلبل وژنې

رتبه مساله که دراکړه　　باد شاهي دکل جبه
زه به ئې وغورزوم له کوره　　لکه سوې په ویران
دایو دوه ګړۍ ژوندون زه　　په جګو ونشم تیرولې
ددې ظلم په کتوئې دې　　رتبه بل کیږدی برغولې
مالدار کړه خو کلونه　　یو نیازبین شاته جانان
یو ورو کې غونډو باغ　　او په خوائې سیند روان
چه ئې زه په غاړه ناست یم　　په یخ سوري دخرولې
په مزه مزه لیکمه　　د مزې مزې غزلې
کله سوال منت جانان ته　　کله بد او رد مُلا ته
دساغرساقي صفت کوم　　دتبهرو دک لاله ته
کله کله تا نه رتبه　　د ورو په شان ګیلې
کله تور جمشید[۹] امید　　کله سوې اسویلې
کله تنګ کله تکور　　کله جام کله دلبر
یو جهان کښ درنګ ووب　　دجهان نه بې خبره
بادشاهي مغوله وړکه　　چه زغملې ئې شي زور
چه په لاس لکه قصاب وي　　په خصلت لکه منکور
چه خپل خان ته شي کولې　　قرباني د رورد مینې
هم مفلحو هم خورېشي　　دغریب دغونبو بینې

(۹) جمشيد ته اړوند ده.

تاج ورلے هغه سرشي　　　چه وژل لکه وباکړه

لکه پړانګ داړل شیرل کړه　　　یړول لکه بلا کړه

تخت هم نه پائي بے زوره　　　بے دتوړے دَ جلاَ ده

بادشاهان چه خوړه دین وي　　　دومره وي دنیا برباده

لوی بادشاه وي لویه ژوره　　　دے په وینو زوو پائي

بادشاهي لکه دَ اور　　　په روتو په سوو پائي

رتبه فضل په مونږ اوکه　　　مونږ ساته ددے آفته

چرته غټ خرته په شاکه　　　دا دسرولا لونو کته

سفارش ورته دا وکه

صیبَ زمونږه دَ بابته

وے پام کوه : دله خره

غنَی ونه وے(*) په لتَه

حیدرآباد جیل

---

(*) وے : وهے .

# دوزخ

دَ آدم دَ نظر تول دے — که دا تور دے که دا سپین

دَ آدم دژبے خیال دے — دا سپلنے او انګبین

دا آواز زما دَ ګوتو — پوست مروند تنکے کھین

دا زما د خګر لوبے — کل اندامه او شیرین

دا زما خودے جوړ کړے — دا وبو شراب رنګین

چاله بخر دَ شرابو — یو قطره ده دَ زمزم

چاله بخر د زمزم دے — یو غمګین مابنام دَ غم

چاته رو کے سپینه شمع — دَ سپوږمۍ نمره روښانه

خوک پیغام دَ جبریل واوري — دَ سرو شونډو ده جانانه

چاته سور په وینو تاج شو — چاته تور په تیرو تخت

چا په سر دَ صلیب ولید — چا په سور ریښمین بالښت

دَ موسیٰ پښان خوک سیځ کړي — په مروبت کښ مخ دَ یار

خوک ترے جوړ یوه ذرا کړي — خوک ترے حسن او خمار

خوک د کل د ماشوم مخه — دَ آشنا شونډے کړي جوړے

چا په خوا د نرګس و منت | چا ازغوګنې دکړو ړې
خوش نصیبه څوک ولاړه | په خندا غېږ یې د یاره
چا دَ ناوې د جوړې نه | کفن او شلوو د لالا ړله
ربه! ربه! زما ربه! | لیونے شوم په فکرونو
څنګه خور قهر او غضب کړم | په سپرلي او سړو کلونو
څنګه غوږ کېدم مُلاته | تورانے بلبله هيره
څنګه ستا د نور او خیشت نه | بد رنګی تیاره چاپېره
دَ خندا دَ سپين سبا نه | تور ما بنام او لحد جوړ کړم؟
دَ انسان د مایوسئ نه | سُره سروډابد جوړ کړم؟
دَ فقير دَ تلوسو نه | د بادشاه خمار کړم جوړ؟
دَ دوزخ داور او زور نه | ستا خایشت سینګار کړم جوړ؟
څنګه و منم تا جوړ که | دا جهان او آسمان دے له!
چه خيام روان په زور کړے | طوفانونو دَ کعبے له!
دَ مستئ دا دومره ډک زړه | بس پیدا او وسوسے له؛
جوړ دِ حسن یارانه کړه | د جزا سزا قیصے له؛
تا کړه جوړ د خپل خایشت نه | یو حسین یو نازنین
ستا دَ بنګته بهو سوړے | هرما بنام پوست او رنګین
تا خندل چه د ګلاب رنګ | دَ لولکے وزد یوړه

ستا په لاس، خیام، په جام کښې — بې خودي او دلبري وره

څنګه غم غني له ورکړم؟ — د قیامت او حسابونو

کړکه زړه کښې د بلبلې — د سپرلي او د ګلونو

څنګه شال د وینو سره خوږ کړم — د لیلی په سپین جبین

د حبشي د عشق لیواله — ښاپیرې کړم د ماچین

څنګه لاس کښې محبوباله — خنجر ورکړم د غماز؟

څنګ دېرګوي کښې ډوبکم؟ — د مینو سترګو راز

څنګ جهان حسن ډوبکم؟ — په یو څاڅکي د تیرو کښې

او د شمع رڼا څنګه — کړم بدله په ایرو کښې

ربّه! ربّه! زما ربّه!

لیونی شوم په فکرونو

څنګه خو ز قهر و غضب کړم

په سپرلي او سرو ګلونو

خانپور خیل

# ليونى

يو منبارے روان کړے د نوو نوو کوخودے
يو خيالے روان کړے د ژوندُ کى د تلو سودے
يو سُرے روان کړے تمکے سوز او تمکے ساز
يو عشق د حقيقت جوړ د عشقونو د مجاز

يو کورے روان کړے د خوبونو د رنګونو
د تورو تهترينو کړنګيدونکو سرنګونو
او خاندى ليونى سکړے د کے د مستونه
وحدت ے روان کړى د لکها بُت پرستونه

او کله ليونتوب فلسفه ګل او صنم وانى
او کله د مستئ خبرے د يرے په غم وانى
سرے پاسے ګل غوړيږى مخ د شبنم پرے پټوى
او ربل مست خوروى د ستر کو غم پرے پټوى

# زه

زه یم زه یم رنګ سپوږمۍ او د اوښو ښکار زه یم
د جانان سترګو کښې مړاوے خمار زه یم

د اتعبیر زما د مست زړه د تالاش دے
یار زما د زړه ارمان دے دلدار زه یم

دا زما زړه چه د خیشت او رنګ شي وربے
سپرلے سره کلونه راشي بهار زه یم

دا چه زه شم د مسکو شونډو لیوا له
لیلۍ جوړه کړم د حُسن معمار زه یم

دا خوږه د خکر سوز په هوا سور کړم
روح، مطلب، معنیٰ، آواز، دستار زه یم

چه زه نه یم بے معنیٰ جنت آسمان دے
د جهان د سوز او مینے مختار زه یم

دوه مړه پوی شوم په دے روکی غوندې ژوند کښې
یار زما کمال، د دلدار زه یم
خاپیرو جیل

# اوښ

لکئ دې دَ خرچوکي اوغړانګه دې د بتې
کوږ وږ اوږدان وېجاړ او دولس نیم ګزه اوچتې

په غوږو کښې عرب ئې او په شونډو کښې حبش
که پاوهم غوک دراچې، ورته ته شغ اخلتې

ډېر زیات بې نوره بېکاري ستا په پوزه کښې مهار
ډې دومره اوچت سر کښې د پستې نیستې زنار

نصیب کښې دې چنه ښته نه اوربشې نه شلتې
بس لونې دې انه بارونه، لګاوې تغرې کتې

ستا سترګې د شاعر دي تله د لچک د نواب
په شکل معتبر، معقول ملک ې د نیستې

خندا دې زړه کښې نشته په بنیرو دې تل خوله توره
بوډا په هغه ورځ شې چې پیال اشوې ته دموړه

مستي ورځې نوره او ځواني دې بې سروړه
غوږونه د نیلي، تش د نیلي د خیال غږه

اوږې دَ خپې دې د ډېنګ د توپ او تله بې خبره
دَ قبر په شان ملا دې د سرګي په شان مجبوره

ته تول ناکام ناکام ئې نه رنګ وینې نه خمار
همت او جوش دِ نشته ګرځه او بې ګټې خوار

په خیټه دِ ځان ورکه خکه ډوب سپک او دروند شوې
مین په پیکوړې شوې خکه پاتې د جلوس شوې

جنون خندا دِ ورکړه د زوزانو په بدل کښې
د حُسن بادشاهۍ کښې دړوندو وېرې جاسوس شوې

تا خیشت د ارمان وکړه بلا نګی کښې دړوندو
تا ورکړه په تیپرو فلسفه دَ افلاطون

ته رورشوې د خرو پرې دِ سبوه رودی دازمری
تا غږ د موسیٰ ورکړو په ګرځه د سامری

تا لې دیزید وینې وینې نه مرګ دَ حُسین
په ژبه دِ شراب تراخه خوازه لګی تری

ته نن په سبانه ور کے ته نه ئې جوارګر
داخکه مهار تیپ که، ستا د تولو او چت سر

اے او سبه غتبه او سبه، ته نے رو کے د میږی نه
لس چنډه که زمرے شے، خو پیرېږے دلګی نه

تر هغې به پیرېږے، او ژړېږے او کړېږے
تر کومه چه و نه باسے دِ طمع دَ زړګی نه

دَ طمع ستانه دیر او چت سره نه کړم را بنکته
دَ سپینے شهزادګئ په سر خورے دَ ډمے کته

دا طمع مړي او ژغي کاندي ستړي نړي نړي

دا طمع خرخوي بازار کښ شونانه کړي کړي

دا طمع شهزاده کاندي غلام د کور دَ وینځې

دا طمع د جنت حور له ستړي کړي بې شهې

دا طمع شهزادګۍ کړي د مرني سره نوکره

دا ډیر غمي هیرې کړي، کړي کونجکه ترې نه بوره

دا جوړه د عقابه کړي د تور ککوري کمتره

دا زړه نه غم راغونه کړي او خندا خواني د سړه

دا جوړه د کعبې نه کړي منډۍ د سود او زیان

دا ګل خاورې ایرې کړي مستي پوسي دَ عنبره

دا جوړ کړي د عیسی نه مقتدي د سامري

دَ دې په خپو خوړ کړي نظر ونه دلبري

اے اوښه خواره اوښه بې بنا اُسته بې جاله

اے اوښې دَ زوزانو بې خبره دَ کماله

ته نه لوږه او تناده نه سرور دے او نه ساز

هم دغه دے دا دښ او د آدم د فراق راز

# مرگے

مرگے دِ راشی
چه کله نے وس وی

کل به م لاس کښې وی
او یا به اَس وی

یا به ټوپک وی
یا به قلم وی

ډوب به خندا کښې
دَ دنیا غم وی

چه څه مو بخت وی
دومره به بس وی

مرگے دِ راشی
چه کله نے وس وی

# کمتره

د جنت مرغۍ کمترې — د غم درد وه بې خبره
که سپرلې وي که خزان — ستا وي مستې بازیګرې
شپه او ورځ په بغبغو یې — د آشنا په ننداره
د یارۍ مستې قیصې کړې — د جمات په مناره
دوه دانې کړې چرته پیدا — بیا مستي غوړمې شروع کړې
د پیریانو په کومي کښې — لمغړې د ښاپیرو کړې
اې د مینې لیونیه! — بې ګناه او بې آزاره
د محراب د پاسه تاخ کښې — کوکې اخلې د دلداره
خپې دې مردکې سرې دي — هره ورځ په تا اختر دې
تل نشه یې بې شرابو — مدام خواکښې د دلبر دې
خوش قسمته بې خبره — د دوزخ نه د ملا نه
د نیکو د ثوابونو — د شرمونو د ګناه نه
ده کوکو له جوړه شوې — ستا مینو که بې آزاره
ستا سره سره نرۍ نوکونه — د ګل د خیشت او د سینګاره

نه دِ جنګ نه دِ غم بشته      سو چه مینه بے نفرته

نه دِ چل نه دِ دوکه شته      یاری پاکه بے علته

اَلوته دِ هم دسیل دي      د مستئ د بازیګرو

که بابا اشنے هم پینبے کړے      دَ وړو کوتوتکو

غونډه سترګے دِ معصومے      د رڼا اتباره دِ کے

پیمانے دسرو شرابو      دَ خندا ادیاره دِ کے

کاش چه زه هم ستا په شان
اے کمتره مستانه وے
چه نه غم وے نه ارمان وے
بس خندا او یارانه وے

# باوېړې

بیا شروع شوې په ما دَ غم چپې
بیا بې خوبه بې آرامه مې شوې شپې

یو خوارند یو خواساقی یو خوا شراب
بل خوا لوټ کښې زاهد اړوی تسبې

په لوګی دغه او ردواړه تو دېرن ی
چه عالم ئې کړو جلیا سپې تپې

غنی خوبه دارمان په لمبو سوزې
خو به وی دا دفراق سرې تپې

دخوانی اختر دې لاړ نکړیږ څه کړې
شبه به وی چه په دیوال ئې وُتپې

# میږے

اوږد کاروان ستا — ګرم روان وی
سم په قطار قطار — لکه اوښان وی
په مله مله — په منډه منډه
نسو درله اوسو — لښته بربنډه
لکه د سپی ښیسے — خله کښی اورلګی
او د پلټنې په شان — په پړیت تلل کوی
دمه ړیمتی په شان — هم غلا هم نړنے
په حکم کلک روان — د خپل افسرنے
دخپل نظام تابع — لکه انګریزنے
په زړه مضبوط مړنے — لکه چنګیزنے
ملا الچکه اره نونے — لکه لښتی لړے
خوله د ګلهانګ ښے — خپے پټ پټے لړے
وجود د درے بنده — او شپږ د خپے دی
نری نری چک دی — کړے وړے دی

اولاس دیو نښته     دا عجیبه ده
خه بې توله غونډ     دِ معامله ده
دَ پیدا کولو آفت     دَ جمع کولو بلا
لکه د شوم خنبوږې     زمکه کښې واړه دنیا
په هیڅ حیله نه کړې     لوږه خوړې مار خوړې
ته دَ مچو د نبرو     تر سکون اَچار خوړې
د سبا فکر کوې     نوې فاسفي ې
مستي خندانه کې     پخو صوفي ې
یو قدم نه اخلې     ته بې غرضه
رب دِ مونږ وساتي     دَ دې مرضه
بس د خوراک له غمه     لیونې کړې ملام
ته ئې د حرص بنده     ته ئې دَ ختې غلام
ستا طبیعت دَ قارون     دَ خزانو شوقي
مین په هره میږ     د هندوانو شوقي
داسې په دوړو زغلې     لکه بکې
اَچې دَ چرګې مې     سپینې آګې
دیرا ستکارې ته     خولا مو کښته وې
په مړ زمري ورځې     ژوندې ملخ نه وې

دکل جهان صفانی ستا به تنکړه دی

ستا نوکری په ماچین په امریکه

او ږوے او ژړمے ځمزه پښکال

ستا دغه لاروی او دغه خیال

د پیداېښ نه واخله تر د مرګی

تل دغت پناه لانا کوے زویرګی

نه دې پوره کړه او نه ته موړ شوے

او بېرې پیدا او سے او او بېرې زوړ شوے

تاکښې خبرې ډیرې دی زما خوښې

خو هیڅ مستی نه کے په زړګی یخې

بس منا ومنا نے تُل اوکړانه کے

بې دخوږلو خکلو بله سودا نه کے

خو زما خوښې په دے نو بها درې ته

په ماچک مه لګوه

که زما یارے

الله دې درکړے

دانے بسیارے

==★==

# وصیّت

که خازې شنې م په قبروې ولاړې
که غلام مړوَم راځئ توکړئ پرې لاړې
که بخپلو وینو نه ووم لمبیدلې
په مامه پلیتوئ دَ جمات غاړې
چه قطرې قطرې م فوځ دَ دښمن نه کا
مورې ما پسې په کوم مخ به ته ژاړې
یا به دا ننګه ملک باغِ عدن کړم
یا به کړم د پښتنو کوڅې ویجاړې

# ماښې

دَ ماښامه تر سبا — سرښیدۀ کاله سهرنا
پینه پینه پڼګه پڼګه — هم خوړل کړے مې دنیا
سپک به و خیږ پۀ تول — دوؤ دانو سرو غوښتو
خوماتی ستا دَ ګذاره — خان کړی پټ پۀ خټو خټو
پچکاړی دِ نی تل دِ کړه — وے هر چاله انجکشن
تۀ به وے ستا باباجی وو — دنو ښار سِول سرجن
دَ میږی هومره کوچنی کښې — دِم خُله تسته هم خرتم
اوږے دَ خپے دِ دَ جولادی — نرچوکی وزر دَ دم
اوږد دۀ دونګه دِ ونبرے — باړ دِ نښته پۀ لاشه کښې
وا ړۀ زهر دِ راغوندۀ دی — دَ وکیل پۀ شان پۀ خوله کښې
نور همه غلۀ دجهان — وی دِ مال دفصل غله
تۀ زما د زوندون غل یې — زما وینه ستا خوراک
پۀ زړۀ سخت یې دیزیلۀ — دَ کلاب پۀ شان وړوکے
سر تر خپو سوری سوری کړے — هر سوری کښې آفت پرکے

چه زه دا شمه ستو مانه — په کټ پرېوزم بې اختیاره

ته به وې تا ته غوړې چا — د پولاو کېنبوه تیاره

تک م او باسې د غوږه — پوست بالښت ته رسیدکېښ

بیا تموری خپله شروکړې — په نرو نرو پر دو کېښ

ستا په طمع گذاروکړم — خان له ستا او سوزومه

ته م شا ته سرپېنډ وې — زه غوږ ونه کړومه

که رېښېن شان مانام دې — سور گلزار او شین چمن دې

چه یاران او ده په ولیښه — نشه شوی په دیدن دی

په سر خپو د لیلی کېږدې — پلیت وزې د سپي داره

لیلی وخ او ویش شروکړي — خوار مجنون پرېږدی والاړه

که خوک پټ شي په غاد کېښ — ته نې پاس کړې پنګه پنګه

چه آخوړې پوزه راوزی — لکه شکون دخپل سرنګه

ته پې شغ تې داپېوزې — لکه بازکېنی په زړوکې

هله پرېږدې دې په قلاره — چه جلا ترې نه استوګې

بنا یان کوي وړوکي ښکار کړې — مرغستانه په آزار دي

غوان سنا کا مېښې آسو — دلکوالو بې آزار دي

روکه خاغکې د دوزخ نې — که د شرافت مجرې

خله زما په ونو سره کړې — بیا پې ونې را ته سنانې

وی ملا بابا چه ستایو — قرنیکه په پاپو شل

د نمرود سپین مه گنی لاړه — غا غاړے په چاڼ وَل

هغه اور غوریدو په زمکه — کلک ئے ونیوله تښی

چه شروع ئے په یو ځل کړه — هم تیز و نه هم اتوښی

خوګلړے دننه ناست ؤ — دقول به ئے وزر

هاله ئے پرینښود چه ئے ونیکه — دَ غریب نه کچومر

حرامتوب گنی دِ شکښتو — چه کړدَغي بابا زوے ئے

چَلولي لکه لومبړے — اوږ سیږ لکه سپے ئے

لا یوه بله غوره دے — د هماؤ ده عجبه

خان سړه گوزے په بلو — سنه تو ده دمنی تبه

راد عادَ لیونی ده

پاکه ربّه که قبلے

که را ښکے په وار ورماشو

تیزه سوزدَ مرسیلے (*)

(*) مر: امار .

# پیرے

ویره پیرے دے　　امید دنیا ده
دَ شک تیاره کښ　　ویره بلا ده
که جوړیده دی　　که ورانیده دی
کاروان روان دے　　دَ لاړے تله دی
ویره تیاره ده　　او ورکیده دی
امید ژوندون دی　　امید لیده دی
دِ وے ویره کفر دِ　　خدائے نه منل دی
یو تور دریاب کښ　　غوپه وصل دی
لمبے دَ روح　　لوګے کیدل دی
په ژوندون ګور ته　　ورکوزیدل دی
امید هستی ده　　امید بقا ده

ویره پیرے دے
ویره بلا ده

## آس

# بَدُو (۱)

ترپ ئے دهوسئ په شان — زړه ئے د زمري وو
رنګ ئے د غمي په شان — خیال د بنا پیري وو
سترګے د کور کوړے — غونډ غونډ ئے بشکلے بشکلے
تله ئے د نرانو — طبیعت ئے د بلبلے
تن ئے د طاقت او د مستي — او د نرانے ډک
روح ئے د همته وو — ځیګر ئے د مړانے ډک
خپو کښ ئے ګډا وه — د ساقي د سپینو خپو په شان
سترګو کښ غمونه — امید ونه دهو سو په شان
زړه ئے د پښتون وو نه — په کنډه نه په غر ایسار
جوش ئے د غازي وو نه — په ځان او په سر ایسار
چه خلهٔ آشنا زما — لاړے چرته لاړے ته
چرته د چاکور کښ ئے — چا نه ورې غواړے ته
شته هغه دنیاکښ سنه — نوکر د دِ لا ور په شان
شته هغه دنیاکښ واښه — شنه د هشتنګر په شان
چه خلهٔ آشنا زما — چه خوله دے تول عمر

---

(۱) بدو : زما عربي آس وو. دِلا ورے سائیس وو.

او چه زه نه لمے وے تل — او چه ته وے ټول عمر

دغه وو آشنا زما — دغه وه د ژوند قصه

دغه د آدم وجود — دغه د سمند قصه

ترپ شو او تو پونه شو — خوب شو او خوبونه شو

دوه د مستۍ ورځے شوے — دوه د غم کالونه شو

نه ئے د راتلو سبب — نه ئے شته د تللو علاج

نه ئے د ژړیدو دوا — ئے د ولولو علاج

نه ئے د کمولو بند — نه ئے د زیاتولو شان

نه ئے د هیرولو تاب — نه ئے د لیدلو شان

نه ئے د سلګو تپوس — نه ئے د خندا وجه

نه ئے د پروون سبب — نه ئے د سبا وجه

اے مسته آشنا زما — لاړے چرته لاړے ته؟

چرته د چا کور کښې ئے؟ — چا نه وړې غواړے ته؟

څوک به نوا لے درکی؟

څوک به کوی ستا مدار؟

کوم جهان کښې الوزی

ستا د مستو خپو غبار

# پلوشه

هندوستان کښې دوو تونو منډے راغلے

په کښې خلق خرڅوي ایمان په خټو

بابا وے: غنیؔ! سړے شه جیل ته لاړ شه

غنیؔ وے بابا لنډے نه دے دَ ختو

# قارغه

تور دې مخ دے غل چکیه — تور دې زړه تور دې آواز دے

سپے نے خیته د کول بس — ستا انجام او ستا آغاز دے

چا تورے که د ماستو وی — که د پلچے دَ کچالانو

که پولاو د خان لاله وی — وظیفه دَ ملیا نو

ستا په هر څه کښې حصه ده — تول جانداړ دے ستا د پلاره

یا توږنګے وَنے یا تغیږے — نه آرام کړے نه قرار

غلا هم غل نے بے غیرته — د پوتی چرګوتی غله

نه دې پروګ شته نه دلته — ړک د شوره دَ چلو له

موتے خیته کښې دې پروت — ړنه د حرص تهترین دے

نه ډکیږی نه ټخیږی — عجیبه دې کښې مشین دے

که د سوتو مڅا ډیران وی — که اګئ وی د کرکوړے

که بچے دَ توړانی وی — که وی سخا مردار کپوړے

که غریب وی که ماشوم وی — که حلال وی که حرام

ورته ستا کیڼه کښې دړه دوی — که سحر وی که ماښام

بل مارغه کښ دومړ پوهه | دومره چل او هنر نشته
خوافسوس قارغه په تاکښ | دعقاب سره وزر نشته
تش په چل سردار نشی | د سروره د مارغانو
دا په مینه مستی کیږی | په مور زړه د لیونیانو
ستا لغار د سپی کونکار دے | یوه چغه ده د لوږ ے
د بلبل په شان نه ئے | د شبنم د څاڅکی تږے
په هنر که سامری شے | په حکمت باندے لقمان
تل به خورے چیچړے او سوتے | اے جور په د آسمان
سره کلونه د لولی دی | شنے کمرے دی دکوری
یخ سحر د تورانی دے | ماخیګر د تو تکری
ستا حصه ده دغه سوتے | دغه شور او دغه منډے
داکنځل د خدمتګارو | دغه چغے دغه غونډے

څه که تیز لکه وکیل ئے
خپله وائے د بل ناورے
په مارغانو کښ چوړے ئے
که وزرے د رتب خاورے

# پلوشه

یا ربی مغه مزه کړه
چه د دار وسیال وی

سری هم دو مړه وی
چه خو مړه د نے خیال وی

شپه به د جنت خدایه
چه د دار و ال وی

خومره چه زړه وی بنګلے
دو مره نے جمال وی

د قام په مینه مسته
کوځکه لال وی

دا ئیو نے به هله
خدایه خوشحال وی

چه لاس او زړه وی دده
د قارون مال وی

# چرک

خوراک کوے دَسپی — او مسئلے دملیانو
بانکونہ دَ بلال — او لنگوٹے دچنگڑیانو
پرتوگ دِ یارم نشتہ — او شملہ نیغہ دَخان
شل ښځے دِ ساتلے — خو سعروانے آذان
پہ جنگ کښں بہادر — او مستانہ لکہ چنگیز
پہ مینہ کښں بے شرمہ — بے پروا لکہ انگریز
اوربوز دِ دَ قانی دے — طبیعت دِ دَ ہتلر
آواز دِ دپنجنو دَے — او انداز دَ منستر

انجام دے تبخ دے
اسنجنونہ دَ دیران
یو روخ بہ روستے بانگ
وکرے دوڈئی بہ وکڑی خان

# ښځې

چا له شراب ورکړي — چا له سرې وینې د جام
چا له خربانو د پاره — چا له ګل اندام
څوک په ادیله بانډې — پرې د ماچین واخلي
څوک په چوارنې پسې — دنیا کاندي تمامه
چا له سبه خربه خوږه — بوجۍ لکه د ګړې
چا له ښه ښه شیخ — رو کړې د ابو مړې
چا له د لوکې په شان — چسته او رنګینه
چا له د کونګې پښان — توره او ملهینه
چا له قتقي کوکاري — ګرکه زړه چرګه
چا له غونډاره مونډاره — مسته تکه سپینه ګرګه
چا له دا سې ستغه — لکه اوچه بکیانه
چا له ړوبه مسته — لکه نوې دوک بیانه
چاکړه صابره کورودانه — درنه میینه
چاکړه سیمه کوترۍ — په هر چا چه شوه پیینه

چاکره چلي د چلي　　لوړه بده مکاره

چاکره کمتره چه هم　　ښخه وي هم یاره

چاله زړه خره بېخوندو　　بې نوره پواره

چاته لک سروه　　د خندا د کړه ولاړه

چاله ښه ترسکه نه　　چاله ښه خوږه حلوا

یو له د نیمبوا چار　　او بل له مربه

یو له خمبیره دوه ډوډۍ　　پر سمنه پسته نرمه

بل له د مسوروپیتي　　کړمه کړمه کړمه

ورکړه د قسمت دی

چاله ډیره چاله کمه

خدای د هغه درکړي

چه وي ستا په شونډو سمه

حیدرآباد جیل

# تیروتے

سقراط(*) د غه ځانے کښ تیروتلے
ایمان د واغشت فلسفوله یووړه

د غلته زړک د غلته زړک شوے غنی
زړګے د خپل په دو سینوله یووړه

خیام د غه ستا د مرګ دو ساعت
چه خپل سرور د صراحوله یووړه

منصور خکه خو په دار او ختے
چه د اشنا راز د حجروله یووړه

دا ظلم ظلم دے زما جانانه
چه د مرګ خاورے کیلوله یووړه

---

(*) سقراط ـ د افلاطون استاد مشهور یونانی فیلسوف او حکیم

# زبرګ

چه دې وس د بدو نه وي — خه به ته خه به دې نه وي

توبه هسله د شرابو — چه شراب درته پراته وي

چه بله هاشې خانګړه شپه — بیا توبه توبه د خه کې ؛

هغه سبه د بدو بد وي — د ناکامه چه ته سبه کې ؛

ملا ناست د تکرو شکور ته — وي رندانو ته خراب

غریب خه وکړي حجات کښ — نه معشوق شته نه شراب

دا چه باغ د ګلو ډک وي — مستانه غونډه مابنام وي

دا چه سره شونډه ساقي دي — په سور لاس نیولې جام وي

دا چه تاته رسېږي سترګې — غلې وداني سلام

په مکیز دې زړه کښې بل کړي — د مستۍ دوزخ تمام

اووې راشه راشه یاره — وخت دې لږ خبر دېږي

بیا دې روښان د اوړنه — پستې لیږې کړې چاپېږې

ځله دِ ځلې ته کوي درپورته — شونډانه سرې تو دې بېهوشه
لکه بله ډيوه زړې — دخوانۍ مستۍ دجوشه
سينه دروورې سينې له — دَ مخمل مخې ريښمينه
د ارمان او مينې ډکه — د نرګسونه نياز بينه
او ستا وجود يو سمندر شي — د طاقت او دَ سرور
زړه دِ واخلي هغه اور — چه هم اور دے او هم نور

ته چه دغه وخت اوچت شې
شے جمات کښې به ژړا
ليونے وائي قسم دے
يا خو غوث ئے يا مجرا

غني
حيدرآباد جيل

# ګړې وړې

راشه راشه ساقي راشه
ډېرې ډېرې مُلا ډېرې

په ما باندې بدې لګي
ستا نخې پخې خبرې

غته پګه دِ شه خاورې
عجیبه ته خناورې

ته دَ مینې بې خبره
ته دَ حُسن نه منکرې

دا محفل دے د رندانو
اخوا اخوا لرے لرے

د شرابو د ښکونه دی
ستا ترخې شونډې ببرې

ورشه د غامته خیرات دے
تالے تول اینبے دے لرے

د کنجۍ په شان خوړے که
په مرداره دِ وزرے

ساقي ستر ګو کښې مسکے شو
بیائے دَ خیال کینوے وزرے

په تُل مسته مسته راغله
سرے پایئے نے د کمترے

ستا اووه واړه جنّته
دَ دے یو د ناز نخرے

ستا خلوینت زره کتابه
دَ دے دوه خوږے خبرے

ستا وعدے او پرے دے د حور
دلته سرے شونډے شکرے

تاله قرض زه [illegible] درکړم
دا راکړے پرے ما غلرے

ماشوم یم[۵] چه جنت پرېږدم — ستا د سور دوزخ ډېرې
جانانه میخانه ورکړم — واخله ستا ګنډې دې
ملا تا خلکي نه دي — نورې سه ښوناه کافرې
ستا په غیږ کښې ناستې نه دي — د کالو ډکې کمترې
د جمات په چارچوبي کښې — یاده وه پردې تور سرې
ډک ګلزار کښې ته ولاړ — په ډیران لکه ډخرې
اوږې سترګې اوږې خیته — بد قسمته بد نصیبه
خیشت او مینې ته شکوه — او په زړه په روح غریبه

راشه راشه لیوني له
جام او چت که مسلمانه شه
د زړه انو په مذهب شه
جنتي په د جهان شه

حیدرآباد جیل

---

(۵) بیم: سه بیم

# ګډے وډے

مسلوم زړګے دروند که یاره ماته بګتیئ شه
نور دروتو تاب م نشته پراته شه چپا تئ شه
دا اوږدے اوږدے خبرے داواړه واړه فکرونه
دَملے هاے دَکړلو نه یم ماته مې تنې تنې شه
رندوستړګو د پتنګ نه دَ نورونو قصے مه کړه
پتنګ لمرته ګتے نه شي دیوګۍ شه موم پاتۍ شه
ماته ماشیه: قصے نه دهاتیانو دَ تول مه ک...
بس په دغه خانے نے پریږده بګتئ شه

# عجبه فلسفه

زړه مې واچوه په تال کښې | دَ جمات کوټې له لاړم
دَ مُلا په خپوړ مې کینبود | ما وې دا مې صدقه دَه
داچه خومره زه پوهیږم | په "طٰهٰ" او په "یٰسین"
داچه خومره ښکته تلې شي | په سجدې زما جبین
داچه خومره اخلي نور | دا زما خاکي وجود
داچه خومره زما ژبه | شي څکلے انګبین
مُلا خو زمانه واره وو | وې دا څه دَ ستا تالي کښې؟
نه پلاو دے نه فرني دَه | نه حلوا نه فالوده دَه
وې ئې شرع ظاهر ګوري | او ظاهر وته فاسق ئے
دا دَ رب سره دَ مینې | تا را غوښتے څه قصه دَه
یره یره دَ قهار نه | دَ ایمان اصلي حصه دَه
دَ جنون او دَ جانان ستا | څه مهمله فلسفه دَه
زړه دې کیږده په سینه کښې | دلته رنګ او لباس راوړه
ستا شراب دلته حرام دي | شه بت راوړه ګلاس راوړه

ماخپل تال دک دَ خوبونو
دَ قاضی دربار لیدونه

رو کے لال م را اوچت که
تارخانے اومار لیدونه

ماوے اے دسبو اوباڼه
اے دتورو سپینو خانه

د دانش زما قبوله
په نامه کړه دَجانانه

قاضی اَمینا سته په تخت چپل
په سپین سر ئے دستار کینولے

په پولاس نے توبه کینولے
په بل لاس ئے حصار کینولے

تله ئے پوره ته دَ منطق کړه
یو خوا دے یو خوا م تالُو

یو خوا شوروو کمزورئے وے
بل خوا ژے و ، کمالُو

یو خوا عقلُو دلیلُو
نه مستی وه نه جلالُو

بل خوا ژوندِ غونډِ تلاشُو
ژک بے خوده غونډِ خیالُو

ماوے دالیونتوب واخله
اوخپل عقل سپے تاله کړه

ماوے دا زما خمار
دَ خپل علم کتماله کړه

ماوے اے دانصاف ذبه!
دا دَ ژکو مستزال کړه

ماوے اے دتول امیره!
دا بے توله تلل کړه

قاضی ستر کے کړلے سپتے
شو نا ہے بند ئے پریشانه

وے افسوس زمانه وړک دَ
داچه ته غوارے زمانه

زه خوزوریم دَ انسان
زه سرور دآدم نه یم

مادی سپین اوتورا غشتے
دمستی دَ کاستانه

زه تور وینم او سپین وینم

بس زما دغه قصه ده

دغه تول زما امید دے

دا تلل هم فلسفه ده

ماخیل زړه لاس کښې راغونډ که — تورې شپې او غم له یوړه

د ماښام تیارې کښې ورک که — د سبا شبنم له یوړه

اوس یو زړه یم یو ارمان دے — د جانان د شان قصه ده

روکے ګل او لوے خزان دے — یو امید، یو تلوسه ده

ما مرګی ته شروع کړے

د ژوندانه د خیشت قصه ده

د جنون او د جانان دا

څه عجبه فلسفه ده

بهنګوتر (هزاره)

# د توت بناخ

که دے سر که سهور — نو دے پاتی په غم
دا رحمت او تخیل — زور د زور او ستم
مایوسی او مستی — دواړه شال د صنم
دا خندا د یقین — او دا شک د ژړا
دا تیاره د جانان — دا هلال د صنم

بناخ څه دے؟ یو ستار دے
د توت بناخ د سیمو تار دے
هنګ او شړنګ او ټنګ درود دے
د بل لاس د بل خمار دے
مجلسی چه په خندا اشی
دے بس شور دے او تقار دے
غږ ونګے چه بلبل وے
دے هم ګل د هم بهار دے
چه منصور په کوتے کیږدی — هم دار هم خار دے

عطر تول دَ بل دخیال دے

دے یو گل دے بہار نہ دے

دے روان کاروان دَ بل دے

دے ارمان دے دلدارنہ دے

دے مجبور شان مسافر دے

منزل نہ دے اولار نہ دے

د بل خیال د دہ تقدیر دے

دے نصیبین دے او نہ تور

ناز او راز، آواز د بل دے

دَ دہ شرنگ او د دہ شور

شپہ او ورځ د دہ تول

د سبا او ماښام

د دہ هوش جوړ وی

هم ساقی هم خیام

دے نظر دَ کاوہ نہ او نور دی دَ بل

د دہ سترگے خیشت او سهری دَ بل

غنی

(بهار پور)

دلته مینه تش پو ښکلي سینه کښې د وېداله دی
دلته ژوند داستان د غم خند اکله اکمل نه دی
زر لکه معنیٰ که د ملال د دنیا وګړے ته
نښته دے په تاکښې د ملال بڅرکے یو
زر ، زره رازونه دے کومې ښکاره شوي دی
نه دے خولے تا ته د ارمان کمترے یو
دلته ډیر خوبونه د رڼا لیدلے شوي دی
نه دی خولې تا ته ځپلې مړے دلبرے یو
ته نیولے نه شې ، لیونتوب ته جلال پریږدې
کینه افلاطونه ، فلسفه د سنبال کیږدې
تا سره ده تله د سیرونو د مستونو
دلته کښې نجرونه دی او تور او درانه غرونه
ته نے بیوپاري د عطرو ګرو ، د چرګانو
دلته کښې پرتے دی ولولے او امیدونه
تا له یو قطره شراب ، دریاب د تورو زهرو
دلته کښې پراته دی په زرګونو ډک خمونه
اے د رڼا زویه دلته لوړے او خوبونه دی !
ستا له قطرے تلې ، او دلته دریابونه دی

ته د آدم لاس نے د آدم سترګے او سر

ته دده پوشاک ، دده لباس ، دده بستر

ته دده وجود ، دده آرام ، دده معبود

ته دده قانون ، دده آقا ، دده افسر

دلته تول تلل دی ستا د تالے نه اوچت

غرونه د عقاب دی ، د بلالے نه اوچت

ستا سترګے روښانه دی خو زنه دِ درونده وتوردے

تاکره روښانه ستوری نه دی ، اوردے ، اوردے

# جوارګر

په جوارو لاړ کاروانونه څوک — او په غرو د نورو وان خط و خال دے

خه جوارو لاړ ځنګ زه و اخلمه — شي کا نه په کله او په دال سره دے

د جوارګو ځنګونه او خزانه او په تاک — په شکوري دیوان قربان کړمه

لوړ آرام له د خان د رقیب سره — زه د کا نه بے خودي او جانان کړمه

که دا توري تیرے لا توري شي — او جهان د په قار د دوزخ په شان

او مې څاڅکے د رنګ د تیرو ځرک — هر سا د کبا نو د سخه په شان

زه به ساز او پرواز و ورته کړمه — او ملا له ایاز و ورته کړمه

نیت م کړے د کوډ د جانان دے — خه خنګ و ري خه سپو او خه دیوال

داوم اېښے په کوډ د سره ورد دے — خه وي زده خه وسه خه وري مال

په خو اته ته د ریا او چال — یا خو سه او سره او هلال

خنګ مېن به په پل د لیشي څوک — خنګه کیږي په بوږه به خال سره دے

لکه سحبه پخیته قربان کړمې څوک — یا د لوز په سر جمع کوي مال سره دے

لکه خرڅ چه د بل چا په زړو کړی
خپل جانان په ما بنام د وصال سره

دا دی زهر دا زهر د روح دی
خو نامه ورله ورکړی د مال سره

دا و بنیار ولاړ م دیرے زده
خو زما د شان دغه لاره نه ده

زه د زړو صحرا او ارمان یمه
زما ځنت کښ ګوټه د ګلزار نه ده

زه چینه د ژوندون د خوبونو یمه
لا م موندے سینه د دلدار نه ده

نه یم خاوره خودیره بے تابه یم
ما مو ندلے لمحه د قرار نه ده

تالا کړے م ژوند هم غرور دے
داو م اینبے په کور د سرور دے

غنی - غرتسر

# الابلا به کردن ملا

به کل کښې ولید — چه ته نے نه مومے کتاب کښې
اے ملا! ستا نیم کتاب م — واوریده د رباب کښې
ستا پګړۍ د عقل — زما تاج دلیونتوب په سر
ته نے په غاره زارے — زه غوټے وهم دریاب کښې
دے جهان کښې مورنه شوے — د مغه خانه خدائے خبر
ستا نه نبه بهیا شو — ملا تیر وے حساب کښې
نشته ستا زمزم کښې نشه — واخله سره شراب زما
وایه ملا صاحب ستا خلاصه — څه وائے دے باب کښې
میردے کړ منطق کښې — په مینا(*) کښې دے وینه مونده
زه نے مدام وینم — د غمونو په دریاب کښې
حسن دره ورک شو — د کعبے په دیوالونو کښې
ورک دے سمندره کړ — مرله تنده شوے سراب کښې
زار دے شم له ډیرے ملا — سوال د لیونی واوره
نوم پیرے د کافر مه بده — د دے غزل جواب کښې

(*): منیة المصلی

# جلال

چې زه غواړم د هیوو نه مستي سرو ګلونه جوړ کړم

د سرو اوښکو نه سرې شونډې د ژړا سرو جوړ کړم

د خزان تیاره کړم دوبه د امید په سمندر کښې

د ګنجونه لالینه، د غناو، پلونه جوړ کړم

چې دا روح م په ښکاره ووځي د رنګونو د خوبونو

که نور نه وي د تیرو زه، رنګیني نوره جوړ کړم

چې د خیشت شم زه لیواله، د صحرا مو د زړه کښې

په زرهاو بوستانونه، په لکها ګلونه جوړ کړم

چې زه ورته دارمان شم، د سپېلي په سپین صبا کښې

بې حسابه ما ښامونه بې پایان غمونه جوړ کړم

تور او سپین زما د سترګو کاله تول کاله تلل دي

شپه او ورځ زما نظر دے وګړال د اومونتال دي

که خندا ده که ژړا ده، دا څکه مشغولال دي

که وصال دے که فراق دے خیال سره تکل یدل دي

چې زه مست شم د دېوانه سره د خښت کلونه جوړ کړم

د سرو او سپکو نه سپينې ښتونې د ژړا سره په جوړ کړم

چې زه نیت د کټې وکړم د پرېوتې د شکست نه

دَ فاتح د شوند وکړم او د ستړو لوغړو جوړ کړم

دا چې زه خان او تخت د رنګین باد نه وران کړم

دَ غلام امید بدل زه د بادشاه په کاسه وکړم

چې خپل نوم د سې دینې کړم تړنه ویړ نومونه جوړ کړم

چې زه غوارم د هیوونه مستی سره کالونه جوړ کړم

دا چې ته او دا ته نې . دا چې ستا مستی زیاده

دایم زه . دا بس یو زه یم دا زما ژړا خندا ده

دُملا خبرې پرېږده . معامله ستا او زما ده

دا داستان د لوړې نه دې دا قصه د عشق او ساده

دې زما بې سُره ژوند کښې پټ ستا حُسن او کمال دې

دا زما لمر زورسته کې . ستا دَ زور جاه او جلال دې

بهکوټر

# پلوشه

یو توره شپه د غم کښې یو بخری د رڼا
زرغون په ویرانه کښې بنایسته بوټی د لالا

د بېدیې تور ځنګل کښې یوه زرکه په خندا
یو څاڅکی د امید د نا امیدۍ په دنیا

رنګین د بوډۍ ټال د تورو شګو په صحرا
مستي ده که ځواني ده که دلبري که الله؟

# پلوشه

جومات ته لاړ به میخانه ګوره
په زیان کښې سود د شان جانانه ګوره

نیته ده لنډه او کارونه ډیر دي
پوره به نکړې شې خان له بانه ګوره

# ارادہ *

نہ م یار شتہ نہ بہ وشی
او سنی یاران دی خوشی

چہ حاجت نے درتہ وینہ
ستا بہ پلار نیکہ م نہ بہ شی

کار چہ خلاص شی دا ئے تبستی      ذلیندے نہ لکہ غشی
چہ یاری پہ شتالو شی      دا یاری بہ یاری څہ شی
من خوړہ م یاران ډیر شو      لکہ سیند کښ خشی بشی
سخا بادام دی وائی غلی      یو بہ دک وی سل بہ تشی

پہ فایدہ دے ځام خاندی
خو پکښے او بہ او بہ شی

تہ پہ دغہ لاړہ مہ ځہ
غنی دا بہ درلہ نہ بہ شی

---

* د شپاړس کالو پہ عمر کښ م دا لیکلے وو.

# رښتیا (*)

چه م باغ دګلونه نے بهار به څه کړم
چه م سترګے دیار نه نے خمار به څه کړم

چه دَخولے نه دبلبلو تالے نه وي
که هزار ځله شي خوږ چغار به څه کړم

که په سینه نور دَالله نه وي وریدلی
دَ کعبے د شکلو ډک مینار به څه کړم

مقبره د سرو ډکه ترینه سنګ ده
دَجاهـل بے غیرتو سنګار به څه کړم

چه زما ځګر لالے په سینه زغیږي
ملا ! ستا قصه دَ نور او نار به څه کړم

چه زما دعشق ساز و نه پکښې نا وري
دسرو زرو که وي تش سه تار به څه کړم

---

(*) راهـے د ماشومتیا د زمانے دے.

دَ جانان زلفې چې شته رونده زاهده!

ستا تسبيح، د برهمن زنار به څه کړم

چې زما د قام جنګه پرې نه رپيږي

بيا د غره په شان حصار به څه کړم

چې ئې تل دَ بل په غيږ به خندا وينم

دَ دې يار دَ ښکلي مخ ديدار به څه کړم

ماته غوږ دَ دلبر د کوڅې کښې

دَ رقيب د محل نغمه لار به څه کړم

چې ئې قام د پاره جيب کښې پيسه نه وي

غني! دا د شنله وغواو ګوار به څه کړم

# غمونه

په خندا د سرو غوټو کښې
د خزان سلګۍ پنهان

مستې سرې شونډې مسکۍ زر
کړې خدا وچې په کړيان

يو قطره ئې مستي وډکړه
ښکاره رنګ ښايسته ښادان

خودښنه ئې آدم جوړ کړ
د غمونو قبرستان

او زما وړوکې زړه کښې
دي غمونه په شان شان

يو دي غم چې د رب خوښ وي
هغه غم دے د ايمان

يو د غم د قام د ننګ
خوشحالي ترې ښه قربان

یو دے غم چې څه غم نه دے | بیا د به غم د ځان
یو د غم چې سړی سپی که | هغه غم دے خپل ځان
یو د غم چې سینه تورے لشتے | غم د شان د خاندان
یو د غم چې سر ژوند شي که | غم د قام د نوم نشان
یو دے غم د شاعرانو | غم د مزکے د آسمان
یو دے غم د بادشاهانو | غم د خوار د بے زبان
یو دے غم د بے غیرتو | په پښتو لکښ د تاوان
خو دا غم ترخ د دے وړو | دي اخته زما په ځان

نه یې دم نه یې علاج شي
نه ئے دارو شته نه درمان
بخوانی غمی که م کے
غم د سته ئو د جانان

۱۹۳۰ع - لندن

# تجربه

د رواج چپې مې وسرې — د قانون لنګر مې کېښود

په خندا دریاب له لاړم — ستا سپېره ګودر مې پرېښود

د آتاورده او یخ بادونه — نوې ساز نوې سرونه

نوې بنایست نوې ګلونه — چه د خیال وزر مې کېښود

کله تاو غوټۍ کښې شمه — بیا چپو کښې ونښلمه

خوږ وه خمه خمه خمه — غم د ځان وزر مې پرېښود

خبر نه یم څه به کېږي — چه څه کېږي ښه به کېږي

که ورکېږي که دوبېږي — خپل لاس کښې سر مې کېښود

مړ د خپله لاسه نه یم — خو په خپل دوزخ کښې وه یم

نیم پوه دی جنت کښې نه یم — سوال د بل د ده مې پرېښود

خان مې و پېژند دانا شوم — خپل مالک شوم لوی بادشاه شوم!

تیاره لاړه سپین سبا شوم

د قانون لنګر مې کېښود

۱۹۳۱ء - لندن

# خدایه ولې؟

خدایه! عقل چې وو ذره دې ولې راکړ!
په یو ملک کښې دوه خودسره بادشاهان

بادشاهي او فقیري دې ولې یو کړه
د ژوندون په هره ساکښې مرګ پنهان

ولې غم لکه آسمان په جهان خور دې
خدایه ولې خوشحالي دې کړه نایابه

ولې جوړ دې کړه ننګې د ګل د پاڼو
خدایه! ولې نشته بیا ئې له شرابه!

ولې بنایست او رنګ دې دواړه خوار او ورو کړه
ولې ولې دې جهان کړ دک په رنګ!

ولې کوڼ دې زه پیدا په جهان نکړم!
خدایه! ولې دې آواز پوست کړ د چنګ!

ولې ماته دې عطا کړو فکر و خیال؟
ولې ولې په دنیا ورسره خوبونه؟

خدایه! ولې دې ځوانۍ مړچاله ور کړه ؛

خدایه! ولې دې پیدا کړل امیدونه ؛

ولې جوړ دې د یار ستر ګو کښې جنت کړ ؛

ولې ترخ دې کړ بیلتون او خوږ وصال ؛

خدایه ولې دې سپوږمۍ له رڼا ور کړه

چه زنګنې م د مستۍ په مهین تال

ولې جوړ دې کړ ازغی د ګل په خوا کښې

ولې زړه م پاک خو جسم م ناوړه ؛

ولې مال دې د ولې طاقت را کړ ؛

خدایه ولې . خدایه ولې ، خدایه ولې ؛

۱۹۳۰ ع ، لندن

# باباته

دا منم که عقل دېر دی
که ته مې غنی سیر دے

چه حساب کتاب ته کېنېنې
ته به وې خان د بونېر دے

دا منم به خیال ماشوم دے
د ملک رو رواج ته هېر دے

خوې تریخ سړے مغروره
د خواهش غولی کښې ګیر دے

خونې زړه سپینه بکوره
به یار دوست دستا تیر دے

باباته مه خفه کېږه
دې د زنګ لاندې شمشیر دے

۱۹۳۱ ع - لندن

# څه دَپاره

...ازخان جوړ جهان کړ د عالمو
...دَلوړو دَ ژوړو ورانو سمو

زرغون شوي په اصیل ژوندې په طمعو
شو پیدا دَکومے موړ دَکوم پلار

څه دپاره، څه دَپاره، څه دپاره

مونږ بربنډ له کومے راشو په تش لاس
ولے واغوندو د ننګ شرم لباس ؟

ولے جوړ کړو دین ایمان ویره وسواس
په تش لاس کوم خوا ته خو چه ژوند شي خلاص

په کوم ملک په کوم وطن په کومه لار

داویړونه دا غوغا دا شور د څه دے ؟
دا چه زه ورته ویم کور دا کور دَ څه دے ؟

اوه، دا سوځي چه عالم دا اور دَ څه دے ؟
ژوند کې څه دے، مرګ څه دے ګور دَ څه دے ؟

چا پسې څه پسې څه بې قراره

غیرت څه شئ، طاقت څوک، دولت څه وي؟

ولې ما ته چې وي مینه بل ته مینه نه وي؟

څه وي څوک چې جهان نتي عالم نه وي؟

کوم خواته تښتي مړه د نړۍ کونه سوي؟

یو وړو کې سر او د قیصې بې شماره

څه د پاره، څه د پاره، څه د پاره

۱۹۳۱ع - لندن

# بوډا

بوډا په برېتو لاس راښکوي مې تښتي تښتي
لاوڼ د مږو ډکه ده دې د لاس پېتنۍ

هېنګولې م د ځوانۍ او چرګورې م د زنږۍ
مازغه د ځوان کډه وړي او پېروي د کتهنۍ

په لاس د جوارې په باڼ سرو غوته د پیاز
د پاسه پیکوڼې پرې دي ډامل د سخاتۍ

که ډېره په زړه مال دارې د پیسې کونګړې م واخله
بیا خه په تړه سکواته کړو شروع خپله پیتنۍ

١٩٣٠ع - لندن

# پلوشه

زما بخت د شمع بخت دے یا به مرمه یا به سوځم
یا به بېخ له دریاب ځم یا به سر په چپو خوځم

عجب زړه عجیبه لاره عجیبه کاروان روان دے
ما وروستی په اوله بیائی که زه ځمه او که نه ځم

# حال زما

هیڅ د عشق له غمه نه دی برابر غمونه کل
چه د یار فراق دې وُوی دغه دی د خدائے اومل

چه مې زړه د ایرو ډیره شو د قارون خزانه څه کړم
چه لالی مې خوا کښې نشته څه کړمه ګل څه کړم بلبل
چه دنیا مې شي برباده آخرت به مې څوک جوړ کا؛
چه د زړه پښے مې شوے شلے څه به کړم د امید ځغل
زه به تمو تمو اوسم په ځوانۍ مې ځان کړم خاورې
چه هیڅ ازغلی نه شو هغه ما په ځان زغمل
بے جانانه جنت څه کړم بے وطنه بادشاه څه وي
یا به ځان پسے ئې اهو کړم یا به ئې کړم د پتنګی ګل
په جومات کښې مې ونه موند په مکه کښې رانه ورک شو
خدائے مې زړه کښې را پیدا شو چه مې مخ د یار کړه ښکل
غنی؛ بلا په زړه ښکاری ګنی ده به وو جوګړے
په سیلاب دې سوخت داو بنګوا باسین دې دیا پل

۱۹۳۴ ع (اتمانزی)

# څه وکړم؟

یو سړک د ګلستان
بل لار د زندان

مېنځ کښې زه ولاړ حیران
چه په دې ځم که په دې

یو خوا عیش عشرت سیلونه
بل خوا کندې کندې غرونه

دې خوا ساز اخوا ویرونه
اوس په دې ځم که په دې

دلته ښکلې موسکې شونډې
هلته غم فریاد د کونډې

دا خوا خوب هغه خوا منډې
اوس په دې ځم که په دې

یو دې ډنډ پټ په شین رنګ
بل دې سیند ډک غورځنګ

دې خوا قبر اخوا جنګ
اوس په دې ځې که په دې

یو خوا سوې غږ د سکور
بل خوا خاندې سوځې اور

اخوا تاج دې خو سر تور
اوس په دې ځې که په دې

دېخوا ښې د زړه [illegible] ینې
اخوا سره شراب د مینې

نه روندې هلته وینې
اوس په دې ځې که په دې

۱۹۳۴ع

# زړه چاودے

ستا زړګے وچوه پښتونه — زړه م چاودے دے له تا نه

خوي خصلت دے د غلام — نشته زياته له با چا نه

کله سکه په تا سوريږي — مغولي دے باباکيږي

بيا به تا به جوتوکيږي — مغلے ځوګ له کوه دامانه

عقل پس زړه دے ناپاکه — لاس دے ستړے خوله چالاکه

ستا تاريخ دے عبرتناکه — چيرے خلاص نے له خزانه

خپل خير خواه ته لاس په بلے — سرسري ته زړ کړے ډډه

مامله دے کړه وده — خپل خانه دے بے نشانه

تا تو کړے تو کړے خوشحال کړ — دربلا دے جمال کړ

خوامان دے په څه حال کړ — بے وطنه سرګردانه

په ديوان ناست ئے خوشحاله — د کونکټ سوتوکښ جاله

بے هنرو بے کماله — په هنر دو رور پښيمانه

بے ناموسه ستا کارونه — ستا بے کاره ناموسونه

ستا زړګے وچوه پښتونه — زړه م چاودے دے له تانه

# کډے وړے

وېل کمتر وايه — خو په هنر وايه

چه ژبه لوبه لرى — هغه ته خر وايه

غمى په هار کښې يو — خو د ګوهر وايه

ساز د ماښام ښکلى — نمونځ د سحر وايه

چه وى مجبرا بد وته — هغه ته نر وايه

چه دے خدمت کړى مدام — هغه افسر وايه

چه وى په تا شيدا — هغه دلبر وايه

که وى ديار تيکرى — ورته سره زر وايه

غوښه د تور تخرى — بوى د عنبر وايه

الله الله که نشے — دلبر دلبر وايه

چه په مردى لړشى — هغه ته بر وايه

بوډا ته خدائے ياد وه — خوان هنر وايه

چه ستانه مخ کښى دړى — هغه رهبر وايه

لګئے دے پورے کړه هله — غنى ته خر وايه

# زما محل

د سیند د سپینو شګو نه مې جوړ کړلو محل
دې تو اخر کې جهان ورته حیران کتل

قالین مې پکښې خور کړو د سرو پاڼو د ګلاب
او چت ئې دیوالونه وو سازونو د رباب

بیا رنګ مې ورله ورکړو د خوبونو د شباب
هر ګل مې ورله راوسته مالیار مې کړو بلبل
دې تو اخر کې جهان ورته حیران کتل

نرګس مې په غیږ راوړه هم میامه مې کړه امیل
د غاټولو د شبنم نه مې ښیسته جوړه کړه امیل

نسیم په خندا راوړل زیړ کالونه د چامبیل
شراب مې ورله ورکړل بیا د اوښکو د بلبل
دې تو اخر کې جهان ورته حیران کتل

رنام دَ سپوږمۍ کړه ډېره پښتې غزلې

خنا ته د تخو بنګلې ږدې ګل پیدا لې

دستو ږومتې سترګې غاړې غاړې پیدا لې

وږوږو پستی راغله د خدای اور کړېل

دے تو لږ ګي جهان وتړ حیوان حیوان کښل

یوا خې ز د بادشاهو مه په سرام تاج دَ غم

پخوا کښې م د لبرو د مسکی سترګې پرنم

په غاړې امیا ښبیسته د ښاخکو دَ شبنم

ماشومه نازنینه پاکه بنګلې اکه ځال

دے توا خ ګي جهان وتړ حیوان حیوان کښل

# قسمت

ګوره طاؤس مرګ ښایسته وزرو
ابلیس برباد کړو علمي خبرو

سپینې ویاړه وو د سپین په تل ګرمن
زړګي نه وچاودې سڼه ملغلرو

ګلاب خپل رنګ اخپل ږنیپنا لاکړ
منصور په دار شو چه با خبرو

پتنګ خپل نرم زړګے سستی کړ
میږے برباد کړ خپلو وزرو

غني پو هیږي خکه ژړیږي
خه ښه به ژوند وکه ژوند نه د خرو

# اور

زما خته چه خوشته کړه
په خه اوړے ابته کړه

چه ے نه وژنم ورته یم
چه ے وژنم لا لمبه کړه

نو رمه ے دخان جوړ کړم
د شیطان ے یوه ذره کړه

خو مړ زه چه ورننزدے شوم
دوړ غته ے پرده کړه

چه جنت وته روان شوم
دوزخ لوے دروازه کړه

چه دوزخ ته ورننزدے شوم
چاپیرے نعره کړه

خدایه دورک کړه دزړه اوره
تا د ژوند ورکه مزه کړه

# د چو ترانه

خوږ دے ماته ملک زما

خوږ تر کل جهان

زه به خم په جنګ د کام

زه چه شمه ځوان

وینه د ه تور د ه زما رګو نو کښې د زنګ — مه کړه مې قام غواړي زه به نکومه په ښخنګ

زور دے د ماليا، مې د توپ مې د تفنګ — زور م د غیرت دے د مه زور د ونو خان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه ځوان

مه څه د پسی سر وي چه پند نه وي په قام — نو څه ښخوني وي چه شیدا نه وي په قام

نوم ناموس څه وي چه یې نوم وي د غلام — دا نوم به بدل کړم یا به کړم بدل جهان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه ځوان

زه پښتون بابا د خپله ښېرې پیدا کړے — زه پښتنې مور په غیرتي پیو لوئے کړے

مونږ به پلار ښکیه د د مړ د کار نه کړي — زه به غلام نه شم که غلام شي ټول جهان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه خوان

زه به په وجود یمه کوټلې وزیر آس

کرم به د کاروان خبردار لکه د آس

یم به د ظالم سترګو کښې تل د ستړګو خس

زه به لکه باز یم د ټوپ مرد میدان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه خوان

زه به لوئے زړګے لکه شیر شاه د بنګالے لرم

مت به ابدالي لرم همت به روهیلي لرم

سر به سپکته نه کړم زه که مې کښته ادم

زړه به سپکته مه کړې چاته سر پټه د افغان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه خوان

# پلوشه

زړه مې پسې وچاود خواشنا مې نکړاندې
صفحه په موټر کاټ کښې نه په سټرې تتو باندې

کوره نواچار دې په اینبولو تر سکونږي
منبعه مې په ده چه تازه وي مزه کاندي

مالي د وصال په صبا راکړ تانپ کوې بل
دومره مهذب او بنایسته نه جانان دې

نن چه د مس کوټې د بابا په کور داخل شوم
لسونه تاریخ ورکوي وار د غني خان دې

# مينه

مغ وي مينه يو ګل دے ۔ اوس تازه وي اوس فنا شي
ماوي يو ګل چه شي مړاوے ۔ سل ګلونه ترے پيدا شي
مغ وي مينه ده اور ۔ سړے وسيځي فنا شي
ماوي اور چه چرته بل شي ۔ جهان ګرم شي رڼا شي
مغ وي مينه يو خوب دے ۔ چه ترے ويښ شي لا بلا شي
ماوي ګوره ژوندانه خوب دے ۔ چه سړے ويښ شي شيدا شي
مغ وي مينه غضب دے ۔ سړے ړوند شي نابينا شي
ماوي خدائے ته بينا سترګے ۔ تل جهان ته نابينا شي
مغ وي مينه دوزخ دے ۔ ماشومان پکښې جليا شي
ماوي ښه دے دوزخ ښه دے ۔ له ګناه وجود صفا شي
مغ وي مينه تياره ده ۔ پکښې خان ورک شي تالا شي
ماوي ښه ده تياره ښه ده ۔ پکښې پټه سخا دنيا شي
مغ وي خوږه دلبره ۔ کاشکې ستا عقل زما شي
غني وي ماشومه ګله! ۔ ستا د سره دے فدا شي

# تماشه

خټک دَ پښتون شلیږی باچا خان وړته ګنډے وهی

کاندی لیونے شوے دے سنداته سرېندے وهی

ښتمنے مراوے وچ خوړاک مرچ تتهنی نے کور

زړګی نے ړوکی ړوکی سخا زړوکی اوړ بوږنوړ

دهند دا بنیادم نه لری دم نه لری زور

په ښخه هیغ بد نه ګنهی پیسے پیسے تناړے وهی

کاندی لیونے شوے دے سنداته سرېندے وهی

دَ غوږ نه تاد کړی تار نوبیا کړی ښاد کوښی لوړته

د صوتی په ښت را واړی توړه ښته کاندی پورته

صم دومره لری وی چه ښی آواز سے کوړته

ښتی سحر چه پاښی خوله کښ ځځمی دو بندے وهی

کاندی لیونے شوے دے سنداته سرېندے وهی

تل لاړې دَ تهذیب کا دَ تهـذیب نه بې خبره

په خوله سوړ مزري وي خالے به ښکته کړي خان بره

چه وخت د عمل راشي بل ته واني دا نسکړه:

په خپله په تُل تښتي الله! تُل خه کړندے دمي

کاندي ليونے شوے دے سنا اته سرېندے دمي

خاربه او مرغن نے ليا، راڼ دي ماليدلي

وښکوکښ نے لعاب ښايسته دَ پان وي بهيدلي

په سټيج کوي ګفتار لکه سالار تو ره ويستلے

که باو پرے چانغړے کړے تښتي خان پسے جړندے (*) دمي

کاندي ليونے شوے دے سنا اته سرېندے دمي

---

(*) جرندے ئے: جلدي ئے.

# پلوشه

وروه دا ظلم و ناروا او دا بیداد　　　په خندا نے زغمه مه کوه فریاد

کوره تل دلوی ملکان ذکا نو زور

وی په سر هاند دکتے دَ بنیاد

چه تکلیف او غم سره خوږه دانا کا

دوم په پوهه ښودنه شی هیڅ استاد

طوړ د ختو کانو جوړیږه نکه غرو

چه ایرے شو تورم شوے په جهان یاد

شین زمری پخپل نرتوب توره یادیږی

کمے تن د زړه ذرے کاندی صیاد

او پخپله سوځی ځکه سوځول کا

دانه خاورے شی سپے کاندی آباد

د مظلوم دَ درد او ښکو پاک سیلاب

په لکها ؤ ښارونے کاندی برباد

غنی چپ شه د بزرگے خبرے مکره　　　ماته واوره ستا خرتوب شو را په یاد

## زړه نوی

زوړ اشنا زین کړی اس دے — دے زوړ کور لکه جنت
زوړ دلبر نوے برستن — نز دے واله نے راحت
زوړ نوکر سوچه قالین دے — بے بها دے بیش قیمت
نوے دوست ته چه زوړ پریږدے — بے غیرت دے بے غیرت
په کمو لو باندے زیات شی — زوړ خاوند نوے شهرت
یا نے بنه په چپه خرابه — یا پوره پریږده سنت
یا لچه خبرے مه کړه — هم زنا هم عبادت
بنی زوړ خیال نوجامه کښی — دغنی دے دا صفت

## پلوشه

مرم مشین کړه خوندے م پریښود
تمهید م کینبود د لیدو دی
خوزړه م هغسے د مستے نا وری
تبه م کیږی نرے نرے

# ګډے وډے

چه خلاصیږی بیوفا عمر زما — د جهان د ښاخه ځي ثمر زما

تورو لړو د مرګي چه شي راپورته — چه پټیږي د عزرائیل ډسه زما

زه به شین د سرو شرابو جام خوله کړم — د جنت باغچه به شي بستر زما

په ژړا او په سجده چه شیخ وینه لید — ما به پوکوټ ولید آ دلبر زما

مرګ یو خوب دی یو نشه د بیهوشي ده — په دے وار به دی بلد ځګر زما

ته د روح په کوتک نه وی ورځي زاهده: — روح او زړه زما یو یو افسر زما

نابینا عقل مست زړه بي ته پینوده — او ستا ره کښي د غم شور صبر زما

د غني د همه لا نے ګډے وډے — خان سړه بے سړو لوکا سر زما

# پلوشه

چاته نے ښائست ورکړو غمګین

چاته نے غم ورکړو ښائسته

زه نے مست او هم هوښیار کړم

هم نے په تخت کړم هم په تخته

# مخ دَ جانان

کله مخ زه په قبله کړم کله کړم مخ و جانان ته
هیڅ په فرق ئې پوه نه شوم ربه! خیر مې کړې ایمان ته

هغه ورځ چې خلق پیدا شو دَ خالق په تجلئ شو
زه دم پروت مخمور مشکور په سجده مخ د جانان ته

اوس زما په بیکسئ کښې د مستئ لمغرې وینې
زه دَ مرګې قابل نه وم ولې تا بوتلم آسمان ته

دَ خیبر و خوګ نشته خان سره غنی ګو مینزی
لیونئ ئې هله بولي چې وګوري جانان ته

# يوجام

د رندے هوانن الوځي ماښام کښې
واخله دوب کړه ټول غمونه په يو جام کښې
څه که شوې چشتي ملنګ څه که امير شوے
کور کښې فرق نه وي آقا او په غلام کښې
تور ښکاري مرګي ټوله دې لاس نيولي
خاندۀ خاندۀ نن بيا نشي خندل دام کښې

# هغه دغه

تمتو دوست کړه سنډا یارکا — خر کړه خپل مطلب پرې بارکا

خوار لوهار(*) ته لا لا وایه — چه تیره د ړله سپاړکا

سرکار مرګ لره چه څوک بیائی — یو کپتان بل صوبیدارکا

د مستئ چه خرڅی پاتې — د شیخئ چوغه اختیارکا

چه نرې رنځ ورشروع شی — خان حاجی کا پرهیزګارکا

چه میړې ته خدائې په قارشی — دوه وزد ودله تیارکا

چه پښتون ته خدائې په قاړشی — لونې ملک نه د سړکارکا

خان او خردې سکه رونه — مست په جرزنا په جارکا

پښتون هغه وی چه مړشی — خپل پردی ورته آزارکا

خرې لونې په جهان نه وی — چه په ږیره اعتبارکا

زړه کړه زهر خوله خوږه کړه — خره راشه خان هوښیارکا

یو دیار شونډې خوږې دی

یو مزه غوښه د ښکارکا

---

(*) لوهار: آهنګر.

# ولے (*)

څوک دے ماته ووائی — څرنګے شیدا شی څوک ؟
څوک چه چاته وخاندی — ولے په خندا شی څوک ؟
ستورے دَ غره څوکے ته — غالی شان بیګاه ووے
مینے په ژړا ووے — حسن په خندا ووے
ماته موسکو سترګو کښ — ښکلی دلربا اووے
ولے څوک زړه وبایلی ؟ — څرنګے شیدا شی څوک ؟

څوک چه چاته وخاندی
ولے په خندا شی څوک ؟

سترګو دمجنون ووے — او ښکو دَ لیلٰی ووے
اووے په نشه خوائی — غم ورو په سودا ووے
ماته موسکو سترګو کښ — ښکلی دلربا اووے
ولے څوک زړه وبایلی ؟ — څرنګے شیدا شی څوک ؟

څوک چه چاته وخاندی
ولے په خندا شی څوک ؟

---

(*) دا ما ۱۹۳۹ ع کښ د دادہ په شپه لیکلے وو.

# یو جام

مستانه ساقي راشه　　یو جام جام راوړه
موسکۍ شه په خندا شه　　یو جام جام راوړه
پیاله کښېږده شیرینه　　خواني دځوانئے وینه
رنګ رنګ مستي رنګینه　　حسینه نازنینه

مجنون یمه لیلی شه

یو جام یو جام راوړه

یو ګل یم ژړېدلے　　یو باغ یم سوځېدلے
یو ساز د ژړا یم　　یو آه د بلبلے

ژوندون شه زما ساشه

یو جام جام راوړه

ګل فامه ساقي راشه

یو جام جام راوړه

یو راک یمه خاموشه　　نغمه یم فراموشه
خواني م په غم بایله　　مستي راوړه بے هوشه

د دې [illegible] زماشه

یو جام جام راوړه

موسکۍ شه په خندا شه

یو جام جام راوړه

مست مست راکړه خوبونه — چه پټ کړم پرې غمونه

شروع کړه د ژوند تال ته — نازک د ښیست سرونه

دلبر شه دلربا شه

یو جام جام راوړه

مستانه ساقي راشه

یو جام جام راوړه

# کړے وړے

عقل ترینه بړیره وخوړه — خیټے ترے ایمان وخوړه

کوره په وربشو کښې — خره لال د بدخشان وخوړه

کوړئے نه خرښیږی — خوار لاله د غمخان وخوړه

قبض شو د صیب — ډیرے هندوستان وخوړه

خار شم د لیلړے د کولمو — خیټه ئے د سنګلو لوډه

چا مهار چا او بڼی وخوړه — اوده واړه کاروان وخوړه

کوم ملا شهید دے — په مزار ئے دیوه بله کړه

مړی ووکم شوی خوار — د لوږے نه قرآن وخوړه

څه د لیونی د مرض

خوشی دارو مه کوه

غم د مرګ غوږ ځنګ د زړه

سترګو د جانان وخوړه

# ګډې وډې

بلبل په هیضه مړ شو ډېرے خوږے وې شاتوتان
لاله م سالار نه شو اوس نے بدیشي هندوان
وه ناسته په آسمان کښې د تقدیر لوبه لو[1] ـه
یوخړے روان کړے وو شاخیل نصرت الله له
فرمان پرے رانازل شو د قادر و ذوالجلاله
کولاے تادئ وکړو بشرچړ کړو د یوخان
بلبل په هیضه مړ شو ډېرے خوږے وې شاتوتان
او د بوزنے خوږ ته سم کړو او هم پرے کړو ترے لکئ
تندي کښې ورله کیښوه د غضب یوه تکئ
مغزو کښې ورله واچوه مرض د ملکئ
شمله ورله کړه نیغه که راجوړی په جهان
الله لاله م وخوړه هم بلبل هم شاتوتان
اوس څه به ساقي خاک په لکهنو کښې نوابان
اوس څه رنګ به لیکي د عشق غزلے شاعران
یاالله تیري شان

---

۱ په تادی : تعدی

# بنی آدم ته

## قصیده

لوئے شے کوډ آکیه او تورپونونه دِ ځار شم
اے دکندو دکه دَ عقلونو نه دِ ځار شم

جوړ کړے دے چا کوتو شوے جوړ نغمه دَ پاره
ځار دِ دَ قلمه دَ حرفونو نه دِ ځار شم

یو یو کے دِ بادے څه دِ رنګ او جنګ خبر کړے
اے دَ سحر خوبه دَ خوبونو نه دِ ځار شم

حسن دے ایجاد کړو مشغولا دِ ځان لجړ کړو
ځار دے دَ مستئ نه دَ سازونو نه دِ ځار شم

علم دے دَ خیال دَ خوب او خوب دَ خیال دے
دومره غټو غټو کتابونو نه دِ ځار شم

پوه په سودا او زیان دے شو او زیان بیچے ته نشے
ځار دِ دَ خندا نه دَ ویړونو نه دِ ځار شم

دوه کړي ژوندون له دے خوقسمه خبرے جوړے کړے

ښار دے دَ سجلدو د تکبیرو نو نه ډِ ښار شم

ستورو او سپوږمۍ سره د راز او نیاز خبرے کړے

اے دخاورو کله! د رنګونو نه ډِ ښار شم

کوم دتیارو کور ته مسافره! سپېنے ستړے ځانے

ښار ډِ دمانو ، دمحلونو نه ډِ ښار شم

ګورے دے آسمان ته او پایُې دے ډوبے ختو کښ

لوئے شے ګوډا کیه: دَ تو پونو نه ډِ ښار شم

# خیال

آئینې د خیال کښې دا دنیا ده
بادشاهي او فقیري د زړه سودا ده

زما خیال دے پورته کوي بنیسته کړے
که مکه که مدینه له دلربا ده

عاشقي د خوب د ننه یو مست خوب دے
د دے خوب د ملک سپوږمۍ محبوبا ده

وخت دریاب یو بے پایانه او بے کنار دے
بے چپے او بے لنګر کشتۍ زما ده

ګل غوټۍ وي شي ګلاب او بیا خاوره شي
د پښو لاندې مې خوږه خاوره زما ده

یو ناسته مې په خوا کښې موسکۍ شوندې
یو ناسته مې سپوږمۍ کښې دلربا ده

یو خاندي د ګلونو په خندا کښې
یو ناسته په تیاره کښې د صحرا ده

# دوه سترګې

کله ګورم مخکې ته او کله ګورم ستورو ته
او کله ګلستان کښې د قبرونو خازو تورو ته

ګورم بتخانه کښې ستا د حسن تجلي کله
کله په سجاده کعبه کښې وینم خلق نورو ته

لويه هنرمنده د هنر کمال دې ګوره
د غټو خبرو ته او دې شونډو کمزورو ته

زه چې ګورم څه وینم ته ګوره ته ګوره
د رنګين جهان ته او زما سترګو شکورو ته

وا ورشه زه زما: غلام دې ګيله منه دې
خلق د غمونو قيصې کړي سترګو غم خورو ته

تا ته يو ساعت يو لحظه کښې سترګې وواني
هغه چې ګلونو کښې وېلې نه شي نورو ته

څه خو مې لوبه کړه چه ژوند د جهان ورته
خاځکي د نور او لېږ لږې د ل په تورو تورو ته

نه دې تاب د بنيست لرم او نه دې د خبرو
ما ته به وواني ته ووايه دې ستورو ته

د وه سترګې م دوه ږنګه هر رنګ دجهان وینی
ګوری یوه مزګوته او بله ګوری ستوروته
په یوه کښ سرور دی مستی دی خندا
په بله کښ سوز اسلویلی او ژړا
په یوه کښ دنیا سرسینګار د دنیا
په یوه کښ ستم غم آزار د دنیا
په یوه کښ ژوندون د ژوندون بے خودی
په یوه کښ افسوس او ارمان په ژوندی
په یوه کښ جنون دے نشه ده افسون
په یوه کښ کافر دی فاسق دی مجنون
په یوه کښ پسهلی دی سپوږمۍ او جانان
او بله کښ خزان تول داستان دانسان

د دوه سترګو خه ضرور دوه — چه یوه دی ښه بینا وے
خومره ښه به ستا آدم دوه — خومرا ښکلی به حوا وے
چه یا غم وی د کلونو — او یا غم د جنتونو
او مجنون ته په کعبه کښ — موسکے سترګے د لیلی وے
تا پوخیل کمال ښکاره کړ — او غوبل دے د ما کښ جوړ کړ
په ژړا الیوفی تا ته — خکه بانګ کښ د سبا وے
خلق د غمونو قیصے کړی — سترګو غمخوروته
ماته په نے ووانی — ته ووایه د ستورو ته

# ورو

ورو یې غوټې د ګلاب وې ماتې ورو          اورې که قصه د اور اشنا شه د ایرو
ما لیدلې خوب کښې د راتلونکي بهار ستوري دې          شپه کښې مې لیدلي د جانان د بڼو سوې دې

نښکلی ځلیدلو د سبا په منارو
ورو یې چپې د نسیم اورې ماته ورو
ستوري خوره پاک ځلیږي شپه کښې د تیارو

زه یم د بهار سلام د ښیست د زړه دعا
زه د مجنون ساز او ورېښم د زلفو د لیلی
وی بام د عشق اوچت دې د کعبې د منارو

ورو د سبا ستوري سحر وې ماته ورو
ګل خوب د بهار دی نغمه شپه کښې د تیارو

زه د سحر خوب د شپې امید یم د وصال          زه د چا د مستې نیمخوبې یم خیال
لمبې دې یو دریاب جوړ د شغلو زرو ذرو          لمبه زه د لمبې دریاب د دریاب ځنګې

بام د عشق اوچت دې
د کعبې له منارو

# شان دانه

( زمالوړ )

او یوه ذره دَ نور ده — شوه دریاب کښې د نیست ډوبه

په خوبونو دَ خوانۍ کښې — یوه شغله دَ نوړ پیلې

دا نړۍ دَ هلال شونډے — دا دَ دوو ستورو رڼا ده

دا د معنٰی خوب تعبیر دے — چه وو ما اوتالیدلے

دا هم زه یمه هم ته ئے — هم زما او ستا خوبونه

دا هم ګل دے هم بورا دے — هم سازونه دَ بلبلے

داچه ستا نیازبینو ګوتو — دازل څانګے ته لاس کړو

داګلاب ئے ترے راواخیست — په نورونو لمبیدلے

داچه زه په پټو سترګو — مستئ دریاب کښې ډوب شوم

دام لال تاله دلبرے — دَ تیارو راخیژولے

داچه ما غمګینے سترګے — په ژړا کړے برو بوته

دا زما د غم خواب کښے — سپوږمئ ګل دے رالیږلے

دا اوبه دَ دوو چینو دی — د دریاب په طمع دروی

زه به جوړ ترے آباسین کړم — په کلونو کښې بیالے

# راشه ورو د یار غمه

راشه ورو د یار غمه

پرېوځه په سینه زما

ګل غمه ګلزار غمه اې د ګلو بنار غمه

خوږ لکه دلدار غمه اې د ستورو هار غمه

راشه ورو د یار غمه

پرېوځه په سینه زما

غم کښې چې امید وي خو پسته نشه لري

د غم ورکښې دا ارمان خنکه پلوشه لري

دا مستي او دا ژړا سره ستا د ستار غمه

راشه ورو د یار غمه

پرېوځه په سینه زما

راشه اې د زړه خوږه ویښ کړه دا جهان ستا

ویښ او په لړزانې کړه سور ګلستان ستا

رنګ زېړ د خزان ستا بوی دې د بهار غمه

راشه ورو دَ یاره غمه
پرېوځه په سینه زما

مستا په تورو لړو کښې — لږه زما ډیره شی
اور او ور کښې ستوری شی — حسن دې ترڅاپیروشی
اے دَ لیونو نښے — مست دَ ستا خماره غمه

راشه ورو دیاره غمه
پرېوځه په سینه زما

ته دَ مودو یاره زما — نښه دَ دلدار زما
ته یم دَ وفا څواه — ته نے نوم دیار زما
خوږ لکه دلداره غمه — ای دستوروهاره غمه

راشه ورو دیاره غمه
پرېوځه په سینه زما

# شاعر

پړچه د شهباز لرے او ستر گے د عقاب
زړه پوست د بلبل خوږے خبرے د بنا رو
سر ډک د خوبونو لکه مینه د قارون
سترگے مینه ناکے مستے سترگے د مجنون
چل د سامری او یا گے کوتے د موسیٰ
تور د غم صلیب په سپینو لو د عیسیٰ
تن ئے سړ باب چه د قسمت گوتو کښ هنګ کوی
خوله ئے د کونګر چه د جانان په پښو کښ ترنګ کوی
دی د گوتے پوته کړی نامه د دیار ولیکی
څه چه قلم نه لیکی هغه د دے خمار ولیکی

# تنظیم په نظم
# دَ
# عبدالاکبرخان

غني کړے سترګے پټے ستا تصویرے ولیده
چینلوخ په لوته وخاته کشمیرے ولیده

چا ولید په ژړا جانان چا ولید په خندا
چا ولید په خوبونو کښې یو خوب دَ دلربا

چا ولید په سجده کښې چا مستۍ کښې دلیلي
عیسیٰ وته موسیٰ کښې شو چه شمشیرے ولیده

چینلوخ په لوته وخاته کشمیرے ولیده
چا ولید په سپوږمۍ کښې چا د شپے توروتیاروکښې

چا د وب دغم دریاب کښې چا د حسن ننداروکښې
چا ولیده پیلي په مستونزو نروکښې

او اولید لیونی چه خپل تقدیر یې ولید
چیناخ په لوته وخاته کشمیر یې ولیده
اې لویه سمنده، او د حسنونو د مستو
رنګین د رنګ جهانه د رنګینو تنستو
چه بخت د لمر خاته دی که قسمت د پریوتو
(او) عیسی ولې موسکې شو چه شمشیر یې ولید (۵)

---

(۵) عبدالاکبرخان اکبر په ۱۹۰۰ ع کال د چارسدې په عمرزو کې پیدا شوی دی. د صوبه سرحد مشهور سیاسي مبارز او د پښتو ژبې خدمتګار لیکوال او شاعر دی. خواره تراخه، خوبګرو، سفرنامه، روښنایان، د مثنوي پښتو ترجمه او نور یې مشهور آثار دی.
خال په ۱۳۵۶ هـ ش کال ومړ.

# اے دَلیونیانو نیکه

اے دلیونیانو نیکه لمونځ ښه که مستي ښه ده؟

حسن جوړېدل ښه دي که حسن پرستي ښه ده؟

وے ښه ده مستي ښه ده خو زړۀ پاک لکه آئینه غواړي

دا دریاب هضمول دَ سمندر څُمره سینه غواړي

حسن جوړېدل دَ بندۀ عشق د کمال دے

تور د غم دریاب کښې سور خمار د وصال دے

او اے زما بچیه! دَ جانان ئې مینه لا ښه ده

نوم ئې ښکلے لا ښه دے جلوه ئې رنګینه لا ښه ده

اے دَلیونیانو نیکه مار ښه که ملا ښه دے؟

تن مې ډک له زهرو که زړۀ ډک مې دَ بلا ښه دے؟

اے زما بچیه وې دیران لره انکار نبه دے

مړ ے له پیښو نبه ده چینلے له بنا مار نبه دے

تاله لیونتوب نبه دے مستی نبه ده صحرا نبه ده

چاله طاعون نبه دے چاله سوړے دمولا نبه دے

دا د دنیا رنګ دے دا دنیا رنګینه لا نبه ده

زیړه نبه ده توره نبه ده تنګه سپینه لا نبه ده

اے دلیونو نیکه حُسن که وفا نبه ده؟

برخه د مجنون نبه ده که برخه د لیلیٰ نبه ده؟

وے اے زما بچیه : د دلبر د خولے هوا نبه ده

یخه نرمه لا نبه ده او تیزه ګرمه لا نبه ده

تا ودغ دیار لوپټه سره رنګینه لا نبه ده

زیړه نبه ده توره نبه ده تنګه سپینه لا نبه ده

(نو) اے زما بچیه : حسن نبه دے هم وفا نبه ده

برخه د مجنون نبه ده هم برخه د لیلیٰ نبه ده

نبه ده فقیری نیکه که نبه دیره دنیا نبه ده

ګل د صنوبر نبه دے که قلا د محبوبا نبه ده

وے اے زما بچیه : سوړ عقاب له دغره سر نبه دے

ګل د صنوبر له نبه او ګل له صنوبر نبه دے

جام له قلاره اوسمندره ته نوفان خوند کړی
ستر کو له مستی خوند کړی اوزړه له ارمان خوند کړی
انو، ای زما بچیه ! فقیری ښه ده دنیا ښه ده
تخت د سلیمان ښه دی د جونګړه د عیسی ښه ده
مشوره لیونیه وزیری که جیلخانه ښه ده
ښه م خپل لوږکی دی که قرض تو تخانه ښه ده
ای زما بچیه : یاره ژړ لوله صحرا ښه ده
تخت د رقیب نه دی ښه تکورنی د لیلی ښه دی
دوست د یزید ښه نه دی شهید د کربلا ښه دی
واک چه نه د بل وی د دی نه زنانه ښه ده
او ای زما بچیه وزیری نه جیلخانه ده

# دَ حورو ښکار

یو عاشق د کلونو د حورو په ښکار لاړ
او د جانان د کوڅې په توبه او استغفار لاړ

وې د جانان ښیست یو خوب و خیال دے
وې دا مستي خودي زما وبال دے

وې پرونۍ ښاپیرۍ نن تورې خاورې دی
دَ دنګو بوټیو ناکے او په پروني واورے دی

وې د جانان پښو ته سجده روا نه ده
دَ مسلمان سترګو له نشه روا نه ده

سپوږمۍ چه وادرېږي و سره ځنې خپل یووړه
رنګ ئې د سترګو نه غوټکۍ د ګل یووړه

د ماښام لوړې ئې له د زړه ارمان لاړ
په پسرلي شپې له ئې د مستۍ شان لاړ

ارمان چه لاړ خوانۍ هم لاړه
خمار هم لاړ مستي هم لاړه

او د جنت په طمع جنت نه خوار لاړ
یو عاشق د ګلو نه چه د حورو په ښکار لاړ

# کډے وډے

مستي چه چاکښ ډېر شي — يا ډم شي يا شاعر شي
نيستي چه بونيرے وُ وي — ملاؤ دَ هشتنغر شي
چه صبر چاکښ ډېر شي — يا ملنګ شي يا بادشاه شي
چه کبر چاکښ ډېر شي — يا فرعون يا دنکاچا شي
چه اَس دَ تهتو زوے شي — قدغنے بلخشانے شي
چه ډم وي په کابل کښ — •خالصه •کښ درانے شي
په چا چه کينه ډيره شي — يا تخت شي يا تخته شي
په چا چه نفل ډېر شي — يا تهتو يا فرښته شي
خواني چه چاکښ ډېر شي — يا غل شي يا ولي شي
چه زور په چاکښ ډېر شي — يا يزيد شي يا علیؒ شي
دچا چه بخت راوبښ شي — يا مجنون شي يا ليلیٰ شي
په چا چه تهذيب ډېر شي — ملوے يا ملولا شي

بنهیا چه دیرسخی شی | یا پیتی شی یا پالک شی
مهمند چه معتبر شی | بے غیرته شی ملک شی
چه مینه چاکښې زیاته شی | نبی یالیونے شی
چه دم وی په کابل کښې | خالصه کښې درانی شی
چه علم چاکښې دیر شی | یا شیطان شی یا فقیر شی
چه وس دوسه وو خی | یا نصیب شی یا تقدیر شی
چه وخت د توله وخی | یا قیامت شی یا وصال شی
چه سر د خوده وخی | (نو) یا شړنګ شی او یا تال شی
پښتون چه غیرتی شی | یا خان صیب یا خان بادړ شی

نیستی چه بونیری وی
ملا د هشتنغر شی

# ځوانه

سوے باغ تالا ګلشن دے — مړاوے ګل خاورے چمن دے

نه بلبل نه لولکئ ښته — نه نرګس نه یاسمن دے

د ګلاب دے ایرے شوے — که په اور سوے ختن دے

اے پښتونه! ستا وطن دے — اے پښتونه! ستا وطن دے

د دے باغ خاورے را واخله — ترے نه نوے بوستان جوړ کړه

اے د سوی باغ مالیا ره — د نورو نو جهان جوړ کړه

اے چه ښکته ښکته ګورے — نن پښے ابله سره تورے

نه خبر ئے چه ته څوک وے — ته د مینځ آسمان وی ستورے

ستا شمله چه به شو پورته — شوے به ښکته شملے نورے

په مستی اونګ به سر وے — ستا د تیغے سترګے تورے

اے د تیغو سترګو ځوانه — پاخه هغه جهان جوړ کړه

د دے باغ خاورے را واخله — تر ینه نوے بوستان جوړ کړه

اے دَ وران غږه پیرنے — اے دَ وږې نجې پلاره!
بې دړه که سر کړدانه — اے دَ سوي باغ مالیا!
اے چه نن بربنډه نجې ستا — دَ خوراک په کشاله دي
ستا دَ لاس مانۍ ولاړې — په ډهلي به بنګاله دي
اے دَ بل دَ درمسریاده! — پاڅه هغه دوران جوړ کړه
ددے باغ خاورے را واخله — ترینه نوی بوستان جوړ کړه
اے په غره په سر دره کښ — په باغونو په میرو کښ
په جنډول کښ په تیراکښ — زما لال پټ په ایرو کښ
اے د زرګو په خنداکښ — دَ تنزدو په نارو کښ
دَ شیرشاه نازبینه زویه — ته نے پروت تورو تیارو کښ

کړه دَ غم تیارے راغونډے
ترے دَ مینے داستان جوړ کړه
ددے باغ خاورے راواخله
ترے نه نوے بوستان جوړ کړه

# دُعا

اے دحسن او نور دریابه! ماله یو تکے دَ نور را

ستر کے دکے دخندا راشونډے دکے د سرور را

زه دے خپل وړوکی زړگی له یوه نښته دیار غواړم

اے دحسن او نور دریابه ماله یو تکے دَ نور را

دے تک تور دغم محل ته یو ځغری د رڼا را

ستر کے دکے دخندا راشونډے دکے دَ سرور را

دے مستی او دارمان له یو تصویر د جانان راکړه

ستا په مینه نازیدل راستا په ښکلی مخ غرور را

دے دَ خود سوی باغچے له یوه وعده دَ بهار غواړم

زه دا نه وایم چه جنت راکړه دا نه وایم چه طور را

د دے خوب د سا او وخت اشاره د تعبیر نه کړه

ماله نه د بادشاهانو او سینه د فقیر راکړه

# مینه

رَبه داسے لیونے شوم په یو خیال بانْدے مین شوم
خُم دوبینزِم مسمنلهٔ کښې په یو لال بانْدے مین شوم

رَبه: داښنګه مستی ده چه جانانِ م پکښې ورک کړ
که په مخ دیار دِ سترګو په دلال بانْدے مین شوم

زه دَ سیند د څنډلو نه ووم یو وړلپهِ م څکره پورته
زه دلبر د مینے نه ووم په هلال بانْدے مین شوم

چه مِ نه ښانید سینه کښې پخوبونو کښې مِ ښاے کړ
مخ مِ ګرو مخ دجانان ته په یو خال بانْدے مین شوم

دا مستی نه ده ځوانی ده نه مستی ده دَ شرابو
دا خوزه دَ یار دَ سترګو په یو خیال بانْدے مین شوم

دا مِ بانګ دَ لیلیٰ واورید که سټاینه دَ بلال؟
که دیار د پایلو شرنګ کښې په یو تال بانْدے مین شوم

پتنګ پروت وو په تیاره کښې په نامه د شمعے مست شو
که دا زه دَ یار دَ سترګو په یو خیال بانْدے مین شوم

ملغ سوے دلبر ولید په یو ښاخکې دَ شبنم کښې
که صنم ماته موسکے شو په خوبونو د صنم کښې

# مړه شمع

ما ته نسیمه مه وایه          مه وایه: یار به سبا راځي
ته د مستۍ خبرې کړې          ماله ژړا ژړا راځي

اې د رند و مسلو ملا!          اې د اوږدو سلسلو ملا!
ستا په دې راز و نیاز پورې          ماله خندا خندا راځي
ما هم یو خوب لیدلې وو          ما هم یو باغ کرلې وو
ته چې قیصې د ګلونو کړې          ماله ژړا ژړا راځي
زه هم یو شان د خوانۍ وم          زه د مستۍ یو تصویر وم
اوس یو ذره د ایرو یم          څه که بېګاه سبا راځي
زه لکه مړه شمع ورکه شوم          ورکه په طمع د سوز شوم
کله په لاس د ساقي راځي          کله به اور اور رڼا راځي
تالې خوانۍ چه لاړه شي          چرته به بېرته بیا راځي
ته د مستۍ خبرې کړې          ماله ژړا ژړا راځي

---

او د بنده مثال لکه د خس دی
تور شي لوګې وکړي رڼا کړي جوړه
لمبه شي وسوځي خاورې ایرې شي
بوره ابۍ پرې ژړا کړي جوړه

# بنده

بنده بدلیږي داسې بدلیږي
لکه بدل شي چه وخت دَ کال
کله سپرلے شي کله خزان شي
کله مستي شي کله وصال
کله پوحسن شي یوسوز او خوب شي
کله مجنون شي یولیونتوب شي
کله فریاد سلګۍ، کله نړتوب شي
کله سینه دسقراط کله خرتوب شي

کله ارمان دَ سینې او کله لال
کله مستي شي کله وصال

مینه مستي ده داسې مستي ده
لکه مست وي دَ بنکري تال
کله سورګل شي دَ سپرلي شپه شي
کله منصور شي کله بلال

کله یو غم شي ساز او ستار شي

یاد غوټۍ ارمان د ګلو هار شي

کله سره د سوز کله چغار شي

کله قصه د بنایست کله دلدار شي

کله سینې د هور او کله ئې خیال

کله مستي شي کله وصال

غم یو نشه ده داسې نشه ده

لکه نشه شي په بانګ بلال

داغ یو تش دې د عاشق زړه کښې

د یار د سترګو د خط او خال

کله شراب شي مست او سرشار شي

کله د زړه جام شونډې د یار شي

څوک ئې تسپې کړي د چا زنار شي

کله قسمت شي او کله اختیار شي

کله ماښام شي کله هلال

کله مستي شي کله وصال

وخت ، بنډ بدلیږي داسې بدلیږي

لکه بدل شي چې وخت د کال

وي ئې ارمان شي هیر جانان شي

هیرې مستي شي هیرې وصال

# سلام

نه ساز شو نه سوز شو — بس هسې ژوند تمام شو

نه خوب شو نه شرنګ شو — نه یار ګلندام شو

د اتوړو توره شپه راغله — نه ستوري نه سپوږمۍ شي

خواني وه لاړه لاړه — یو کوټ او خالي جام شو

یو ستورے د سباؤ لاړ — سور ګل یو د لاله وو لاړ

سوړ لمر زیړ زیړے شولو — نرے نرے ماښام شو

قصه د حسن هیره شوه — مزه د مینے تیره شوه

مُلا بانګ د سبا دے — اخر په سول خیام شو

مستي بے پروائي وکه — په خود کښ بے خودی وه به

او ځوړه لیونے هم نن

بادشاه ته په سلام شو

---

# د ژمي ماښام

| | |
|---|---|
| اوه نن د ژمي ماښام | د جړي شپه ده |
| پوست شبنمي باران | بهر ورېږي |
| غاړه د اور او خیام | شروع قصه ده |
| د شاعر سره اوستا | مهین غږېږي |
| تنګ او تکور د ژوند | ناز او مستي د جانان |
| شړنګ د ځوانۍ کنړېت | شا تار د غم وهي |
| خندا مستي د ساقي | بت پرستي د ساقي |
| ستیندي د مرګ سره | د کونګرو شړنګ وهي |
| او نن د ژمي ماښام | د جړي شپه ده |
| پوست شبنمي باران | بهر ورېږي |
| یار شروع کړې مانه | د غم قصه ده |

کله موسکي شي

کله ژړېږي

# مست

چه مې زړه مست وو دنیا وه مسته
کلونه مست وو لیالي وه مسته

چه مې زړه ډوب شو دنیا بوډۍ شوه
کلونه مړاوي شو لیالي بوډۍ شوه

چه مې زړه مست وو شونډې تودې وې
د زهرو شونډې به هم خوږې خوږې وې

چه مې زړه ډوب شو شونډې مړې شوې
ښځې د داورو په شان د حورو خړې شوې

چه مې زړه مست وو سترګې مې سرې وې
مدام صبوح مې وه د سپرلي شپې وې

چه مې زړه ډوب شو سترګې هوښیارې
خزان مې مل شو په نیمه لارې

خدایه و ژوندون بس ځواني مستي ده
دا نور ژوندون نه دی یو کړېدۀ دی

سترګې چه یخې شي رټب دې کړې پټې

چه مستي نه وینې داغه لیا ږدي

او ما بناسې یاره ورو راروان دې

سبا به چونګ خاوړوي نن غنچان دې

جانانه: شونډې ماته نزدې کړه

چه زړه م مست شي دنیا شي مسته

چه بیا سپرلی شي ګلونه سره شي

چه خواني ورانګي خندا شي مسته

# نور او سینګار او خمار

کل د بنډ ښایست سترګو له پسته رڼا
شونډو کښې دا بیخودي شونډو کښې نشه

نښیت له دخپل خان په شان نور او سینګار او خمار
یاره دخندا په ځاسپین ډېر ګلونه ما

مینې له د ګزور د سمندره زړه د بېچاو کړو
سازونو اوازونو ښایست تا د ښار وور کړو

ما د غمونو ارمانونو جهان را کړ تا
ما زړګی پوست او مستانه او حیوان کړ تا

او ... ستړو مستا دیار د حسن د آرام ځکې
کله د سپوږمۍ د رڼا کله د ما بنام ځکې

کله د خوبونې دا امیدونو د ارمان ځکې
کله خمارۍ ستا د خمار او ستا د ښان ځکې

اے د دوزخونو د قیامت او د حساب ربه:

اے د تورو زلفو د لالونو د دریاب ربه!

اے د مینې حسن د خوانۍ او د شباب ربه!

اے د مستو سترګو د نرګس او د ګلاب ربه!

اے د لونګۍ د مینې اے د کل د خیال ربه:

اے د ساز او نیاز او د نسیم او د هلال ربه:

ولې د حسن جور کړو دا د خاورو ښار

نښیت له د خپل خان په شان نور او سینګار او خمار

# عقل مے حیرانه

زړه مې بیقراره بے آرامه مې دے خیال
عقل مې حیرانه او فکرونه مې جنجال
پوهه مې د دنبنتی لکه لومه کښې سرخکه
روح مې دے تیار و کښې لکه لړه کښې هلال
رتبه: زما رتبه: دَ جانان دا خط وخال
دا ززرینے زلفے کچه خوله وروخے هلال
دا ستر گے نیاز بینے دا پستے ستر گے رنگینے
پاکے د نرگس نه دلولکے نه وریښمینے
سرے ستر گے مستانے دَ مزے ستر گے حیرانے
دکے دَ جنت او د دنیا ستر گے جانانے
کله د ماښام لرے کله د رنا دکے
کله دَ پرون د نبکے کله د سبا دکے
وینم پکښے زه وار ه دنیا د جام جم په شان
او بنکے نے دی پاکے پاکو ونکی دَ زمزم په شان

دوب پکښې پراته د ساز او حسن جهانونه دي
دوي ليدلي زر لکه سپرلي او خزانونه دي
دوي کښې د مستئ او بيخودئ د خزانو قصې
دوي کښې د مرګونو د ژوندونو د خوانو قصې
دا به تور چينجي شي او چينجي به تور خاورې شي
دوبه به د ندوکي کښې د غرونو د سترو اورشي
خنکه به چينجي د ماښام سوز ساز د سبا وخوري
خنکه به چينجي د سپرلي شپه د لمر رڼا خوري
څه شو د اياز د زړه مستي د محمود سوکه څه شو
څه شو د زليخا د مخ ښکلي کوډاکه څه شو
زړه مې بې قراره بې آرامه مې دے خيال
عقل مې حيرانه او فکرونه مې جنجال

# ژوند

ژوند مې لوئے دریاب دے وړه وړه خوږشوسمندرکښې
شاڅکې وړکې دریاب کښې شو په طمعو دَ ساحل

بخت کښې دَ سیلاب دی په مستئی په چپو تلل
نه وړځی دریاب له غونډېدل او اودریدل

دے لحے دَ ساز له تله ژوندون ودریدے مرګ دی
زیرے دماښام وی دَ سحر راخلیدل

ګلو ے دَ چپے کړه د ابد مستانه تال ته
وکړنګوه سازنے تارخانو کښې د ازل

لاړلیونی لار چرته دلمر شغلو کښې دوبے شو
شاڅکې وړک دریاب کښې شو په تمه دساحل

# اَرِنئ

خان له څه بهانه زه دَ بېګاه او سبا کومه
خاوره کښې دې ګل له د کلونو دنيا کومه
سترګې م لټي چېرته صحرا کښې مناره يوه
شونډې م لټي دُعاله بنګالي ننداره يوه
ګرځم ما بنا مې کښې د زهرې هلال شغلې لټوم
زه د شبنم څاڅکي له خپاوي او سیاسلې لټوم
خان له بهانه د خندا وجه د ارمان لټوم
شپې له د سازېږي او مينې له جانان لټوم
څکه کله ګل کله پسرلی کله هلال اخلم
پورې تړې دنيا لټوم په وازو سترګو جال اخلم
کله درياب کله کومه دَ خيام تپوس
کومه د غمونو تالو سونه دَ آرام تپوس

خان له څه معنی زه د بیګاه او سبا ګورمه

خاوره کښې ګل له د ګلونو د نیا ګورمه

ژبه : د خوانئ او د مستئ خوب له تعبیر لټوم

دے دلمرذ رو له ز ه تر لوله ز غـــیر لټوم

ژبه : زه ژوندون له او مرګی له یارانه ګورم

دے لیونی سه له د منلو افسانه ګورم

خان له جهانه زه د بیګاه او سبا ګورمه

خاوره کښې دے ګاله د ګلونو دنیا ګورمه

# ساز

ورکړه شرنګ دے ستا رله یاره! — نو دے دَ منې مابنام دے
نو دے سپوږمۍ را ختلے ده — نو دے سرور کښې خیام دے
او دَ زړه تار خانو ته دے — ګوتے د ساز ور ښکته کړے
وی : د محمود خبګر ته ښن — سترګے آیاز ور ښکته کړے
سترګے مینے په غم ډکے — ډکے د سرا و صنم ډکے
سترګے ستے د شبنم ډکے — خندګه په ناز ور ښکته کړے
او دے دَ خاورو ستارګښې تا — څنګ د ابد قصه جوړه کړه
او د دیو شرنګ او ټهنګ نه دے — ماله مستی نشه جوړه کړه
تا د ګلونو دَ رنګ نه — ماله دَ یار تصویر کړ جوړ
تا دَ تارونو د شرنګ نه — ماله یو خوب او تعبیر کړ جوړ
تا دَ سرور او غور څنګ نه — ماله بابه، منیر کړ جوړ
تا دَ غمونو دَ رنګ نه — ماله دَ غم اکسیر کړ جوړ

تا دَ غرور او ارمان نه — ما ته بهار او خزان که جوړ

تا دَ ژړا دَ آواز نه — ما له تصویر دَ جانان که جوړ

تا دَ نرګس دَ دوه پانو نه

ما له بهار او ګل که جوړ

تا دَ نسیم دَ خبرو نه

ما له فریاد دَ بلبل که جوړ

ورکړه شرنګ دَ ستار له یار

ورکړه رنګ دَ خمار له یار

ورکړه سلام ګلونو له

ورکړه دعا دَ یار له یار

بیا نست او ارمان را وسپوه

ما له تورنے ګل او خزان که جوړ

او دَ نسیم دَ خبرو نه

ما له تصویر دَ جانان که جوړ

# زړک خیال

یو ښیښته غوټۍ ماشوم وو. که یو خیال که یو خمار وو
یو مُسکے شان تا نے وکړو د ازل د تیارخانو نه
زما خواله ښاغلے راغے لکه یو ست قیام دیار
که یو ستوری سترګے والی چرته لرے د تیارو نه
که د توبه کوتے وکښے شاهزادګۍ د نور والر؟
د ما سترګو کښې غمونو. بنکلے شونډو کښې خندل
د جهان یې حرکت وو. که یو رنګ د تخیل وو
که د تال ګنګرو په خپو کښې م خوبونه کله بیدال
لکه رنګ هوسے باغ کښې په هیڅ شی نے یقین نه وی
چرته پټ په کښې یو خوب وی د صحرا او د ځنګل
ما د مینے لاس خوار وکړو. څه دعا وه څه ارمان
ماوے آره نګینه نه وه. راشه مست که دا جهان
زه به خپل خود ستا وجود کړم چه نه سترګو ته ښکاره شے
خپل احساس به د جامه کړم چه یو ښیښت یو ننداره شے
ستا مستۍ له اخاره به د خان سرور درکړم
ستا امید او مشغلا له. به خوبونه د طور درکړم

زه به خپل ژوند ترجهان کړم ستا د ژوند د کتابونو
زما کوتے به ستا ړوې. ستا د شړنګ ستا د شړنګ
یو قدم مے که راپورته. هم راته هم پیریده
د صحرا عادت هوسئے ؤ به ګلزار کښې تریاؤ

ما خپل زړه ستړګو کښې خوړ که. دیره په سینه وررواړ شوم
عجیبه جهان ته لاړم هم عاشق شوم هم جانان شوم
خو چه زه ئے ورتلم خواله. تو چا چغه کړه چه خان،
کیو شپوله اغلی. درسے خاوره دړله دوستان

یو نظر م چے تے وارو. نو د نورو بنا پیرسے نه ؤ
چار چاپیرو په تیارو کښې نه ئے نوم ؤ نه نښان

اے زما ماشومه زوره. ته به ګرزے کم صحرا کښې
د تیارو په شپه کښې زکه. ستا خوګوردي په دنیا کښې
و لے لاړے یو زک خوب شوے دا زل روکه دنیا کښې
ستا خاښت کښې زما ژوند دے. ستا جمال دے زما سا کښې
یو نظر کښې که دے ماته سور ګلشن تور بیابان
لیوئے. لیوئے ګرځم دسے زک شوے م جانان
راشه راشه په خدا شه لکه ستورے په سبا کښې
د تیارو په شپه کښې زکه. ستا خوګوردي په دنیا کښې

# یوه قصه

څوک په ساز کښې — څوک په خوږ بېسوي رباب کښې
څوک په مسته ترانه کښې — یو تمه په بل افسانه کښې
هر وخت هره زمانه کښې — په فراق په یارانه کښې
بس د خپل جانان قصه ده — په هر مخ د دې کتاب کښې
څوک نه وي په ادا ستو کې — څوک په مست نګین باب کښې

---

څوک د تال او حرکت نه — کړي ژړا او خندا جوړه
تول وجود یې یو ارمان شي — چه د غم کړي ګډا جوړه
لاس او خپې د ګا و څانګې — د بوډې تال په حباب کښې
د آشنیست داسې رنګونه — نشته نشته په ګلاب کښې
خو هم هغه یو ارمان دی — دې د تال او شړنګ رباب کښې
هم هغه یوه قصه ده — په هر مخ د دې کتاب کښې

---

څوک نه ساتګې راواخلي — په خپل او ورسره لمبه کړي
یو مستي سره ورته جوړه کړي — په جانان نې صدقه کړي
ګله ډوب کړي د خپل خمار کړي — د دې هم خان سره نشه کړي

کله تور غمګین ماښام کښې　　　　دوی په غم کښې یو تیاره وړاندې
یو بې وسه مایوسي شي　　　　نا امیده او ډک ماتم شي
یو بې نومه اضطراب شي　　　　سوځي لوګي سې آدم شي

د سرو جام د میخانې کښې　　　　د جانان په سپین محراب کښې
د صوفي په پټ سرور کښې　　　　د عاشق د عشق شراب کښې
د شاعر د لاس کمال کښې　　　　په جنون په اضطراب کښې
بس یو رنګ دې چه ځلېږي　　　　هم جانان کښې هم ګلاب کښې
هم په ساز هم تال کښې　　　　هم په خوږ سوي رباب کښې

یو خوا تور مغروره مرګ دې　　　　بل خوا ژوند یو رنګین خوب
یو خوا غم درد او تیاره ده　　　　بل خوا مستې شان لیونتوب
یو خوا ژوند یو بې وسي دې　　　　لویه توره مقبره ده
بل خوا ژوند یو مستي ده　　　　د امید ارمان نشه ده
په یو سوال د هم پوهه نه کړم　　　　د ژوندون په لوی کتاب کښې
دغه سوال بس دغه سوال دې　　　　هم په رقص هم په رباب کښې
عاشق مینه کښې سرور کښې　　　　شاعر غم او اضطراب کښې

هم هغه یوه قصه ده
په هر مخ د دې کتاب کښې

# د مدونو یادونې

# او

# څرګندونې

د پښتو د اوسنی ادب د تر ټولو ستر شاعر خان عبدالغني خان له نامه سره به د افغانستان او برصغیر په علمي، فرهنګي او سیاسي حلقو کښې ډیر لږ خلق بلد نه وي. خان له پښتونخوا او افغانستان او برصغیر سربیره په نوره دنیا کښې هم د نامه خاوند دے او په خاص ډول د پښتو ادب خارجي محققین او له انګریزانو سره د لرو بر پښتو د آزادۍ د جګړو مورخین او مطالعین د ده له نامه او ژوند، کردار او کلام سره آشنا دي. او ډیر لږ وړیه په هغه مقام هم واقف دي چه زمونږ د غه لوی شاعر د پښتو په معاصر ادب کښې لري.

سربیره پر دې د پښتو ادبیاتو په معاصرو تذکرو (۱) کښې هم خان. عبدالغني خان زمونږ مشرانو ادیبانو پر مونږ پیژندلے دے او یو ځای ته

(۱) پښتانه لیکوال د ب علي محسن جمعل ص ۱۰ - ۱۹ - د ۱۹۵۹ ع ص د پښتو [illegible] چاپ . او [illegible] د [illegible] د [illegible] ۱۳۴۶ ه ش [illegible] چاپ .

نور هم خپلې ځینې تحقیقي او علمي مقالې د ده په ژوند او فن کښل شوي دي (۲)،
مګر داچه اوس یې د کلام یوه عمده برخه د (کلیات) په نامه د چاپ زېور ته
راوتلې، نو بویه چه د کلیات له لوستونکو سره د مرستې په خاطر د ده په
شرح حال او ژوند او هنرمندۍ هم څه وکښل شي. چه له ابتدايي لوستونکو
سره د هغه په دود مرسته وکا، البته منتهیان خود خان له ژوند او هنر
سره تر هغو چا ډیر بلد دي.

نو زه به په همدې نیامت خپله لیکنه د ده د شرح حال له کښنې پیل کړم
او بیا به په ترتیب سره پر بحث ور موضوعاتو نورې خبرې هم وکړم.

## کورنۍ او د ژوند ابتدايي حالات:

د پښتو ژبې د غه د غوښتلو د شاعر خان عبدالغني خان پلار
د پښتنو ستر مشر خان عبدالغفار خان دئ او مور یې
د رځړ د خانانو د یار محمد خان لور وه. چه له باچا خان سره یې په ۱۹۱۲ ع
کال واده شوی و (۳)

د غو دوو خاخیلو له پیښته په ۱۹۱۴ ع کال (۴)، د شمال مغربي سرحدي
صوبې د هشتنغر د اتمان زو (۵) په کلي کښې د پښتو ژبې د غه نومیالي او نکیالي

---

(۲) کتاب سال ایبس، د مرحوم استاد بینوا مقاله ص ۱۰۹-۱۲۹ د ۱۳۴۶ هـ ش کال د کابل چاپ.
(۳) زما ژوند او مبارزه، د خان عبدالغفار خان ص ۷۰ د ۱۳۶۲ هـ ش د کابل چاپ.
(۴) په پښتنه لار کې ص ۹ ولی د غني خان د زیږېدنې نېټه د ۱۹۱۲ ع شاوخوا ښودل شوې ده؟
(۵) په کتاب سال ایبس ص ۱۰۹ ولی مرحوم بینوا د غني خان د پیدا کېدو سیمه د هشتنغر ورزید ښودلې ده؟

شاعر وزیر ید. پلار یې د عبدالغني نوم کښېښود.

عبدالغني د مور او پلار لومړنۍ اولاد او د دوی ډېر نیازبین و. استاد بینوا مرحوم ددۀ د یوۀ دوست په حواله کښلي دي چه: "غني په کوچنیوالي کښې ډېر ښکلی او د مور او پلار ډېر نازولی و. په غاړه به یې د سرو زرو د نه او ړنۍ وه او په پښو کښې به یې د سرو زرو والۍ وه. په سر به یې تیله داره ډېوټۍ وه. څه به چه تو ټۍ او په تو ټۍ کښې به یې د زرینه جوړته تومبلې وه چه د جوړغو نه چار چاپېره ښکاري ..."

مګر د غه نیازبین توب ډېر پایښتي نه و. خکه ښکیالی پلار یې هغه مهال د وطن او خلکو د خلاصون لپاره د انګریزانو پرضد مبارزه پیل کړې وه او په خپل کور کښې آرام نه و ناست. له بله پلوه د غني مور هم ددۀ په پنځه کلنۍ له دنیا سترګې پټې کړې او نازولی غني د مور له لوړ تې غېږې محروم شو.

د غني د مور د مرګ واقعه د پښتنو لوی ملي مشر د غني پلار باچا خان داسې کښلي ده: "د جنګ په وجه په دنیا کښې سخته وبا راغله. په جنګ کښې دومره انسانان نه وو مړ شوي، لکه په دې وبا کښې چه مړه شول. په هندوستان کښې هم دې وبا ډېر خلک ووژل. پښتانه هم ډېر پکښې مړه شول. دا داسې عجیبه وبا وه اکثر به یې ځوانان. جینکۍ او هلکان وهل او مړه کول او چه یو کور ته یو ځل ننوته بیا به یې یو هم نه پرېښود .... په دې مرض د تولو نه اول زه پرېوتم دوم خو هسې خدای جوړ کړم .... زما ورور سته غني چه د پنځو کالو و نا روغه شو.

غني ډير ښکلے وه. د مور ورسره ډيره مينه وه. ډيره بې ورته ژړل ما به منع کوله او د صبر تلقين به مې ورته کولو خو د هغے زړه به نه صبريدو. يو ورځ د غني د رنځورۍ سخته شوه مور مې ورته د کټ سره ناسته وه د ده سره به غير کښے اېښے و. ما د ماښام لمونځ کړے و په مصلىٰ ناست وم. دعا مې کوله غني ته مے کتل چه بے هوشه پروت دے چه ناځاپه مور مې پاڅيده د زوے سره يې دخپل ورانه نه په بالښت کښينبوده او د زوله کته چاپيره وګرځيده او سره يې ودريده او لاس ونه يې په دعا پورته کړل او په ژړا يې ووئيل چه اے خدايه د ده مرض په ما کښيږده او ده ته ماشوم ته شفا ورکړے. د خدائے يوه عجيبه حکمت و. په سبا له دانا جوړه شوه. د د مرض ورځ په ورځ زياتيدو او د غني مرض به ورځ په ورځ کميدو غني جوړ شو. او مور مې خوا نيم که شوه. ماشومان مې راته پاتے شو. د غه وخت غني د پنځو کالو. ولي دريو کالو او خور يې ديو کال وه. (٦١)

د مور تر مرګ پسے ورپسته د عبدالغني خان روزنه د ده دانا د پاچا خان[ن] د مور په غاړه وه. مګر د هغے هم د ژوند ډير ورځے نه وو پاتے. په دا وخت کښے چه باچا خان د ډيره غازي خان په جيل کښے قيد و. مور مې هم وفات شوه (١١) او د غني د غے پالونکے او مهربانے هم له دنيا سترګے پټے کړے. غني بے سرپرسته پاتے شو. لنډه دا چه په غني د ماشومتوب په دور کښے د ژوند د ناوړه پيښے راغلے مګر ورو ورو د دغه حالات مخ په ښه کيدو شول. خان کاکا چه د غني د ملزم شو

(٦١) زما ژوند او جد وجهد ص ١٣٢ - ١٣٣.
(١١) همدغه کتاب ص ٢٠٩.

او سنوږغنو ته لار ددہ په شخصي ژوند کښې هم تبدیلي راغله .

## زده کړه ، روزنه او فرهنګي محیط :

د پښتو د اوسني ادب دغه نومیالي شاعر هغه وخت د مل یې
د ننګ شو چې باچاخان او نورو مبارزو او ننګیالیو پښتنو په همت په پښتنو کښې
د عصري تعلیم د شروع کولو او عامولو جد وجهد جاري وو . او دده په همت
او میرانه په ۱۹۲۱ ع کال د اتمانزو آزاد سکول جوړ شوی وو ، خود لرو پښتنو
په چاپیر چل کښې په عام ډول د تعلیم څه شوق نه وو ، او د پیرنګي اجنټانو
په د عصري تعلیم د مخنیوي لپاره په خلکو کښې ډول ډول غلطې پروپاګنډ ے
خپرولے او خلک یې له عصري تعلیم څخه لیرې ساتل ، په قبایلي او کلیوالي سیمو کښې
د سبقونو عام دود په جوماتونو کښې ها غه دیني نصاب وو ، چه له څوانه تر اوسه
لا په خینو ځایونو کښې چلیږي .

غني خان په دغسې شرایطو کښې د سبوږغني شو ، او میرني پلار یې
د اتمانزو په آزاد سکول کښې شامل کړ .

استاد بینوا مرحوم په دے باب کښلي دي : " د غني خان ابتدايي زده کړه
په هغه آزاد قومي سبوږغني کښې شروع شوه چه باچاخان او د هغه دوستانو
د غریبو هلکانو د پاره په اتمانزو کښې جوړ کړے وو ، او زده کړه یې کښې
وریاوه .

باچاخان خکه خپل زامن دے د غریبانو سبوږغني ته واستول چه خلک

ونه وايي چه: باچاخان د خپلو اونورو د زامنو تر مخ تو پېر کوي. خپل زامن
معتبر ښوونځي ته بيايي او د نورو زامن د غريبانو ښوونځي ته استوي (۹).
د لسم ټولګي تر پاس کولو وروسته د دهلي په جامعه مليه کښې
شامل شو، په ۱۹۲۹ع کال باچاخان ديوه مرام لپاره بېرته چارسدې ته راوغوښت
او څه موده وروسته يې تحصيل لپاره لندن ته وليږه. او د ۱۹۲۹ ع کال
د جولاى په ۲۳ نيټه د خوارلسو کالو په عمر د لندن په نيت په بمبئي کښې د او بو جهاز
کښې سور شو.

استاد بېنوا د ده د لندن د سفر په باب ليکي: "غني خان لندن ته
ولاړ او هلته يې د باچاخان په مشوره دوه نيم کاله ديولوي پادري په کور کښې
تېر کړه. وايي چه په دې کښې د باچاخان مطلب دا و چه غني خان که د پرنګيانو په يو
اوچت خاندان کښې عمر تېر کړي نو د پرنګيانو د عظمت په راز به پوه شي....
د انګلستان آزاد ماحول کښې د غني ناياب ښايست د هغه د پاره يو لوے
مصيبت شو. چه چېرته به تې پرنګيانې جينکۍ به ور پسے وې او سبق ته به يې
نه پرېښود. خو په آخره کښې د لندن يوه د فلم ستاره ور پسې مېنه شوه چه ډيره
بے بها ښکلې وه. د ده نوره ملګرو ته ويره پيدا شوه چه غني به يې په نکاح
وانغلي، نو يو کس پکښې باچاخان ته خط وليکه او د ټولې قصې نه يې
خبر کړ، باچاخان د تار په ذريعه حکم وکړ چه فوراً امريکې ته لاړ شه (۹).

---

(۹) او سني ليکوال ج ۳ ص ۹۷۰
(۹) همدا، غد اثر ص ۹۷۱

دغه خبر: خانے خاے دغنی خان په شاعرۍ کښے هم خان بنکاره کوی

چه دلندن د پیرنګو جونو ښایست په زړه اثر کړے و .. دلندن معشوقے»

ترمه لیک ددې یو د تو ته د وچه داسے پیل کیږی :

دلته خواته ازغی دی — بل خوا څانګے د نرګس

د هسنر علم سایه کښے — ګرځی کل لبانه مس (۱۰)

غنی خان دپلار په حکم لندن نه امریکے ته ورلاړ. او دلویزیانا د ایالت دبوټے او شکرے جوړولو په یو دکورس کښے شامل شو. اما دوه نیم کاله وروسته چه باچاخان بیا قید شو، نو غنی خان ته ژوند تریخ شو، ځکه خرڅ نه وررسیده او پوره ابته میاشتے پیسه خرڅ هم نه وو رسیدلے. بالاخره یوخیلوانو دوه موخته ملګرو د ورلیږل چه د پرے له امریکے هندوستان ته راواپس شی.

باچاخان هم دغې موضوع ته داسے اشاره کړی ده :» مشرعبد الغنی دے چه هغه دترو کمسنۍ دتعلیم دپاره امریکے ته لیږلے و . خو چه زه فیرنګیانو په ۱۹۳۱ع کال کښے جیل ته ولیږلم او زما جایداد ګلے وکړو نو هغه دپیسو دنشت په وجه سرته ونه رسولو او واپس راغے « (۱۱)

کله چه عبدالغنی خان له امریکے راغے نو باچاخان د هندوستان دبهار دایالت دهزاری باغ په جیل کښے و، چه دغنی ورسره ملاقات وشو. او بیا د جواهر لال نهرو

(۱۰) پانړس ص ۱۱۶ ، ۱۹۷۸ ء کال د پیښور چاپ .

(۱۱) زما ژوند او جد وجهد ص ۲ .

فضیل (۱۸۸۹-۱۹۶۴ع) په مشوره نې د ے، آله اباد ته ولیږلو او هلته د جواهر لال نهرو

د پلار موتي لال نهرو په کور کښې ديره شو، او د ته مياشتې د جواهر لال نهرو

ميرمنې کملا د خپل بچي په شان وناز اوه خو کله چه په هغې پسې د گرفتارې

انگريزي پوليس راغلل نو دے او خپله لور اندرا (۱۹۱۷-۱۹۰۴ع) يې د ټاگور

بين الاقوامي يونيورسټئ ته وليږل، د چه د غني د يونيورسټئ ته لاړ. لږ موده

پس د محصلينو د اعتماد يې رئيس شو.

د غني د منظم تحصيل دوران هم له واقعاتو سره مل روان وو کله به پوهه

پيښيږ وو، او کله به بل څه.

د دے تحصيل په جريان کښې د وله خپلې مورنۍ ژبے سره هيره عربي، فارسي

اردو او انگريزي ژبے د خبرو کولو مطالعے او په ځينو کښې د څه کښلو

ترسره حده زده کړے.

په اوسني ليکوال کښې د ده د عربي دانۍ او د اسلامي علومو

د تحصيل او مطالعے په باب راغلي دي: " د باچاخان دا خيال وچه د غني به

مولوي اسلامي عالم جوړ کړي، نو ځکه غني خان او د کاله د عربي مروج

علوم ولوستل په تيره بي د قرآن تفسيرونه او د احاديثو کتابونه (مسلم، بخاري)

احسن المسائل او بلوغ المرام تقريباً ټول په ياد وو او عربي ژبه يې د خپلے

ژبے پښتو په شان روانه ويله" (۱۲) وايي چه يو ځل د هند د ديوبند د اسلامي

(۱۲) اوسني ليکوال ج ۳ ص ۷۹۰

ملا صیب مولانا دا تمانزو آزاد سکول ته راغلے و، غنی خان د تولوشاگردانو مخکښے ولاړ شو او شل دقیقے یے په روانه او فصیحه عربی ژبه وینا وکړه مولانا پوښتنه وکړه چه دا هلک عرب دے؟ باچاخان په جواب کښے ورته ویل چه نه دا زما زوے دے.

دغسے چه باچاخان په غنی باندے د عربی د زده کړے باعث دے ترڅنګه یے د پارسی ژبے د زده کړے سپارښت هم ورته کاوه، باچاخان په خپل یوه لیک کښے غنی خان ته کښلی دی: "عربی او فارسی طرف ته هم څه نه څه توجه وکړه او د دے مطالعے د پاره هم څه نه څه وخت وباسه ما تا نه د دے متعلق اول هم لیکلی وو لیکن تا یے په خپل خط کښ څه خاص ذکر نه دے کړے" (۱۳)

## ملازمت:

بناغلی همیش خلیل کښلی دی کله چه غنی خان په ۱۹۳۳ع کال پېښور ته واپس راغلو څه موده د ے د تخت بهایی په شوګرمیل کښے ملازمت وکړو (۱۴)

استاد بېنوا لیکلی دی: "غنی خان هلته د بورجوړولو په یوه کارخانه کښے د میاشتے په سلو شل کلدارو نوکر شو، په لومړی سر کښے یو معمولی نوکر و، خو په دریو کاله کښے د ننه د ننه د خپل نظری استعداد او لیاقت په وجه د کارخانے د تولو نه لوے او غټ افسر شو.... څه موده د رسته یے د تخت بهایی په سیمه کښے د بورے جوړولو کارخانه جوړه کړه، کارخانه په چلیدو راغله، خو دا هغه وخت وو چه دده د پلار

---

(۱۳) د باچاخان لیکونه (۱۴) پښتانه لیکوال ص ۱۷

(باچاخان) او پرنګیانو تر منځ بیا جګړه توده شوه او د غني خان قول چیلوان د انګرېزانو
له خوا د استعمار زندانونو ته بوتلې شول. غني خان ته باچاخان حکم کړی وچه خان
به قید ته نه ورکوي، او د صفوي د جاياداد سرپرستي او انتظام به کوي. غني خان
هم د خپل جاياداد په يوه کلي کښې ځانله سره کور جوړ کړ... کرمه زمينداري ئې
شروع کړه او په مزه کښيناست» (۱۵)

استاد بينوا په اول وار کښې د ده د ملازمت خانه د سبوولې او دوهم
والي چه: غني خان هلته د بورې جوړولو په يوه کارخانه کښې.... نوکر شو. خټک چه
د انجنت په هندوستان کښې د ده له ژوند سره اړه لري، نو د ملازمت د غه
دوره به يې هندوستان کښې وي، خو په اوسني ليکوال کښې د غه خانه د معلوم.

اما په بلوشتے (۱۶) کښې چه د مياجعفرشاه په نامه د عبدالغني خان کوم منظوم
ليک چاپ شوی دے، په يوه بيت کښې يې راغلي دي :

چرته نرم ريښمين تار چرته ميزرے
چرته زه چرته «ګوله» چرته شکرے

د محمد منظوم ليک په حاشيه کښې لیکلي دي: ګوله: ګوګرنا ته د هندوستان
په (يو . پي) ولايت کښې يو ځا دے غني دلته د بورې په کارخانه کښې افسر ؤ .

نو استاد بينوا چه په هندوستان کښې د خان د ملازمت کوم بيان راوړے
دے دا به بنايي هماغه ګوله کښې وي .

(۱۵) اوسني ليکوال ص ۲۰۳
(۱۶) بلوشتے ص ۳۶ د ۱۳۲۹ هـ . ش کال د کابل چاپ - پښتو ټولنه .

## واده :

اوسني ليكوال كښې راغلي دي : " .... او هغه وخت چه د بمبئي په ښار كښې يې د خپل يو دوست كره د حيدر آباد د نواب رستم جنګ كشر لور وليده نو د ليدو سره سم ستې يې زړه پرې بايلود ... " بيا ليكي : " او تر اوږدو لو منډو وروسته يې د نواب صاحب لور وكړه او د خپل ژوند ملګرې يې وګرځوله ... " عبدالغني خان د خپلې د ملګرې په باب داسې نظر لري :

| | |
|---|---|
| يو خوب د شاعر په جامه انساني | يو ساز د وړ دراز ښكې خوږ آسماني |
| يو ګل د جنت په خصلت جهاني | يو جسم ناري يو زړه ګې نوراني |
| شو نه داسې پيدا د غني دلبرا | په غير پښتنه په ښا ايرا بهتني (١٧) |

## سياسي ميدان :

كه څه هم استاد بېنوا كښلي چه غني په ١٩٤٥ع كال د سياست د ډګر خوا ته هڅه وكړه ، خو زما خپله رايه او نور شواهد دادي چه د عبدالغني ژوند له ماشومتوب څخه په يوه سياسي ماحول كښې تېر شوي دي .

خان په داسې يوه كورنۍ كښې زوكړې چه هغه نه خپله يوه لويه سياسي ملاتړ وه ، باچا خان نه يوازې د خپلې سيمې په سياسي حلقو كښې محشور ته بلكه د سيمې په سياست كښې داخل شخصيت دي .

عبدالغني په د غسې يوه كورنۍ كښې دنيا ته سترګې پرانيستې ، د هغه وخت

---

(١٢) د ... غفار ص ٣ . د ١٩٥٩ع كال چاپ ، پېښور . د ... غفار په ١٩٥٦ع ... په ... ١٩٠٥ع كال د خپل واده ... كال ... دي ... خان په ١٩٢٩ع كال كښې واده كړى دي .

ټول سیاسي جریانونه او واقعات دده په فکر او نظر او عمل باندې اومؤثر وو.

زه په خپله دغه الغني خان د سیاسي فعالیت زمانه او په سیاست کښې

دده ګډون له هغه وخته راپیل کوم، چه د پرنګي د شوموفنیاتو په نتیجه کښې

په افغانستان کښې د غازي امان الله خان (۱۹۱۹-۱۹۲۹ع) پر ضد بغاوت وشو

او بچه سقاو د ننه شو، زمونږ په ټول هیواد کښې د حق او باطل ترمنځ یوه جګړه

روانه شوه. او ټول وطن د پرنګي په لمسه په اور کښې سوځېده، زمونږ ټونو

ورونو د دغه مصیبت برداشت نشو کولای، او له مونږ سره غني خان په دغه غم کښې

شریک باله. باچاخان او دده ملګرو د خلکو د یو محولو لپاره جلسې کولې او

د امان الله خان په ګټه یې تبلیغونه کول چنده یې ټولوله (۱۹)

او د جنګ د زخمیانو د مړه د لپاره یې افغانستان ته د یو طبي وفد د لېږلو

کوښښ شروع کړے و. غني خان هم د باچاخان له خوا د غه وفد ته معرفي

شوے و، لکه چه اوسني لیکوال کښې راغلي دي: « باچاخان پنځه زره روپۍ

او یو هم غني د غه وفد ته و بخښه » غني خان د غه وخت په جامعه ملیه

د هلی کښې سبق وایه، په غني پسې ټیلګرام لاړ او هغه په دوهم ورځ راورسېد.

خان ته یې د رضا کارانو خرڅ جامې جوړې کړے او د ډاکټر خانصاحب

(۱۹۵۶ع شهید) له کمپوډر ښځه یې د پټۍ ترلوچل زده کړ. خو پرنګي

د غه ډلې له تلو سره موافقه نه ده کړه او د دوی پاسپورټونه یې ترې واخستل

---

(۱۹) مرحوم راحت زاخیلی (۱۹۰۳-۱۹۶۳م) هم په دے باب ... یادګیره ... په ... کښې د ... د واغنو ص ۳۰ د ... په زیات. د ۱۳۶۳ هـ ش ... چ پ)

چه امان الله خان له پاچهۍ لاس وکینس .

ځنګه چه د باچاخان د غني فیصلې ته پرنګیانو په ښه نظر نه کتل او ډیر یې غوښتله چه د ګرفتار کړي ، نو غني یې له ګرفتارۍ څخه د ژغورلو په خاطر د تحصیل لپاره انګلستان ته ولیږه (۱۹۲۹ع) . دا د سیاسي مبارزې په ډګر کښې د غني لومړی ګام او د پرنګي داعمالو پر ضد یو پاڅون .

وروسته تر دې چه غني له اروپا او امریکا څخه بیرته هندوستان ته راوګرځید ، د هند په سیاسي حلقو کښې محشور شو . له ګاندهي جي (۱۸۶۹-۱۹۴۸ع) او د هند له نورو سیاسي لیډرانو سره یې د پلار په وسیله ناسته پاسته وه . لکه چه باچاخان په خپل یو لیک کښې عبدالغني خان ته کښلي دي : « غني جانه ! دا خو ډیره د خوشحالۍ خبره ده چه د ګاندهي جي په صلاح او مشورې سره بنګال ته روان یې زه به تا نه ډیر خوشحالیږم که چیرې ته د ګاندهي جي په صلاح سره کار کوې د هغه تا سره ډیره مینه ده .... » (۱۹)

استاد بینوا لیکلي دي ، « عبدالغني خان په ۱۹۴۵ع کال د دوستانو په سپارښتنه د هغه وخت په مرکزي پارلمنټ (برتانوي هندوستان) کښې د انتخاباتو د پاره ودریږ ، خان یې کاندید کړ (۲۰) د ده په مقابل کښې له څه هم د هغه وخت د ټولو سیاسي ډلو لکه خاکسار ، مسلم لیګ او هندو مها سبها

(۱۹) د باچا خان لیکونه ص ۲۰

(۲۰) د پښتانه لیکوال په ۱۰ مخ کښې یې کښلي دي : « کوم وخت چه خان عبدالقیوم خان د کانګرس مسئر پرېښود نو غني خان د هغه په ځای د دوه کاله د مشترکه هندوستان د سنټرل اسمبلۍ ممبر پاتې شو . »

ولاړے وُ، خو غني خان هغوی ته ماتے ورکړه او د هند په مرکزي پارلمنټ کښے وتا کل شو نو د هلی ته ولاړ. ـ هند په مرکزي پارلمنټ کښے هم غلي غني د خپل مستعد دماغ په برکت ډیر ژر منلے مقام ومونده او د هغه وخت د هندوستان په دریو بهترینو مقررینو کښے یو هم غني خان وُ. که څه هم دے د پارلمنټ تر ټولو غړو کشر وُ، خو چه ده به تقریر شروع کړو نو بیا د هم به چارچاپیره د پارلمان غړي په منډه منډه د پارلمان سالون ته راتلل.... سره د دے چه عمر یے لږ وُ، بیا هم د مرکزي وزیرانو سره د یو ولسوسلا کار ډکمیټو غړے و یو ځل نیم هم دا رو پا بین الملکی کنفرانسونو ته لیږلے شوے وُ. "(۲۱)

هم دغه مهال په شمال مغربي صوبه سرحد کښے د مسلم لیګیانو ورانئ د خدائي خدمتګارو په وړاند زیاتے شوے وے. نو هاغه وخت چه عبدالغني خان د خدائي خدمتګارو د محافظت لپاره د زلمی پښتون ډله جوړه کړه او ډیر وطنپرست پښتانه زلمیان یے پکښے منظم کړل، د دغه تحریک سره له دے چه شپږ میاشتے وچلید، خو د اتیا زرو په شاوخوا کښے پښتانه زلمیان ورسره وو.

فخرافغان د دغه تحریک په باب کښلي دي: " څه وخت چه زمونږ خلک د میجر خورشید د ډے اراده او سیکم نه خبر شول نو هغوی د خدائي خدمتګارو د حفاظت د پاره نوجاعت د غني په مشرۍ کښے جوړ کړو، نوم یے زلمي پښتون و او په دے کښے هغه ځوانان شریک شول چه د چا عقیده په عدم تشدد باندے نه وه

---

(۲۱) اوسني لیکوال، ص ۹۰۲

ولے چہ هغوی پہ دې غرض دغه جماعت جوړ کړے وو، چہ خدائي خدمتګار خوتشند د نه کوي، د دوی عقیده په عدم تشدد ده، د دوی پہ خلاف د تشدد سازشونه کيږی، نو دوی اعلان وکړو چہ دا جماعت صرف د خدائي خدمتګارو د حفاظت د پاره دې. د دې پہ مقابل کښے مسلم لیګ د غازی پښتون پہ نوم یو جماعت جوړ کړو. لیکن پښتون قوم زلمی پښتون پسے وو، او مسلم لیګ کښے چہ کوم خانان د پرتګیانو تالی ختے وو، هغو پہ دې نتیجه ورسیدل چہ قوم خدائي خدمتګارو سره دې. نو که د زلمی پښتون او غازی پښتون جګړه شي نو مونږ مسلم لیګو کښے به یو کس هم ژوندے پاتے نه شي...» (۲۲)

د هندوستان تر ویش وروستہ د ۱۹۴۷ع کال د جولائي پہ څلرمه نیټه د شپے پہ یوه بجه غني خان د مسلم لیګي حکومت له خوا ګرفتار شو او د هغے شپے پہ سبا پیښور ته بوتلے شو، او له مرحوم ماسټر عبدالکريم سره یو ځائے جیل ته ولیږل شو. د هریپور او پاکستان د نورو جیلونو پہ تورو او سپینو پنجرو کښے یے شپږ کاله تیر کړل او پہ ۱۹۵۴ع کال کښے له بنده آزاد شو.

داوه د ده سیاسی ژوند او پہ سیاسی میدان کښے د ده د فعالیتونو او مبارزو لنډه قصه. اما تر دے وروسته هم که ظاهراً خان پہ روان سیاست کښے لاس وهل نه لري، مګر بیا هم د محیط او خپلے کورنۍ د سیاسی سرګرمیو

---

(۲۲) زما ژوند او جدوجهد ص ۶۹۲ - ۶۹۹

لہ چپو بہ امان کښے نہ شی پاتی کیدے او دغہ سیاسی جریانات د دہ پہ ژوند اغیز کوے او د دہ ژوند مل ورسرہ تیریږی .

## د ادب میدان :

ویلے شی چہ خان عبدالغنی خان خپل لومړنی شعر د ۱۹۲۹ ع کال د جولائے پہ ۲۲ نیتہ د عمر پہ څورلسم کال ویلے دے ، او دغہ شعر یو بیت دادے :

د تهمت نہ بہ جہان کښے څوک خلاص نہ شی
چہ آسمان وی کلہ کلہ وی وریځې

عبدالغنی خان لہ هغہ وخته د ادب پہ میدان کښے لومړے قدم کیښود ، مګر دغہ قدم یے ډیر پوخ او محکم کیښود چہ ان تر دے دمہ پورے لار روان دے ، او ادب یے د زړہ همدم ایسی .

خان لہ ۱۹۲۹ - ۱۹۸۵ ع کال پورے پہ دے شپږ پنځوس کالو کښے خپلے ژبے او خپل فرهنګ تہ ډیرخہ ورکړی دی . چہ دغہ ادبی کارنامے بہ یے نوم تر ډیرہ پورے ژوندے وساتی .

## پښتو ادب تہ د غنی خان بخښنے :

د پښتو ادب پہ اوسنی دور کښے پہ سلګونو شاعرانو او ادیبانو لوے پښتو ژبے تہ پہ نظم او نثر کښے ډیر څہ بخښلی دی ، چہ پہ دغو والیو کښے د ځینو هغو لہ مرغلرو سرہ برابر دی ، او د ځینو لا پہ کوم څکہ نہ ارزی .

د عبدالغنی خان بخښنے پہ لومړی قطار کښے ځای نیسی ، د دہ چہ څہ

ښيلې ژبې او ادب ته ښکلې دي د پېړۍ برخې يې د پښتو شاعرۍ په او سني دور کښې خپل بل ساری نه لري، او پوازې دې په خپله ژبه کښې د د غسې بکر او ناوېلو شوو مضامينو مبتکر دے.

زه به د دې ليکنې په دې برخه کښې لومړے هغه څه د روپېژنم چه د ه پښتو ادب ته ورکړي دي.

## ۱- د پنجرې چغار:

دا د خان د منظوم کلام اولنۍ شايع شوې مجموعه ده، او له اختتاميه ليکنې يې ښکاري چه د غه مجموعه خان په جيل کښې تنظيم او بشپړ کړې ده د ده خپله ليکنه په دې خصوص کښې داده: "نن په ۲۲ تاريخ د اکتوبر ۱۹۵۲ع په هرى پور جيل کښې دا کتاب ليکل ختم شو." (۲۳)

د غه مجموعه ۲۱۵ مخه په ۱۹۵۶ع کال پېښور کښې د يونيورسټي بک ايجنسي له خوا چاپ شوې ده. د کتاب پېژندګلو د مرحوم ماسټر عبدالکريم په قلم کښل شوې، او په پيل کښې يې د خان ځينې منثورې ليکنې هم چاپ شوې دي.

## ۲- د غنى پلوشې:

دا د عبدالغني خان د کلام دويمه مجموعه ده چه په ۱۳۲۹ هـ ش کال په کابل کښې د پښتو ټولنې له خوا ۲۳۶ مخه چاپ شوې ده. د دې مجموعې د پيل په ۱۲۳ مخونو کښې د خان نور کلام چاپ شوے او وروسته يې د پنجرې چغار

(۲۳) د پنجرې چغار ص ۲۱۵ - خان د دې اثر په پورتني توګه کښلي دي: "هرى پور ۱۵ اکتوبر ۱۹۵۰ع کښې دا کتاب شروع کوم . غني"

نظمونه اخیستي دي .

د دې مجموعې په پیل کښې د مرحوم استاد الفت یو یادښت او په پای کښې د غني خان یو یادښت چاپ شوي دي چې د مړ پور په جیل کښې کښل شوي او تاریخ یې ۱۹۴۹ ع کال د جولای د شلمې نیټې دی. د غني په دې یادښت کښې راغلي دي : "کتاب خلاص شو خو شعرونه ډېر پاتې شو، خیر بیا به چرته څه غم وکړو، ژوند عجب شے دی. د کتاب کښې اول شعر د او به په جماز کښې په بحر هند ویل شوي و او آخري د مړ پور جیل د کوارټن په یوه جګئ کښې په دې منځ کښې چې څه مستي، خوشحالي، غم، ارمان، امید، وغیره . خندا او ژړا په ما راغلي دي . نو د دې کتاب په دې پاڼو کښې موجود دي ولې افسوس دا چې ژبه مې د زړه هومره طاقت نه لري بیان د احساس نه کمزوری دے. خو هر څه چې دي حاضر دي ما د څه پټولو کوښښ نه دے کړے. بلکه د ښکارولو کولو خوارۍ مې کړے ده .

دا زما د خان تصویر دے، ډېر نامکمل او مات ګوډ دے ولې دا زه به په خوشحاله ضمیر ویلے شم چې دے کښې هر څه دي زما دي. دا زما دده بې ښکاره او بې مطلبه ژوند یوه خواره ډالۍ ده چې ما خپل قام او مسلک له جوړه کړې ده. کاش چې دے کښې د ژبې د ښایست او پوهې د کمال د پایانه ماډک بهولي وې ولې څه وکړم چې هډ ومره وس و. او بند د خپله وسه زیاتي په هیڅ نه دی په . که په دې خیالا تو کښې د ومره حسن وي، چې له مانه پس هم

ژوندی پاتې شي نو زه به وایم چه واقعي ماد آب حیات چینه وموندله اوس

دوی ما ژوندی کړی دی ، او بیا به دوی ما ژوندی کوی . (غني) (۲۴)

## ۳- پانوس :

د عبدالغني خان د شایع شوی کلام دریمه مجموعه پانوس نومی

چه په ۱۹۸۰ع کال د قامی مکتبه پېښور له خوا په پنجاب آرټ پریس لاهور

کښې ۲۹۲ مخه چاپ شوې ده . په دې مجموعه کښې د خان له نویو نظمونو سره

د پنجرې چغار او پلوشې انتخابات هم لیدل کېږي . د دې مجموعې په پیل کښې

یو یو مخیز یادښت هم چاپ شوې دے .

## ۴- د غني لیکونه :

غني خان د خپل سیاسي او ادبي ژوند په دوران کښې د لرے او بر

پښتونخوا او برصغیر ادیبانو ، شاعرانو او سیاسي خلکو او مشرانو ته په اردو

انګریزۍ او پښتو کښې منظوم او منثور لیکونه هم کښلي دي ، چه زه د خان د غني

لیکونه د ده یو خانته مېل اثر بولم .

که څه هم د ده د پښتو منظومو او منثورو لیکونو ځینې برخې د سرحد

په اخبارانو ، رسالو او هم د ده په کتابونو کښې شایع شوې دي ، خو هغه ټول

تول او خوندي کول به کار دي ، ځکه د غني لیکونه د خپل ادبي او هنري

لطف سره سره ځینې ډیر مهم نکات او تاریخي وقایع هم رانغاړي ، چه د غني خان

---

(۲۴) پلوشې ص ۲۳۶

د ملي ، سیاسي او ادبي ستیرو په څېړنه او هسما ، نه د ځمونږ احوال او وخت د
مطالعې په دوران کښې د څېړونکو سره ډیره مرسته کوي . زه په دې ځای کښې د سجاد
له زړه ورسالو څخه د دوه منثور او یو منظوم لیک د نمونې په ډول را اخلم .

دارالامان

۲۰ / ۱ / ۵۹

ګرانه مهدي :

ستا دواړه خطونه را رسیدلي دي . معافي غواړم چه اول مې جواب
در نکړو . خوږه داوړي نه څه نا جوړه یم او نن سبا خو هسې د خپله خانه او
تو لې دنیا نه مرور شوی یم . تا ته دا هم معلومه ده چه کلونه او شو چه ما څه خاص
شی نه دی لیکلي تیر شوی خورم کښې چه زه په هسپتال کښې وم . نو یو امام حسین
مرثیه لیکلې ده . هغه درلیږم . هغه هم را نه ورکه شوې ده . خو کوښښ کوم او را
یاد وه مه . زه ستا ډیر مشکور یم چه کله نا کله زما شعرونه رهبر کښې چاپ کړې
زه مې ډیر غواړي چه هره هفته درته څه نا څه لیکم ولې ډیر پریشانه او ډوبه
ستړی یم او صحت کار ته مې ډیره نه دی (۲۵) . غني "

لاندې یو منظوم لیک را وړم چه عبدالغني خان د ۱۹۵۱ع کال د جون په
۲۵ په جیل کښې ماستر عبدالکریم ته لیږلی و :

(۲۵) رهبر کالیز نمبر ۱۲ فروري ۱۹۵۹ع الف مخ .

غنی ته نه سړی وے      نه سړی شوے نه به شے
بے تکه د خبرے      بے مطلبه د نشے
بے توله د دماغ دے      بے لباسه د بیان
دا سړے د دسلو ادے      نه سود پیژنی نه زیان
تالو کښے الونه وینے      بق بق آسمان ته کوے
قسمت د ته ناړے وی      ته نے ناست او خاندنے کوے

* * *

جوړے کو محاونه      دخندا او د هوا نه
په ښاو لے خاوړ کړے      دا بنایسته دنیا ورانه
دا دکه د عیشونو      کښلو جونو او ورنانه
په ښاد دے مقبره کړه      تکه توره ورانه ورانه
دا څه غواړے د بل نه      خانه څه غواړے د خانه
دا څه بلا جوړے      د دے بنایسته دنیا نه

* * *

نرگس د دی کړلی په باړو کښے د جوارړو      رامبیل د لګولی په باغچه کښے دانا رو
دنیا کښے ترقی به خوشامندو د ده له ده      تا څو به سلام د کړی او تختونه په منت
دنیا واړه کمزورے ده خوارو دی ترخ خوارو      چه څنګ د بل ښاوی د هغه کیږی صفت
بادشاه د دنیا زرو دی او یا زور د بل نشته      مطلب د ښرونا یا ښاخ دی او یا کورد بل نشته

خو ته اېږې خانه نه سرې ورې نه به شې — کالونو او ټکونو او خندانه و شمېښې

د خلقو نظر کښې خانان خیال نه دې — ته تول پاهنګ پاڅه ځلی تو نه دې

ته تل منصور منصور زړه د تود سر دې — خانانه حکمونو د بهلول نه دې

منم چه د ګلونو اېښار نو سپرلو یار دې — خو تاله دوزخ خناق دا نغوشیو نه دې

په دې چه د ګلو د نسیم ساقي راز دار دې — چه تاله بل خمول او خانان خیرو نه دې

همېش په دې شغل یوازې خیږې په سحر کښې — په کور کښې د فرعون چه خانان باول نه دې

زما که دیړ اوکې په د تشه رنا خه — دا ورته خیتې خانه په د تشه خندا خه

* * *

ته حسن چه د لوګی هوا محل دې — انصاف انصاف د خه دې هوښیا شاند کل دې

ایمان ایمان د خزوی هوښیار غم کړی د سبا

اتبار د هوښیار تیا د اکو ایمان د عقل غل دې

رنجتینې د مرچې وهې په زولنو کښې

نن بره د چالی دوه مونږ او بره روان چل دې

په بیه شرافت د نوم او ښځې په لیلام

یا ښې په کرایه ښه سریتوب هم په بدل دې

خفل کښې دیریا تو لتو ته ښا پېرې — ته لیک پښتو په دسته خوان د سامرې

په غم کښې لټې د لرو سرو پلو شې — غني ته نه سره ونه شته نه به شې (۲۶)

(د مستانه ورغني)

---

(۲۶) رهبر ۲۹ فروری ۱۹۶۱ع ص ۱۱۴ - ۱۱۵

له د آثارو سربیره دخان متفرق اشعار او نظمونه، لیکونه او نور
منثور لیکنې د پېښور په ډیرو ملي رسالو او اخبارونو کښې شایع شوی دي چه
تولول او خوندي کول یې په کار دي، ځکه د ده هر لیکنه او هر نظم د پښتو ادب یوه
قیمتي پانګه ده. او بویه چه زمونږ لرنی پچپل قوم او ژبه مین ورونه دغه کار وکړي.
د غني خان د آثارو په لړ کښې ادب پوهانو په انګلیزي کښې د "پټانز"
په نوم د ده دیوه اثر یادونه هم کړې ده. چه فخر افغان ته اهدا شوې دې
والي چه دغه اثر د ده ځله چاپ او شایع شوی دی. یو ځل په بمبئی کښې او بل
ځل په ۱۹۵۰ع کال په پېښور کښې. ما خپله د خان دغه کتاب نه دی لیدلی.

## دغني د کلام شکلي خوا :

دخان د کلام کومه مطالعه چه ما غزیبه ته میسره شوې ده چه هغو کښې
زیاتره برخه د داسې شعري سکښت لري چه زمونږ لرنی ورونه یې "نظم" بولي
او د شعري قالبونو د تخنیکي قاعدو او اصولو دیر تابع نه دي. له دغو نظمونو سره سره
د ده په کلام کښې غزل، رباعي، قطعه او یوه نیمه مثنوي هم لیدل کیږي.
د عبدالغني خان په کلام کښې څه داسې نظمونه هم شته چه کوټ چه موږ
ورته دلته په کابل کښې "آزاد نظم" او یا نوې شعر وایو دغه ډول نظمونو هم
خان په خاص ادبي مهارت ویلي دي چه فکري خوا و سره سره هنري مزیت
هم لري او د پښتو د نوي شعر د مطالعې په دوران کښې په خاص ډول د
یادونې وړ دي، دلته زه د ده د دغه ډول نظمونو یو نمونه وړاندې کوم:

ځوک د زړه غولولو نشته
خان له زړه غولوم پخپله
خان له ناست یمه خپل غم ته
د خپل غم وایم بدله
چرته لاړے تیر محفل له
د مستۍ او خندا خمه
چرته مرو شمع را اخلم
خپل مثال پرے لګومه
دے تور تم غم او افسوس کښے
زه په یاد د مینے پایم
سوی زړه ته قصے ویرے
د ځوانۍ رنګینے وایم (۲۷)

دخان د آزادو نظمونو نه علاوه په دے مجموعه کښے نور هم ډیر نمونی په پانوس کښے خوندی دی. یو ځائے د علامه اقبال (۱۸۷۳ - ۱۹۳۸ ع) د کلام ترجمه هم لیدے شی او هم د پښتو د اولسی شعرونو نمونے هم.

## دخان د شاعرۍ مضامین او فکری ارزښتونه:

دخان د کلام له مطالعے هر چا خانله خوند اخیستے دے او لیکوالو او محققینو هر یو د خپل برداشت سره سم څه نه څه پرے لیکلی دی. مګر زما په عقیده تر هر چا د مخه او تر هر څه د مخه بایده دے چه د شاعرۍ په باب دخان پخپله رایه پوهه شی چه د دے په باب څه نظر لرے. عبدالغنی خان استاد بینوا مرحوم ته په یو لیک کښے په دے باب داسے لیکلی دی:.... زما خیال دے چه ژوند کښے د یو شاعر مرام او هدف د یو مبلغ او ملا غوندے نه بلکی جلا او بل شان دے او دا ځکه چه انسان په اساسی او بنیادی توګه یو ښائسته (؟)

---

(۲۷) رهبر جون ۱۹۵۹ ع ص ۱۲

هغه خوړلې. څښاک جنسي اړتیاوې او استراحت ته ضرورت لري او نور هیڅ ته نه. دا زمونږ د شاعرانو وظیفه ده چه د انسان توجه او پاملرنه د هغه د ژوند او هستۍ دې لوړو مرکزونو ته ور وګرځوي، چیرته چه هغه ممکنه ده. د خپل تکامل انعکاس وویني، او د خپل ابدي عشوقې د ښکلا او ښایست دیدن وکړي.

زما خیال دی چه یو شاعر باید د فکر او خیال قول او عمل په ذریعه کښې د ښکلا او ښایست عبادت وکړي او انسان دې ته مجبور کاندي چه هغه د خپلو خواهشاتو له ګند ګیر څخه خپل مخ د خپل باغ عدن خواته وا ړوي. دا کار په پند ونصیحت نه شي کیدې. زما هغه خلک بد ایسي چه ما ته نصیحتونه کوي.

که چیرې مونږ د زړه له کومې د ښکلا او ښایست دقدر، داني لیاره خان راپیدا کړای شو، تر کومه چه په ژوند کښې د عذاب او مصیبت درد او غم تعلق دې نو زما خیال دې چه مونږ ته د ښکلا ښایست د تخلیق د پاره د هغې قیمت اداکول لازم دي. هر یو آرټسټ دا بوګنو ونکې قیمت اداکوي، او په دې کښې یو څو کسان خوشبخته وي چه د ښکلا. ښایست او دلربائي یو څاڅکې راپیدا کړي.

د آرټ. ښکلا او ښایست او دلربائي مخ ته د راوستو د پاره ته باید چه د ژوند، درد وغم ته مخامخ شي.

د خان له دې خبرګند ونو ښکاري چه د دوی د شاعري مقصدیت هم په لوړو خبرو کښې نغښتې دې، او د دوی کلام کمال اوجمال غښتلی دې چه خان خپله بیان کړل

د خان د کلام زیاته برخه فکري محتوی لري چه د ملي او قومي مسائلو
له بیانه څخه نیولې تر پیچلو فلسفي مسائلو پورې خبرې او د ټولنې ضروریات په خپل کلام
کښې رانغاړي.

د خان اکثر فکري آثار د طنز او مزاح په ډول په داسې طنزي انداز کښې
بیان شوي دي چه د ټولنې او معاشرې ډېر ناوړه خواوې په ډېره خوږه طنزونو
او توکي نظمونو کښې بیانوي. او د پښتو په معاصر ادب کښې ډېر لږ شاعران داسې
طنزونه لري، یا خو به د غه ډول طنزونه ډېر لږ وي که وي نو صفحه به هم په داسې الفاظ
چه غني بیان کړي دي نه وي. په همدې اساس د لوړ پښتو ادبي محققین لکې
چه په اوسني دور کښې طنز و مزاح ته په پښتو شاعرۍ کښې لیوني فلسفي عبدالغني خان
خاصه ځلا ورکړه (۲۱)

دغني په شاعرۍ کښې له وطن او قوم سره مینه په داسې انداز کښې بیان
شوې چه هیڅ ډول تفنن او تصنع نه پکې لیدل کیږي او دده د قوم پرستۍ او وطن پرستۍ
د واقعي احساساتو ترجماني کوي. او په ټولنه کښې مسلط اجتماعي او سیاسي نظام
هم دده د اورنۍ ژبې او د نقاد قلم له خوګه خلاص نه دی. د زیاره باسي چه
د جامعې فسادونه په داسې طنزیه او مزاحیه جملو کښې انتقاد کړي چه
په ظاهر کښې ډېر سطحي او پیش پا افتاده ښکاري. خو که ته یې مطلب ته
ورسې، نو هلته د خان په فکر و مغز آفرین ووایې.

---

(۲۹) اتک کښې اسپار ص ۱۹۶ طبع لوښنه ادب لاهور.

# عبدالغني خان او د ده کلام د شاعرانو، ادیبانو او محققینو له نظره:

دخان د پېژندګلې او د ده د آثارو او افکارو په باب چې کوم بحثونه شول د هغو تکمیل لپاره لازمه ایسي چې د هغو ادیبانو او شاعرانو آراوې هم راوړل شي چې د غني او د ده د آثارو په باب څرګندونې او نظریات لري؛

۱- مرحوم ماسټر عبدالکریم (۱۹۰۸ - ۱۹۶۱ع) د پنجرې چغار په دیباچه کښې کښلي دي: "... د غني د شاعرۍ درې دورې دي: اول دوره د ملګوانې شاعرۍ ده ... دویم دور د غني شاعرۍ هغه وخت کېدای شي څه وخت چې غني له یورپ، امریکې طواف په هم زیاته کړې وه ... د دې دور کښې د غني په تخیل کښې پراخوالې موندې شي. دلته غني د خیال په نیلي سپرې خوځا او ګې خپل قابو کښې ږدي یو آواز د چې سوز او ساز لري، یو سپرې د چې د مستۍ او سترګو خمار لري. د دور کښې غني خان که خپل مسلک هم لري، وایي چې غالب او ټیګور په لاره روان وو غني مخې له ورځې دواړه په یو بل ته وکتل. دغه د غني د دریم دور شاعري ده او چې د خیام مستۍ له یې د غالب بېباکي او د ټیګور رنګیني ورکړه ..." (د پنجرې چغار مقدمه ص د-)

۲- د پښتو ژبې نومیالي لیکوال همیش خلیل لیکلي دي: "د دغه نوم نه وړاندې ادبي دنیا کښې غني خان په لیوني فلسفي پېژندل شو او د خپلو مزاحیه شعرونو له لکبه چې اکثر به په اوروړخني پښتون کښې شایع کېدل. هم د دغه مجلې په ذریعه لیوني فلسفي نه صرف په خپل ماحول کښې بلکه ټولو کې مشهور شو ..." (پښتانه لیکوال ص ۱۰)

۳- مرحوم استاد گل پاچا الفت (۱۳۵۶ هـ . ش مړ) د غني شاعري داسې ستايي: " د غني خان په اشعارو کښې چې څه شی زما پېر خوښېږي هغه د فکر او خيال آزادي او د تقليد له تلقيناتو څخه سرکښي ده.

د دوه رندانه مقام ته څوک نشي رسېدای او هغه څه چې ده د خپل سباغلي ليونتوب له برکته ويلي شي د نورو خوله پرې سوځي.

غني د شعر او شاعرۍ په دنيا کښې رښتيا غني دی او په څه يې په ځير رسيدلی دی. د ده په اشعارو کښې عشق او محبت، پښتو او پښتونولي، رندي او خيامي فلسفه، تورې او مستۍ هغه څه شته له کارغانو او مارغانو سره يې هم په شاعرانه ژبه د ډېرو د خوند خبرې کړې دي.

د ده په مستانه ليونتوب کښې شاعرانه هوښيارۍ او بيدارۍ پټه ده او په ملنډو کښې يې د مقصد لوی نغښتی دی. نو ځکه ورته ليونی فلسفي هم وايي ". (پلوشې - الف. ب مخونه)

۴- استاد بېنوا (۱۳۷۳ هـ . ش مړ) بيا وايي: "... ظاهر بين خلکو ورته د ماشوم په نظر وکتل خو د قدرت په نظر کښې هغه د پښتني ادب پر آسمان يو ځليدونکی ستوری و، چې له څمېره رابښکاره شو.

هو! هغه وخت څوک پوهيدل چې دا ماشوم به يو ورځ د پښتو ادب غني او مستعد دماغ شي چې د سپېڅلي طبيعت له الهامه، د حقيقي انسانيت له نوره، د سرمست احساس له جامه د رندۍ او شوخۍ له خمه

دلیو نی میینے له سوز و سازه او د ژوند د ژورې فلسفی له تله به پښتنی ادب ته داسې نوې خلا، نوې رنګینی، نوې روح او نوې خوند وبخښی چه د پښتو زوړ ادب لې ورسره اشنا و.» (اوسنی لیکوال، ج ۳ ص ۹۶۹)

د - شوروی پوه ګ. ف. ګیرس بیا دغنی شاعرۍ له تحلیل څخه داسې نتیجې ته رارسیږی:

«د ژوند اند د پیښو د ترسیم له پاره غنی خپل مخصوص سبک او اسلوب انتخابوی. طنز، ټوکې او ټکالې کوی او هم څرګ چه د شعر به ذکر کښې د ده مخې ته ورغلی دی همدا ورځ نه دی پاتې شوی او ګوزارېی ورباندې کړې دي. حتی انګلیسان ملایان، وطن دوستان، اولسی بی سوادان او عتیقه پرستان د ده د ظرافت لاندې راغلی دی. تیزاو مهم موضوعات په دارنګ تعبیر سره بیانول په طبیعی دول داشعار وخپی سموی. برسیره پر دې دغنی خان د آثارو نه معلومیږی چه داولس په ورورسته پاتې کید او کښې څپله اولس ملامت دی.» (۲۹)

۶- استاد اجمل خټک دغنی په نامه یو پارکې لری چه یوه برخه یې دلته را اخلو:

| | |
|---|---|
| دغنی په نامه لیکم څو شعرونه | په پنجرو کښې یادوم تازه ګلونه |
| د هغه سره یې نګونه د قلم دی | زولوم پرې څو سارو ساړه آهونه |
| د هغه خوله کښې د خوند ډک چغار دې | زما زړو کښې دی د دې ډک داغونه |
| هغه خیال فن او ښکلا سره لوبیږی | زولګیا یم لوبوم داغلی زړونه |

(۲۹) د یاګی اولس ادبیات . محمد محقق معتمد شینواری ترجمه .

| | |
|---|---|
| سیلاني هغه د نوي دنیا ګي دے | بلوم زه د کوډلو مشالونه |
| د هغه احساس د حسن تازه ګل دے | زه جذبات یم په مابل دي سره اوړونه |
| هغه مینه ده، غیرت دے د ولولې دي | زه وفا یم، پښتو یم، ننګونه (۳۰) |

۷- د پانوس په دیباچه کوي تے کښې لیکلي دي: "غني خان چه خپله د آرټ دیوسے ماهر سے حیثیت لري د هغه د افکارو سره پوره پوره انصاف وکړے شي..... غني خان د خپلې پانچې دکال نه خانګي نه پریکړي. چه د هغه په خیال په یو پښتون باغ کښې د ګلاب بوټے د خپلې فطري ارتقا ته پرېښودل په کار دي."

۸- پروفیسر ولي محمد خان سیال کاکړ یې بیا داسے ستاینه کوي:

چه پیدا په هشتنغر کښې غني خان سو
بخت بیدار په رښتیا د لوے افغان سو
شاعر نه د فیلسوف د زمانے دے
په خپل شعر کښې د پښتون چه ترجمان سو
د لیوني اشعار چه لولي لیونیان سي
پس له لوستلو هر سړے خبر په ځان سي (۳۱)

---

(۳۰) د وخت چپه ص ۲۴۲ د ۱۳۵٦ هـ ش کال . د کابل چاپ.

(۳۱) منظومه تذکره ص ۲۷ د ۱۹۹۲ ع کال د کوټې چاپ.

۹- صاحبزاده محمد ادریس پخپل یو نظم کښې دغني او مفتون مقایسه داسې کړې ده:

| | |
|---|---|
| فرق څه دې په غني او په مفتون کښې | کوم څه وینې لیونتوب او په جنون کښې |
| سرګردانه که دي یو بل ناقراره | اضطراب کوره د دواړو په څخون کښې |
| د احساس درد کمې په شرابونو | بیا وتېږي د شرابو په بیلتون کښې |
| بېهوشي کښې اروي خرابه د سرونه | فرق نه وینم د دواړو په قانون کښې |
| په دخیال بل د جذباتو په تال زانګي | وربېره دخیال لیلې د مجنون کښې |
| سر پېښو په او مستي په زړه وجابل دي | سبقیان دواړه دعشق په پوهنتون کښې |
| دغني دخیال نیلي په آسمان کښې زغلي | وربېره د مفتون آس وي په ګډون کښې |
| سر دې ونه څه دمینې کړي پرسیره | مستي داولي دعقل افلاطون کښې (۱) |

۱۰- زمونږ نومیالی استاد پوهاند رښتین دغني د هنر او فن تجزیه داسې کړېده:

" دغني په اشعارو کښې یا په بله ژبه د دوه ډګرو په پلوشو کښې عشق او مینه او محبت پښتو او پښتونولي، رندي او مستي، تنقید او کره کتنه، آزادخیالي او بې باکي د بې باکۍ فلسفه او نور هر رنګ لذتونه او خوندونه شته او په دې میدان کښې غني د خوشحال د لارې پوخ ملګرے د خوږه تکو او ملنګو کښې تر هغه هم وړاندې دے " (۲)

---

(۱) د سهیل مستوري ص ۶۱-۶۲ د ۱۹۵۷ ع کال د پښتو ټولنې اداره اشاعت سرحد.

(۲) وږمه د ۱۳۵۶ هـ ش کال ګڼه ص ۱۳۰

۱۴- حامد کتباڼی دی : «شعر غنی بازتابی از زندگی محیط و درگیری های سیاسی زمان اوست و همین مسایل است که انگیزه های بازسازی دنیای نگری او را می سازد شعر در دست او خامه یی است که با آن افکار فلسفی، آزادیخواهی و حب وطن را با تمام ابعادش ترسیم میکند. ...... در شعر او فضای زیبا و شکوهی تبلور یافته است. همین ویژگی شعر اوست که او را در ردیف شاعران ممتاز و برازنده زبان پښتو قرار مید هد.» (*)

## غنی او اخوږ کری:

په ادبي خبرو کښې راغلی دی، چه غنی خان اخوږگر (مصور) هم دی. د ده ځینې اخوږونه په بعضی کتابو کښې شایع شوي هم دي. ویلې شي چه ډیوکر په بین الاقوامي یونیورسټي کښې غنی د خپلې استوګنې په زمانه کښې د هلکانو د تورو تصویرونو جوړول شروع کړل اما د غه تصویرونه چه د کالج پرنسیپل او ډیوکر (۱۹۶۱-۱۹۲۱ع) ولیدل نو ډیر زیات خوشحاله او حیران شو.

بناغلی هیش یاکښلی دی: «غني خان د یو بنه شاعر نه علاوه یو بهترین مصور هم دے او ډیر ځله د تصویرونو نمایشونه شوي دي.» (پښتانه لیکوال ۱۰ مخ.)

---

(*) حقیقت، دمی دریاسی ۰ ذو حامد نکیه د ۱۳۶۴ کال د اسد میاشتی ګڼه.

# د غني د کلام د غه مجموعه:

کله چې د پښتو ژبې نوميالي شاعر او ليکوال سليمان لايق ماته د غني د کلياتو د تدوين سپارښتنه وکړه، نو ما لومړی کار دا په لوښ پيل کړ. پانوس کې باشو او کاتب ته د ليکلو د پاره وسپارل شو. تر دې وروسته مې د پنجره چغار تر کاره نه د نوي وو لومړنو نظمونو نې چې په پانوس کې نه راغلي وو. هغه تر لېږ کړې شول او باقي برخې وليکل شوې او کاتب ته حواله شوې. بيا پاڼې وکتلې، د دې مجموعې ټول هغه نظمونه چې په پانوس او پنجره چغار کې نه راغلي وو، هغه تر لېږ کړې شول. او پاتې نظمونه يې وليکل شو.

البته ګينې شوې چې مونږ د خان ټول نظمونه د پاڼې او پانوس له مخې را جمع کړو، خو د دې لپاره چې د عبدالغني د کلام د مجموعې خپل هويت هم ساتل شوی وي، د هغو ځنو لپاره جلا جلا سرليکونه ورکړل.

د شعر په کليات کې د راټولو شوو نظمونو په املا کې ډېر لاس وهل شوي دي، ځکه چې د ... تر ډېره حده موږ يار وويست چې املا د اوسني پښتو ليکنې املا ته ورته وي. هغه کلمات چې خان په خپله لهجه کتلي وو، خينې مو سم کړل او په مروجه املا مو وليکل. خو خينې برخې يې لا د خان د لهجې مطابق پاتې شول. البته دا خبره بايد هېره نشي چې د پنجره چغار او بلو پاڼو کوم نظمونه چې په پانوس کې راوړي دي، په هغو کې نه لاس وهلی دی او مادمش د ترتيب دا ... و ولې مخ هلته ... شمېرونه په کليات کې اخيستي دي.

☆ له بده مرغه هغه ننګرهار نظمونه هم په مجموعه کې راغلي او زه د اسي وخت ورته متوجه شوم چې ايستل يې ګران وو.

زه دې ليکنې په پای کښې د خان عبدالغني خان يوه خوږه غزله تاسې ته وړاندې کوم چې زما له دې بحث سره ډېر نږدې اړه لري، او دده د ژوند په مطالعه کښې ارزښتمنه ايسي.

## غني غني ته

ما وې غني يار خه بې اندازه غوندې دی
ادب دې کښې کم ژبان دراز غوندې دی
قصه دې که وي وړه نه سم خاشتون نه توقي شوې
خوند دې دوپيازه کښې خه دې پياز غوندې دی
پټې دې وران ويجاړ دي او کښې وزې دې پوولي
کمې پکښې کلونه حسن ساز غوندې دی
لېونو دې ماته کوي او شپه ل ماحول دې غشي
خوږ غزل دې رښا کې تير اندازه غوندې دی
دولت وي که صفت وي که ناموس وي که شهرت
په وزې خيته موړ او بې نيازه غوندې دی
که ښکلي وي که تراش وي که چا ربېته که بدله
په خپله لار روان يې بې استازه غوندې دی
په مينه يې مين او خدای ته پلار او جانان وايې
داخکه خوږ يې تول بې اندازه غوندې دی

---

پښتو مجله ۱۹۸۳ع اپريل فروري مارچ ) ۲۰ مخ
رحمت الله ...
خادم العلماء مرتب و مدون ۵۰۲۰